


# اسلام او سياسي اندونه

**له يوناني پېر څخه بيا تر ننه، سياسي اندونو او نظامونو ته کتنه**
**د اسلام د سياسي بنسټونو کره څېړنه او د هغو د عملي نفاذ لارې چارې**

**ليکوال**: د اسلامي نړۍ منلی عالم مفتي محمد تقي عثماني
**ژباړن**: مولوي نور اللّٰه عزام






## کتاب پېژندنه

**نوم** : اسلام او سیاسي اندونه
**لیکوال**: مفتي محمد تقي عثماني
**ژباړن**: مولوي نورالله عزام – د افغان مدرسې مدیر
**کمپوز** : ژباړن
**بیا کتنه**: د علمي څېړنو د تالیف او ژباړې څانگه
**ډیزاین** : انجنیرمحمد افضل ذاکر
**د پوښتۍ ډیزاین**: انجنیرجمعه خان نایل
**خپرندوی**: د افغان بنسټ خپرنیزه او بلنیزه څانگه
**چاپشمېر** : دویم، زر (۱۰۰۰) ټوکه
**چاپنېټه**: ۱۳۹۳/۷/۱







# لړلیک

**سرلیک** **مخکڼه**

# د خپرندوی وینا

ثنا او ستاینه هغه څښتن لره ده، چې اسلام یې د ټولو ادیانو وروستی مهر او د دین او دنیا د چارو تنظیموونکی وګرځاوه او په هره زمانه او هر ځای کې یې اسلام دانسانیت د نېکمرغۍ ور وګرځاوه، او پر رسول الله صلی الله علیه وسلم دې بې شمېره درودونه او د الله رحمتونه وي، چې خپل امت ته یې ټول حلال او حرام ښکاره کړل.

اسلام د بشریت له پیل څخه بیا تر پایه د الله هغه وروستی یوازینی الهي نظام دی چې په هره زمانه او هرځای کې د نظام د سرچینې لپاره بسنه کوي، نور الهي نظامونه د ځانګړي وخت او ځانګړو قومونه لپاره نازلېدل او د وخت په تېرېدو یې احکام منسوخېدل؛ خو اسلام تر قیامته د ټول عالم لپاره بشپړ، شامل او نه بدلېدونکی دین وټاکل شو.

إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللّهِ الإِسْلاَمُ.
الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلاَمَ دِينًا.
وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلاَّ كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا.

دویم هغه څه چې اسلام پرې له نورو دینونو امتیاز او غوراوی لري، هغه د ژوند هرې برخې ته خپل احکام او لارښوونې دي، نور ادیان یوازې په یو څو عبادتونو او لمانځنو راڅرخي او د ژوند نورو چارو ته دیني حکمونه او قوانین نه لري؛ خو اسلام هغه یوازنی دین دی چې د ژوند هېڅ برخه یې له الهي لارښوونو خالي نه ده، د دې معنا دا نه ده چې اسلام د ژوند هرې لوړې او ژورې ته ځانګړی جزي حکم ټاکلی دی؛ بلکې اسلام د حلالو او حرامو داسې بنسټیز هراړخیزه چوکاټ ټاکلی دی چې د ژوند ټولو برخو او هرې زمانې او سیمې ته تر قیامته بسنه کوي، او له عباداتو ور هاخوا د ژوند لپاره د سیاسي او ټولنیز نظام جوړولو په جزیاتو کې یې د هرې زمانې او سیمې خلکو ته اختیار ورکړی دی چې د اسلامي بنسټونو په رڼا کې خپلو سیمو ته داسې قوانین وټاکي چې له هغه سیمې سره مناسب او په اوسېدونکو یې د تطبیق او تنفیذ وړ وي.



دا چې په اوسني پېر کې لوېدیځوال او ځینې لوېدیځ پلوه هڅه کوي چې اسلام هم لکه د نورو ادیانو په څېر یوازې تر عبادتځایونو محدود کړي او پر سیمه سیکولر نظام واکمن کړي، ډېره اړینه وه چې یو داسې اثر ټولنې ته وړاندې کړل شي چې د اسلامي نظام اړتیا او اصول پکښې په ښه ډول تشریح شوي وي.

ستاسو په لاس کې کتاب د همدې موضوع ښه څېړنه کړې ده، چې له یوناني پېر څخه بیا تر ننه د سیاسي اندونو او نظامونو ښه پېژندنه او بیا یې پر هغو نیوکې، پر تله او ښې تبصرې کړې دي، دوهمه برخه کې یې د اسلامي سیاسي نظام بنسټونه په ډېره ښه توګه واضح کړي دي، چې لوستل به یې، که الله جل جلاله غوښتي وي، هر لوستونکي ته ښه ګټه ورسوي.

افغان بنسټ د علمي اثارو د ژباړې په لړ کې، د ښاغلي مولوي نورالله عزام په مرسته د دې کتاب ژباړه پیل کړه، څو مونوي کوول ته د دې کتاب په وړاندې کولو څه ناڅه خپل مسؤلیت ادا کړی وي.

ښاغلي عزام هم په لنډ وخت کې د کتاب ژباړه ډېره په زړه پورې او روانه ښه بشپړه کړه چې د الله جل جلاله له درباره ورته غوره بدله او ستر اجر غواړم.

د کتاب ژباړه او د ژباړن لخوا یې تر چمتو کېدو وروسته دبنسټ د علمي څېړنو څانګې مسلکي کتنپلاوي او کمېټې د خپلې کاري کړنلارې سره سم د ژباړې محتوا او د کتاب علمي او د سمونې بیا کتنه هم بشپړه کړه، چې دا دی د چاپ او خپراوي جوګه شو.

افغان بنسټ په پام کې لري دې ته ورته نور علمي خدمتونه هم ټولنې ته وړاندې کړي، له درنو علماوو او پوهانو څخه هیله کوو چې خپلې ګټورې مشورې او علمي مرستې راباندې ولوروي، څو په دین مین افغان ولس هغه ارمان چې د یوې بشپړې اسلامي ټولنې په لار کې یې لري څه ناڅه پوره کړای شو.

**په هېواد کې د بشپړ اسلامي نظام په هیله**

**ملا عبدالسلام "ضعیف"**

**د افغان بنسټ مشر**

**۲۰/جمادي الثانیة/ ۱۴۳۵ق**

# سريزه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين، والصلواة والسلام على رسوله الكريم وعلى آله و أصحابه أجمعين.

اما بعد !

په دارالعلوم کراچي کې د معمول سره سم د نصابي تعليم تر څنګ وخت ناوخته د مختلفو اړتياوو له مخې ځينې تعليمي غونډې او سمينارونه هم کيږي. په دې لړ کې يو سمينار د اقتصادي مسائلو په تړاو جوړ شوی و چې د هغه ويناوې شهيد مفتي مجاهد صيب ترتيب کړې وې، او بيا هغه زما خوار کي د بيا کتنې وروسته د "اسلام اور جديد معيشت و تجارت" (اسلام او نوی اقتصاد) په نوم په کتابي بڼه خپرې شوې. په دې سمينار کې چې کومو علماوو ګډون کړی و هغوی پر دې خبره ټينګار کاوه چې دغه راز دې يو بل سمينار د سياست پر موضوع هم را وبلل شي چې په هغه کې د سياست علم بنسټونه، په نړۍ کې مختلف دوديز سياسي اندونه او د حکومتي نظامونو تعارف وشي او د دې تر څنګ دې د اسلامي سياست بنسټيز اصول او په اوس وخت کې د دې پر عملي لارو چارو بحث وشي.

همداسې وشول، د (۱۴۱۶هـ ق) کال د صفرې په مياشت کې په دې اړه يو سمينار راوبلل شو چې په هغه کې د دې تورو ليکوال د مشرانو په لارښوونه د سياست په اړه د خپلې مطالعې غورچاڼ وړاندې کړ. په دې سيمينار کې هم د هېواد له بېلا بېلو سېمو راغليو عالمانو، د ديني مدرسو استاذانو او مفتي صاحبانو ګډون کړی و او خواو شا دوه اونۍ روان و.

د سيمنار ټولې وېناوې ثبت شوې وې، او داسې ويل شوي و چې دادې خوندې کړل شي او بيا دې له دويمې کره کتنې وروسته خپرې کړل شي. د دې سيمينار په ګډونوالو کې تر ټولو لومړی عبدالله ميمن صيب په ډېر زيار سره هغه وېناوې په ليکلې بڼه مرتبې کړې. خو تر ډېرې مودې يې زما بيا کتنې ته اړښې وې او د خپرولو وار يې نه و راغلی، په دې وخت کې مولانا محمد مزمل کاپړي صيب زما د بيا کتنې د آسانه کولو د پاره په پيته کې خوندې وېناوې په کمپيوټر کې ټکي په



ټکي وليکلې. مولانا محمد مزمل صيب د ډېر لوړ همت څښتن دی، نوموړی د ګوردې ناروغي هم لري او په اونۍ کې څلور ځله د ګوردې سپايي (Dialysis) کوي، د ګوردې سپايي پروخت څوساعته لګيږي، نو موږ به په دې وخت کې د ټيپ پيټې اوربدلې، لومړی به يې پر کاغذ او بيا به يې په کمپيوټر ليکلې، تر دې چې ټولې وېناوې يې کمپوز کړې. الله تعالى دې د نوموړي په ژوند، علم او عمل کې برکت کړي او د دې خدمت غوره بدله دې په دنيا او اخرت کې ورپه برخه کړي. آمين

بيا ما د نوموړي ليکلي ټول فايلونه په خپل کمپيوټر کې خوندې کړل، او چې کله به مې چېرې سفر کاوه؛ نو د سفر پر وخت به مې د دې وېناوو بيا کتنه او سمونه کوله. تر دې چې په دوه نيم کلونو کې مې د مختلفو سفرونو پر مهال د الله تعالى په مرسته دا کار بشپړ کړ. خو د دې د پای ته رسولو د پاره مې پر ځينو برخو په کور کې نظر واچاوه. او د الله تعالى په مرسته دا ټولګه په کتابي بڼه تياره شوه او اوس دادی لوستونکو ته وړاندې کيږي.

دکتاب په اړه ځينې خبرې د يادولو وړ دي:

۱. دا کتاب پخپله زما تاليف نه دی بلکې دا د علماوو د هغو وېناوو ټولګه ده چې په دې تعليمي سيمنار کې يې کړي وې.

۲. د بيا کتنې پر وخت ما د مولانا عبدالله ميمن صيب او ښاغلي محمد مزمل صيب له کاره ډېره ګټه پورته کړه. الله تعالى دې دوی دواړو ته د دې ستر کار غوره بدله په دنيا او اخرت کې ورکړي او دوی ته دې ظاهري او باطني پرمختګ ورپه برخه کړي. آمين

۳. د بيا کتنې پروخت ما يوازې د متن ښه والي ته پام نه دی کړی، بلکې کومې خبرې چې راته د کتاب د پاره اړينې نه دي ښکاره شوي هغه مې لرې کړي، دغه راز د کتاب بنيادي چوکاټ پرهمغه درسي وېناوو راڅرخي؛ خو د ترتيب او مضامينو په انتخاب کې يې د پام وړ بدلون راغلی چې په پايله کې يې د يو مستقل کتاب بڼه غوره کړه.

۴. کتاب پر دوو برخو وېشل شوی، په لومړنۍ برخه کې دسياست علم څېړنه، مختلف اندونه او د دې اندونو پربنسټ جوړ شويو حکومتونو ته کتنه شوې. (خو

د دې ترڅنګ چېرې چې اړینه وه ، د اسلام له لید لورې پر دې باندې نیوکه او تبصره هم شوې ده). په دې برخه کې ما د عربي، انګریزي او اردو ژبو له کتابونو ډېره ګټه اخېستې؛ نو د دې مسائلو د بیانولو پروخت د کتابونو حواله ګرانه هم وه او ډېره اړتیا هم ورته نه برېښېدله ځکه چې دلته هغه مضامین بیان کړل شوي دي چې د سیاست په علم کې منل شوي ګڼل کیږي.

خو دویمه برخه بیا د سیاست په اړه پر اسلامي حکمونو او لارښوونو راڅرخي، او په دې کې د اسلامي امت فقهاء او متکلمینو مختلف نظرونه هم بیان شوي دي. نو ځکه په دې برخه کې د قرآن او سنت، د فقهاوو او متکلمینو د رایو او د لائلو د پاره د اصلي مأخذ حوالې ذکر کولو ته پوره پاملرنه شوې ده.

(۵) دا کتاب په بنیادي توګه د درس نظامي د فاضلانو د پاره لیکل شوی ، نوځکه د مضامینو په انتخاب کې د دوی اړتیاوو ته ډېره پاملرنه شوې ده. د دې ترڅنګ دا هڅه هم شوې چې د وینا طرز آسانه او عام فهمه وساتل شي څو د هرې طبقې خلک ترې په اسانه ګټه پورته کړای شي.

دغه راز دا له یوې خوا د مختلفو سیاسي اندونو او وسنیو دودیزو حکومتي نظامونو تعارف دی، او له بلې خوا د سیاست په اړه د اسلام بنیادي اصولو او حکمونو داسې ټولګه ده چې له دې څخه به ان شاء الله په اوسنۍ نړۍ کې د یو اسلامي ریاست د بنسټیزو سرچینو په راښکاره کولو کې کار واخېستل شي.

الله تعالی دې د دوی خدمتونه په خپل دربار کې قبول کړي. او الله پاک دې دا کتابګوټی د دې امت د پاره ګټور وګرځوي چې زموږ د سیاسي هلوځلو لیدلوري په ټاکلو او په سهي معنی اسلامي ریاست قائمولو کې ترې ګټه واخېستل شي. آمین. وماتوفیقي إلا بالله علیه توکلت وإلیه أنیب

**محمدتقي عثماني عفي عنه**

**دارالعلوم کراچي**

**د روژې ۲۶ مه ۱٤۳۱هـ**



# د ژباړن یادښت

د اسلام د لمر راختلو وړاندې د نړۍ ټول افوقونه په تورو تیارو کې ډوب وو ، د ځمکې پر مخ داسې نظام نه و ، چې حق او باطل سره جلا کړي، هرې خواته د جهل تیارې خپرې وې، د نړۍ مخ مستبدو نظامونو اشغال کړی و او انسانانو د بندګانو غلامي کوله. د قیصر او کسری دکتاتورانو چې به څه زړه غوښتل هغه به یې په خلکو منل، تر دې چې د فاران (مکې مکرمې) له غرونو د اسلام لمر راښکاره شو او په لږه موده کې یې د نړۍ ډېره برخه رڼا کړه او د اروپا څنډې اندلس ته هم ورسېد.

اسلام د نړۍ لپاره داسې یو نظام وړاندې کړ چې د ټولو خلکو حقوق پکې خوندي دي، انسان یې د بنده له غلامۍ خلاص کړ او خپل رب ته یې ور وباله او هغې پوښتنې ته یې د پای ټکی کېښود چې زرګونه کاله یې د پوهانو فکر بوخت ساتلی و ، چې پردې نړۍ لومړنی نظام څه ډول رامنځ ته شوی.

ستاسې په لاس کې کتاب په عامه اصطلاح له بابا آدمه تر دې دمه د ټولو نظرونو او افکارو غورچاڼ را ټول کړی دی. د نړۍ نظامونه څه ډول رامنځ ته شوي دي او تر شا یې کومه فلسفه وه؟ د یونان پخوانیو پوهانو د سیاسي نظام په اړه څه نظریات وړاندې کړي وو؟ اشراف واکي، شاهي نظامونه، تیوکراسي، فاشیزم، نیازیزم، اوسنۍ ډیموکراسي، د نړۍ د ځینو هېوادونو سیاسي نظامونه او ټاکنیزې ځغاستې او د غه راز په نننۍ نړۍ کې دوه منلي ریاستي او پارلماني نظامونه او ځیني نور... دا هغه موضوعات دي چې د کتاب لومړۍ برخه یې په بر کې نیولې ده.

په دویمه برخه کې بیا پر اسلامي نظام رڼا اچول شوې ده، د رسول الله صلی الله علیه وسلم او راشده خلفاوو د لارښوونو په رڼا کې په اوسني پېر کې د اسلامي نظام راوستلو پر لارو چارو بحث شوی دی او د نننۍ نړۍ دودیز

نظامونه او ټاکنيزې چارې له اسلامي شريعت سره پرتله شوې دي، همدارنګه د کتاب په پای کې د اسلامي دستور په اړه ځينې بنسټيزې مادې او مشورې هم وړاندې شوې دي.

دا کتاب د علماوو د لس ورځني سياسي سيمنار په پايله کې ليکل شوی او بيا د منلي عالم مفتي محمد تقي عثماني تر کره کتنې او زياتونې وروسته په اردو ژبه چاپ شوی.

دا چې کتاب پرخپل ځای ډېر مهم دی او د سياست په اړه داسې څه نشته چې په دې کې به پرې رڼا نه وي اچول شوې، دغو ټکو ته په پام، د افغان بنسټ مشرتابه وپتېيله، چې دا کتاب پښتو ژبې ته وژباړل شي څو ګران هېوادوال ورڅخه ګټه واخلي او د اسلامي سياست له آرونو خبر شي.

د بنسټ مشرتابه ته دې الله اجر ورکړي چې د داسې کتاب د چاپ په اړه يې پرېکړه او هوکړه وکړه او زه يې د دې چارې بشپړولو ته وهڅولم، نور نو تاسو او سياسي اندونه.

**مولوي نورالله عزام**

**جامعه قاسميه**

**۵ رجب/۱۴۳۳هـ ق**



## د پيل وينا

**مولانا مفتي محمدرفيع عثماني**

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

د دارالعلوم ټولو درنو استاذانو او د دې مدرسې سره مينه لرونکو علماء کرامو د پاره ډېر د خوښۍ او هيلې ځای دی چې نن مونږ د داسې مسائلو پرلور پرمختګ کوو چې د عامو مسلمانانو په ځانګړې توګه د عالمانو لپاره يې تقريبا د ژوند په هر ډګر کې نوي نوي خنډونه را ولاړ کړي دي.

د پنځلسمې پېړۍ په پای ته رسېدو سره د اسلام ستر مرکز اندلس د مسلمانانو له لاسه ووت، او دا هغه ښار دی چېرې چې مسلمانانو خواو شا زر کاله په ستري دبدبې نه يوازې حکومت وکړ بلکې هغه مهال دا ښار د ټولې نړۍ د اسلامي او مادي علومو سرچينه وه، عجيبه خو لا داده چې له کومې ورځې د مسلمانانو سياسي زوال پيل شوی، له همغې ورځې په اروپا کې نوي پرمختګونو او نوښتونو سر راپورته کړی. اندلس له لاسه وتل د مسلمانانو د زوال او د اروپا د پرمختګ پيلامه وه، څرګنده ده چې تر دې وړاندې دغه اروپا له هر لوري د جهالت او ستم په تورو تيارو کې ډوبه وه.

د اندلس له سقوط خواو شا يوه پېړۍ وروسته اروپا يوه ستره کاميابي دا ترلاسه کړه چې له يوې خوا يې د امريکا لويه وچه وموندله او له بلې خوا "واسکوډي ګاما" د هندوستان سمندري لار وموندله، ځينې نورې وړې وړې پېښې هم کيږي، خو د دوی اغيز له څو پېړيو راهيسې راروان دی، دا په ښکاره دوه وړې پېښې وې، خو دې دوو پېښو د ټولې نړۍ تاريخ او جغرافيه بدله کړه او په ډېرو ولسونو کې يې انقلاب راوست.

په اروپا کې صنعتي پرمختګ پيل شو، نوی ساينس او نوي ټيکنالوجي په ډېره چټکۍ پرمخ ولاړه چې دا تر ډېره بريده د اندلس علماوو د پوهې له

برکته منځ ته راغلي و ، د اندلس عالمانو کتابونه ډېر کم مو‌ږ ته رارسېدلي، له دې کتابو زیاته ګټه اروپایانو پورته کړه. له دې وروسته د اروپا په فکري ډګر کې هم په ډېره بېړه بدلونونه راغلل، د روښان اندۍ پېر پیل شو او په دې هېوادونو کې اقتصادي او سیاسي ودې په غوړېدا پیل وکړ. د انګلستان انقلاب او په ۱۸ مه پېړۍ کې د فرانسې سیاسي انقلاب په نړۍ کې ډېر ستر بدلونونه راوستل. دا دواړه داسې انقلابونه ول چې د ټولې نړۍ پر حالاتو او ژوند یې اغېز وکړ.

موږ د مسلمانانو په توګه او په ځانګړي توګه دیني علومو سره د تړاو له امله چې نن په کوم پېر کې ژوند کوو ، زموږ د پاره تر ټولو ستر ګواښ په دیني ارزښتونو ، دیني رواجونو ، عقائدو او فقهي ډګر کې د هغو مسائلو حل او ځوابونه موندل دي چې دې لویو لویو انقلابونو راټوکولي دي.

لنډه دا چې ډېر ډګرونه شته چې په هغو کې د عالمانو د بشپړ صلاحیتونو کارولو اړتیا ده او دا د اوسني حالاتو له امله چې دومره ستر ډګرونه په داسې حالاتو کې خالي دي چې مسلمانان د خپل وخت تر ټولو ستر زوال سره لاس وګرېوان دي. زموږ د اسلافو په زمانه کې چې هغه مهال د امام ابوحنیفه او نورو مجتهدینو او امامانو په څېر شخصیتونه موجود وو ، هغه زموږ د عروج وخت و ، هغه مهال د یونان فلسفه منځ ته راغله، دیني عالمانو په هغې کې مهارت پیدا کړ او د هغې ځوابونه یې وویل، نوي حکومتونه رامنځته شول او مسلمانانو زیات شمېر سیمې فتح کړې، د فقهي مسائلو نوي ډګرونه پرانېستل شول، د مسائلو د حل کولو د پاره د وخت نوابغ، فقهاء او مجتهدین موجود وو. د ابومنصور ماتریدي، فخرالدین رازي او امام غزالي په څېر پوهان او نړېوال متفکرین موجود ول.

ښایي نننی انقلاب تر هغو هم زیات نړېوال وي او زیات پېچلي مسائل را وټوکوي؛ خو نن امت د خپل وخت تر ټولو په زیات کړکېچن پېر کې ژوند



کوي ، په عالمانو کې هم هغه صلاحیتونه او جسماني ځواک نشته چې په مخکنیو هغو کې وو او نه هم هغسې اخلاص او تقوا پاتې ده؛ خو الله تعالی خپل دین ساتي او ان شاء الله تر قیامته به یې ساتنه کوي. په هر پېر کې په امت کې داسې شخصیتونه پېدا کیږي چې د دې مسائلو اسلامي حل امت ته وړاندې کوي.

نن په نړۍ کې پنځه داسې ستر ډګرونه دي چې په هغو کې کار ته ډېره اړتیا ده، یو فکري او فلسفي ډګر دی. د یونانیانو فلسفه له مادي او بې دینه نظریاتو سره منځ ته راغلې وه، کله چې مسلمانانو هغه عربي ژبې ته راوژباړله؛ نو د اسلامي نړۍ عالمانو زده کړه او د هغې په طرز استدلال کې یې مهارت پېدا کړ او بیا یې له همدې استدلاله د دې بې دینه فلسفې د ماتولو د پاره د وسلې په توګه کار واخیست.

دا زموږ د مشرانو یوه ستره کارنامه وه. دغه ډول یو ستر ګواښ نن هم د فلسفې له امله منځ ته راغلی دی، نن چې کومه فکري بېلاري را پېدا شوې ده، تاسو ولېدل چې د دې ټولو ربښه مادي فلسفه ده. په مادي ډګر کې مخامخ زموږ پر عقائدو برېد کیږي، نو اوس د دیني عالمانو دنده ده چې نوې فلسفې د اسلامي عقائدو په اړه کومې نوې پوښتنې او شکونه راپېدا کړي د هغو ځوابونه ووایي، او داسې رول ولوبوي لکه زموږ اسلافو چې لوبولی و ، هغوی د دښمن فلسفه زده کړه په هغې کې یې ځانونه ماهر کړل او بیا یې همدا فلسفه د هغوی پرضد د وسلې په توګه وکاروله او اسلامي عقائد یې ثابت کړل.

دوهم اقتصادي ډګر دی، او د دې ډګر بازار د انګلستان له صنعتي انقلاب وروسته ډېر ګرم شو ، او د همدې اقتصادي ډګر له امله دوه ستر ستر نظرونه او نظامونه منځ ته راغلل او ټولې نړۍ ولېدل، یو پانګه وال نظام او بل د دې پرضد سوسیالیستي نظام.

پر مسلمانانو فرض دي چې روښانه کړي د پانګه وال او سوسیالیستي نظام ترمنځ اسلام څه حکم کوي؟ د اسلام اقتصادي نظام څه دی؟ په نننۍ نړۍ کې اقتصاد تر ټولو ستره او مهمه مسئله ګڼل کیږي، همدې په فقهي ډګر کې بې شمېره داسې پېچلې او ګرانې پوښتنې راپېدا کړي چې د هغو حل کول ډېر کوښښ ته اړتیا لري.

الحمد لله، پـه دې ډګرکـې ډېـر کـار شـوی دی او کیـږي او دغـه راز پـه اقتصادي او سیاسي ډګرونو کې هم د ديني عالمانو ډېر کار کړی دی؛ خو څه چې شوي دي هغه بس نه دي نور کار ته هم اړتیا شته.

دریم د سیاست ډګر دی. په سیاست کې نوي نوي افکار منځ ته راغلل، حکومتونه په نوې بڼه جوړ شول او نوي مسائل یې راوټوکول ، ديني عالمان دنده لري چې په دې تړاو د اسلام دریځ په ډاګه کړي او دا څرګنده کړي چې کوم سیاست اسلامي او کوم بې دینه دی؟ او اوسنی نظام چې د دیموکراسۍ یا په بل نوم چلیږي په دې او اسلام کې څومره امتیاز دی؟

څلورم د طب ډګر دی. د طب په ډګر کې نوي انقلاب نااشنا ایجادات وکړل او له دې امله بې شمېره فقهي مسائل منځته راغلل، او بې شکه چې د فقهاوو او مفتیانو د پاره دا یو ستر ګواښ دی، ځکه چې په دې اړه پوښتنې کیږي چې پلانی کار روا دی او که ناروا؟ پلانۍ ډول درملنه روا ده که څنګه؟ الحمد لله په دې تړاو هم ديني عالمان وېده نه دي او پوره کار کوي، په ټوله اسلامي نړۍ کې فقهاء او مفتیان صاحبان کار کوي؛ خو څومره کسان چې په دې ډګر کې کار کوي هغه کافي نه دي.

پنځم د قانون ډګر دی، په حقیقت کې د دې ډګر لومړۍ خښته اېښودونکي مسلمانان دي، مسلمانانو چې قانون د فقهي په بڼه په کوم ډول مدون کړ په نړۍ کې یې تر دې وړاندې ساری نه و لیدل شوی. خو له دې



وروسته قانون یو مستقل فن او علم وګرځېد او اروپا هم د دې سرچینه ګڼل کیږي. په دې ډګر کې هم الحمد لله ديني عالمانو کار کړی او کوي یې خو لا هم ډېر کار ته اړتیا شته.

دا پنځه هغه ستر ډګرونه دي چې موږ ته یې نوي نوي مسائل را وټوکول. په دې پنځو واړو ډګرونو کې کارکولو ته ډېره اړتیا ده، او د دې ربښتونې او کامیابه لار داده چې یو شمېر شخصیتونه خپل پوره ژوند دې ته وقف کړي او دا ډګرونه وساتي ، په تېر هر فن کې تخصصات وکړي، که ځینې خلک یو ډګر او ځینې بل او ځینې نور بیا بل ډګر ته خپل ژوند وقف کړي نو هغه مهال به د دې مسائلو سهي حل ترلاسه کړای شي.

خو که ټول لاس تـه نـه راوړل کیږي نو پرېښوول خو یې هم سهي نـه دي. الحمد لله دارالعلوم ته دا ویاړ وریـه برخه دی چې مولانا مفتي محمد تقي عثماني (الله تعالی دې پـه عمر او علم برکت کړي) پـه اقتصادي ډګر کې د پاکستان مسلمانانو فرض کفایي ادا کړ. نوموړی دې مسائلو ته ننوت او بېخ ته یې ورسېد او بیا یې دا علم له اسلامي لارښونو سره مقایسه کړ او د اسلامي اقتصاد حل لارې او اقتصادي لارښوونې یې خلکو ته په داسې ډول وړاندې کړې چې خلک پوه شي چې د نني مسائلو اسلامي حل څه دی؟ او د خدای پاک په فضل په دارالعلوم کې د تېر ځل غونډه هم د همدې مسائلو په تړاو رابلل شوې وه چې د رواني غونډې زیاته برخه هغه عالمان تشکلوي چې په هغه غونډه کې یې ګډون درلود ، دوی ډېره ګټه ترلاسه کړه او د هغې غونډې په نتیجه کې یو کتاب "اسلام اور جدید معیشت و تجارت" هم ولیکل شو چې د خدای پاک په فضل اوس په اقتصادي ډګر کې د بنسټ د لومړۍ ډبرې ځای لري او باید نور کار هم وشي.

لکه تاسو ته چې معلومه ده روانه غونډه د سیاست په اړه رابلل شوې ده، الله پاک دې دا غونډه هم د تېرې په څېر کامیابه وګرځوي، او په دې غونډه

کې چې کومو عالمانو ګډون کړی الله پاک دې د مجلس په پایله کې په هغو کې داسې شخصیتونه پیدا کړي چې په دې ډګرونو کې یو ډګر د خپل ژوند محور وګرځوي.

تاسو ډېر اوږده سفرونه وکړل او له ډېرو ستونزمنو سفرونو وروسته مو دلته تشریف راوړ ، زه چې تاسو ته ګورم زړه مې درته دعا کوي او بیا بیا مې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا وینا په زړه کې راګرځي چې: "من سلک طریقا یلتمس فیه علما سهل الله له به طریقا الی الجنة"(۱) الحمد لله تاسو پر ډېره مبارکه لار روان یاست او ډېر له برکته ډک سفر مو کړی دی، ستاسو د دې سفر یوه یوه شیبه ډېره قیمتي او د قدر وړ ده، او که خدای کول د الله تعالی په نزد به هم ډېره د قدر وړ وي، الله تعالی دې ستاسو ټولو ستړیاوې پخپل دربار کې قبولې کړي او کومه غونډه چې روانه ده الله دې ټول ګډون وال د دې له ګټو پوره برخمن کړي.

**واخر دعوانا ان الحمدلله رب العالمین**

۱) سنن الترمذي، آبواب العلم، حدیث:۲۶۴۲ وقال هذا حدیث حسن.



## د موضوع پېژندنه

الحمدلله رب العالمین والصلاة والسلام علی سیدنا ومولانا محمد النبي الامین وعلی آله و اصحابه أجمعین ، وعلی کل من تبعهم بإحسان الی یوم الدین.

**درنو علماوو! لکه تاسو چې خبر یاست دا ښوونېزه دوره د سیاست په اړه جوړه شوې ده، او د دې شالید مولانا محمد رفیع عثماني صیب په ځرګندو ټکو تاسو ته وړاندې کړ. له نن نه خواو شا دوه کاله وړاندې چې کله دلته د اقتصاد او تجارت په اړه ښوونیز سیمنار را وبلل شو؛ نو هغه مهال ګډون والو دا غوښتنه وکړه او پخپله موږ هم هیله درلوده چې دغه راز یو سیمنار دې د سیاست په اړه هم راوبلل شي؛ خو د ډېرو بوختیاوو له امله مو وخت نه درلود چې دا سیمنار جوړ کړو. اوس زموږ ځینو مخلصو استادانو دا وړاندیز وکړ چې د درې میاشتنۍ ازمویني پر مهال دې دا سیمنار را وبلل شي، که څه هم ما د ډېرو بوختیاو او خپلې نا اهلۍ له امله د دې کار اقدام نشو کولی؛ خو له یوې خوامې د خپل ګران پلار ارواښاد مفتي محمد شفیع رحمه الله یوه وینا را په زړه شوه او بل د مولانا خیر محمد صیب وینا چې خپلو استادانو ته یې واوروله. قبله ګاه صاحب به ویل چې د وخت نه لرلو له امله یو کار ځنډول هیڅکله سر ته نه رسیږي بلکې د کار کولو کړنلاره داده چې د دوو کارونو ترمنځ دې دریم کار هم په زوره ورځای کړل شي او که داسې وشي؛ نو الله تعالی به دا دریم کار هم درته اسانه کړي.**

**او د مولانا خیر محمد صیب خبره زموږ استاد مولانا مفتي رشید احمد صیب تاسو ته وړاندې کړه، نوموړي وویل: "یو کار د بوختیا له امله ځنډول په دې معنا دی چې دا کار بې اهمیته دی، د کوم کار چې اهتمام وي د هغه اهمیت هم وي او د هغه د سر ته رسولو د پاره سړی وخت ځانګړی کوي، او که یو کار له دې امله وځنډول شي چې وخت نشته؛ نو د دې معنی داده چې په زړه کې د دې کار اهمیت نشته" د دې دوو ویناو پر بنسټ مو وپتېیله چې په دې درې میاشتنۍ ازموینه کې به د الله تعالی په مرسته دا کار پیلوو، الله تعالی دې پخپله لورینه او مرستې زموږ دا اقدام ګټور وګرځوي، او الله دې ماته توفیق راکړي چې ستاسو، چې له ډېر لرې دلته راغلي یاست په سهي توګه خدمت وکړای شم.**

**لکه مخکې چې صدر صیب (مفتي رفیع صیب) تاسو ته وویل، مسلمانان په ځانګړي توګه دیني عالمان په نن عصر کې له مختلفو لارو د بېلابېلو ګواښونو سره**

مخ دي، چې نوموړي ټول تفصيل په ډېرو ښو ټکو کې وړاندې کړ، نوموړي د خپلې وينا په ترڅ کې وويل چې د عالمانو د پاره پنځه ډګرونه دي چې دوی کولای شي په هغو کې کار وکړي. زما په اند په دې پنځو ډګرونو کې د اقتصاد او سياست ډګرونه تر نورو هغو زيات مهم دي. دا د ژوند هغه دوه اړخونه دي چې په نننۍ نړۍ کې يې د انسانانو پر ژوند ډېرې ژورې اغېزې ښندلې دي. او له بلې خوا دا هغه پراخه ډګر دی چې په اړه يې په عامه توګه بيابيا دا پوښتنه کيږي چې که په دې دواړو ډګرونو کې اوسني دوديز افکار او دوديز اصول د اسلام خلاف وګرځول شي؛ نو په دې کې د اسلام د اصولو نافذولو عملي تګلاره څنګه کېدلی شي؟ لکه څرنګه چې دا پوښتنه کيږي چې الله تعالی سود حرام کړی دی او ديني عالمان وايي چې نن کوم نظام د سود پر بنسټ چليږي هغه غير اسلامي دی؛ نو پر اسلامي بنسټ او له داسې لارې چې په هغې کې سود نه وي اقتصاد څه ډول وچلول شي؟ دا رنګه دويمه پوښتنه داده چې نن په نړۍ کې کوم سياسي نظرونه دود دي، او د بېلابېلو نظرونو پر بنسټ حکومتونه تشکيليږي، که دا سياسي نظرونه د اسلام خلاف دي يا د دې لارښوونې له اسلام سره ټکر لري؛ نو نن بايد څه ډول حکومتي نظام جوړ کړل شي؟ مثلا د مختلفو ډلو له خوا دا دعوه کيږي چې په اسلام کې شاهي نظام نشته، آمريت نشته، او کوم خلک چې څه ناڅه پوهيږي هغوی له دې سره سره دا هم وايي چې د اسلام حکومتي نظام له جمهوريت سره هم ډېر موافق نه دی؛ نو بيا د اسلام حکومتي نظام څه ډول دی؟ او په اوسني پېر کې د دې د پلي کولو تګلار بايد څه ډول وي؟

لکه څرنګه چې د اقتصاد په اړه پوښتنې کيږي دا راز دغه پوښتنې د سياست په اړه هم کيږي. د همدې موخې د پار چې تر دې وړاندې کومه غونډه شوې وه هغه د اقتصاد او تجارت په تړاو شوې وه، او داځل داسې پټېيل شوې ده چې په دې غونډه کې به په ځانګړې توګه د سياست په اړه بحث کيږي، او په دې لړ کې به مختلفو سياسي اندونو ته کتنه کيږي او دا خبره به په ډاګه کيږي چې په دې دور کې د اسلامي حکومت عملي بڼه څه ډول رامنځ ته کېدلی شي؟ د همدې موخې د پاره دا لس ورځنی تربيتي سيمنار رابلل شوی دی، څرګنده ده چې په دې لنډه موده کې د موضوع ټول اړخونه نشي څېړل کېدلی ځکه چې سياست يو مستقل علم دی، او پر دې ډېر ستر ستر کتابونه ليکل شوي دي او دا يو ډېر ستر علم ګڼل کيږي، دې ته د سياست علم (Political science) وايي. خو ان شاء الله تر وسه وسه به کوښښ کيږي چې د دې موضوعاتو پېژندنه او لنډيز وړاندې کړل شي.



## د سياست علم پېژندنه

د سياست علم کوم نوی فن نه دی، بلکې دا علم په نړۍ کې له ډېر پخوا راهيسې رواج دی، که تاسو ميبذي يا د فلسفې بل کوم کتاب لوستی وي، هغوی حکمت او فلسفه پر دوه ډوله ويشلې ده:

**۱- نظري حکمت** **۲- عملي حکمت**

دلته موږ يوازې د "نظري حکمت" په اړه معلومات درکوو چې په هغه کې طبعيات، عنصريات، فلکيات او الهيات ټول راځي، د حکمت دوهمې برخې ته چې د ميبذي په سريزه کې راوړل شوې ده "حکمت عمليه" وايي او هلته بيا همدا حکمت په دوو برخو ويشل شوی دی، لومړی "سياست مدني" او دوهم "تدبير المنزل"؛ نو "سياست مدني" د عملي حکمت يوه برخه ده، او د دې په اړه له هغه وخت نه سوچ او فکر او څېړنې کيږي له کوم وخت نه چې فلسفه منځ ته راغلې ده.

## د سياست لومړنی کتاب

زما د معلوماتو له مخې، د سياست پر موضوع لومړنی کتاب "افلاطون" ليکلی دی، نوموړی د "سقراط" شاګرد و او له خپل استاد سره يې دزده کړې پر مهال د سياست په اړه ډېر بحثونه کړي و، او ډېر معلومات يې تر لاسه کړي ول او بيا يې هغه ټول په يوه او زده کړې چې هغه مهال يې لرلې راټولې او په خپل کتاب "جمهوريت" کې يې په مرتب ډول خپرې کړې.

د دې کتاب انګريزي ژباړه د "**Republic**" په نامه خپره شوې ده او ښکاري چې د سياست په اړه په نړۍ کې دا لومړنی کتاب دی، ځکه چې افلاطون د عيسی عليه السلام نه شاوخوا ۴۰۰ کاله وړاندې تېر شوی دی، او هغه په دې کتاب کې د سقراط د لارښوونو ترڅنګ خپلې تجربې او معلومات هم

راټول کړي دي. زموږ په کتابتون کې ددې کتاب اردو ژباړه شته، چې کله موهم موکه ترلاسه کړه داکتاب هرومرو وګورئ.

داکتاب دخپل وخت دلیکنې او فکري طرز یوه بېلګه ده، حجم يې ښه لوی دی؛ خود لیکنې طرز ته په کتو پوهېدل پرې ډېرګران کاردی.

دا دکتاب په بڼه په مسلسل ډول نه دی لیکل شوی؛ بلکې داد سقراط او د "اتن" داوسېدونکو ترمنځ دیوه دیالوګ اوخبرو په څېر لیکل شوی دی، په دې کتاب کې هغه وایي: "ماله پلاني سره ولیدل، هغه رانه داپوښتنه وکړه او ما داځواب ورکړ"، او د "افلاطون "دیالوګ اوخبرې خو په نړۍ کې نوم لري.

علامه اقبال د مېرمنې په اړه په خپل شعر کې داسې وايي:

وجودِ زن سے ہے تصویرِ کائنات میں رنگ
اسی کے ساز سے ہے زندگی کا سوزِ دروں

مکالمات افلاطون نہ لکھ سکی، لیکن
اسی کے شعلے سے ٹوٹا شرار افلاطون

په دې شعري کرښو کې د افلاطون همدې مکالماتو ته اشاره شوې ده ځکه چې دهغه ټول کتابونه دمکالماتو (خبرو) په بڼه لیکل شوي دي، "جمهوریت" کتاب هم دخبرو اترو په بڼه لیکل شوی دی او په سیاست کې دبنسټ لومړنۍ ډبره بلل کېږي؛ خوپه دې کتاب پوهېدل او له هغه څخه کومه نتیجه را اېستل ګران کاردی، ځکه چې د کتاب زیاتره خبرې په تمثیلي بڼه لیکل شوي دي او ځینې خبرې بیا ناڅرګنده لیکل شوي دي ؛ خو دا یو ښکاره حقیقت دی چې دا کتاب د سیاست په موضوع په نړۍ کې لو مړنی ځای لري، او دجمهوریت ویوکی هم په لومړي ځل افلاطون کارولی دی، له ده نه



وروسته د ده شاګرد "ارسطو" راغی، هغه په فلسفه کې دافلاطون شاګردي وکړه او دافلاطون په بې شمېره شاګردانو کې ترټولو لوړ مقام همده ترلاسه کړی دی تر دې چې نن په فلسفه کې دافلاطون ترنامه دارسطو نوم ډېر یادېږي ،نوموړي دافلاطون سره ډېره مرسته وکړه ، دهغه فلسفه یې په ګڼو کتابونو کې خپره کړه؛ نو ربښتیاهم چې داو سني ساﺋنس او فلسفې ټولو برخو بنسټ اېښوودونکی ارسطو دی او دساﺋنس او روغتیا چې څومره څانګې دي ، لکه : طب پوهنه ، ژوو پوهنه ، ځمکپوهنه ، فضا پوهنه ، علم البصریات، د دې ټولو علومو بنسټګر ارسطو دی.

دنوموړي یو کتاب د "سیاست" په نوم په سیاست پوهنه کې هم شته ، د دې کتاب عربي او اردو ژباړه ما تراوسه نه ده ترلاسه کړې او نه هم تر اوسه چاپ شوې ده ، دارسطو داکتاب په انګریزي ژبه د "**Politics**" په نوم چاپ شوی دی؛ خو دا په حقیقت کې دافلاطون د "جمهوریت" کتاب یوه پر مختللې بڼه ده.

لکه چې مخکې مو وویل، دافلاطون کتاب په ناپیېلي توګه دخبرو اترو یا ډیالوګ په بڼه لیکل شوی دی؛ خو شونې ده چې دارسطو کتاب به په سیاست کې لو مړنی منظم او مرتب کتاب وي چې په هغه کې سیاسي اندونه په ډېر ښه او تفصیلي توګه بیان شوي دي.

ماته ددې کتاب د یوې باوري برخې دکتنې موکه په لاس راغله، دهغې تر کتنې وروسته زه پوه شوم چې په فلسفه او د هغې په تګلاره او بنسټونو کې په وخت سره ستر بدلونونه راغي، موږ چې په میبذي او نورو کتابونو کې کومه فلسفه لولو ، هغه دارسطو فلسفه نه ده بلکې دا دفلسفې یوه څانګه ده چې وروسته منځ ته راغلې ده او دېته نوې افلاطوني فلسفه وایي ، میبذي ، هدیه سعیدیه ، او د صدرا شمس البازغه فلسفه په حقیقت کې نوي افلاطونیات دي چې د خپل وخت د بیان ځانګړی طرز او طریقه له همدې

فلسفې څخه له ورایه څرګندیږي؟ خو د ارسطو بنسټیز اصول د نوي افلاطوني فلسفې څخه بېخي بدل دي، د هغه په فلسفه کې د نظري اړخ پر ځای پر عملي اړخ ډېر ټینګار کیږي.

د ارسطو د دې کتاب عربي یا اردو ژباړه تر اوسه ما نه ده لېدلې، رښتیا هم چې هغه د عالمانو د لوستلو شی دی او په لوستلو سره یې سړی مالومولای شي چې ارسطو سیاسي فلسفه څه ډول بیانوي؟ او دا خبره هم ترې څرګندیږي چې زرګونه کاله وروسته خلک کومو نظریاتو ته نوي او پر مختللي نظریات وایي هغه ارسطو د عیسی علیه السلام نه درې یا درېنیمې پېړۍ وړاندې څه ډول بیان کړي دي؟ اوس هم د سیاست ټول پوهان پر دې یوه خوله دي چې د ارسطو کتاب "سیاست" د وروستیو ټولو نظریاتو بنسټ دی.

لنډه دا چې د سیاست علم له هماغه وخت څخه په نړۍ کې شته دی، سقراط، افلاطون او تر هغوی وروسته ارسطو په دې برخه کې ډېر کار کړی دی، دغه راز د ارسطو له بنسټونو سره سم تر هغه وروسته هم په دې اړه ډېر کتابونه لیکل شوي دي.

خو دا ټول خلک، ارسطو دی که افلاطون او که سقراط، هغوی یوازې د خپلو خیالاتو تعمیرونه جوړوي او کتابونه یې ټول د خپلو خیالي نظریاتو پر بنسټ لیکلي دي؛ خو کله چې مسلمانو عالمانو په دې اړه قلم پورته کړ؛ نو له هغوی سره الحمدلله د قران او سنت رڼا ده، هغوی د همدې رڼا د لارښوونې سره سم په دې برخه کې ډېر د پام وړ کار کړی دی، هغوی د "السیاسة الاسلامیة" په نوم یو ځانګړی فن ایجاد کړ چې په دې فن کې ډېر کتابونه لیکل شوي دي.

نو سیاست ډېر پخوانی علم دی او له ډېرې مودې راهیسې پر دې موضوع کتابونه لیکل کیږي، زموږ موخه د دې علم د ټولو برخو څېړنه نه ده، بلکې



دلته موږ یوازې هغه عملي اړخونو ته کتنه کوو چې نن عالمان ورسره مخ دي، او موخه مو هغه سیاسي اندونه وړاندې کول دي چې زده کړه یې اړینه ده، زه په خپله په ځانګړي ډول سیاست پوه نه یم، ما سره چې څه دي هغه یوازې زما د مطالعې تر ساحې پورې محدود دي، د همدې مطالعې پر بنسټ زه هڅه کوم په دې دوره کې د موضوع هغه اړخونه وڅېړم چې نن عالمان ورسره مخامخ دي، په دې اړه چې ما کوم غور چاڼ تیار کړی دی هغه پر یو څو مهمو موضوعاتو راڅرخي چې دلته یې په لنډه توګه یادونه کوو، او زه به هڅه کوم تر خپله وسه باوري معلومات درته وړاندې کړم.

## د دې دورې مهم موضوعات

۱. لومړنۍ موضوع دا ده چې په نړۍ کې ریاست یا "**State**" څه ډول منځ ته راغی؟ لومړی د کوم انسان په زړه کې د ریاست جوړولو تصور راوګرځېد، څوک حاکم او څوک به محکوم وي؟ په دې اړه په نړۍ کې کوم نظریات ډېر مشهور دي؟

د پورتنیو پوښتنو ځوابول ځکه اړین دي چې په نړۍ کې کوم نظامونه په عملي ډګر کې منځ ته راغلي دي له دې نظریاتو سره به یې په یو ډول نه یو ډول تړاو وي.

۲. دوهمه موضوع چې زه غواړم د هغې په اړه تاسو ته څه ناڅه معلومات وړاندې کړم هغه د بېلابېلو ریاستي نظامونو پېژندنه ده، معنادا چې په نړۍ کې څومره ریاستي نظامونه دود دي او د دې تر شا څه فلسفه ده؟ لکه: شاهي نظام، اشرافیه نظام (دین واکي)، فاشیزم او سوشلیزم، او دغه راز جمهوري یا ولسواکي نظام او د هغه بېلابېلې څانګې.

۳. دریمه موضوع د واک چلولو پېژندنه ده، د یوه سیاسي نظام تر سیوري لاندې د بېلابېلو حکومتونو د چلولو مختلف طرزونه وي، په هغو کې دا وي

چې حکومت څه ډول جوړیږي؟ د حکومت جوړولو له پاره څه ډول اداره منځ ته راوړل کیږي؟ او د دوی ترمنځ یو له بل سره څه ډول مرسته کیږي؟ او اړیکي څه ډول ساتل کیږي؟ دا او د بېته ورته نور هغه څه دي چې په همدې سره چارې پرمخ بیول کیږي، له دې نه زموږ موخه دا ده چې معلومه کړو په نړۍ کې نن کوم ډول حکومتونه روان دي؟ او کوم نظامونه چې پلي دي د هغو پوره څېړنه، ګټې او د دوی ترمنځ توپیریان کړو ، د بېلګې په ډول د پارلماني نظام او ریاستي نظام ترمنځ څه توپیر دی؟ څه ګټې او څه تاوانونه لري؟

۴. څلورم د دولتونو نظام پېژندلو په پای کې دا هم درته ښیو چې د قانون او دستور سرچینه څه شی دی؟ د غه راز په نړۍ کې د سیاسي نظامونو منځ ته راتلو لنډ تاریخ هم نه هېروو چې دا نظامونه څه ډول را منځته شول؟

تاسو به او رېدلي وي چې صنعتي انقلاب او د فرانس انقلاب د نړۍ د سیاسي نظامونو په بدلولو کې ډېرځواکمن رول درلود؛ نو ځکه د دې پېژندل هم اړین دي چې د فرانس انقلاب څه و؟ او پایله یې څه ډول شوه؟

۵. پنځم، په پای کې به پردې موضوع خبري وکړو چې د سیاست په اړه اسلام څه لارښووني کوي؟ عالمانو د سیاست په اړه څه ویلي دي؟ او بیا دا چې په اوس وخت کې د اسلامي نظام د پلي کولو او نافذولو له پاره څه ډول نقشه باید جوړه شي چې د اسلامي لارښوونو پوره پاملرنه هم پکې وشي او په موجوده وخت کې یې عملي بڼه هم منځ ته راشي.

دا هغه غورچاڼ دی چې ان شاء الله د همدې پربنسټ به موږ په راتلونکو درسونو کې درته له خپل وس سره سم معلومات وړاندې کړو.



## لومړۍ برخه

## لومړی څپرکی

### دولت څه ډول منځ ته راغی؟

د سیاست علم د حکومتي نظام بحث کوي، نو ځکه سیاستوال او فلسفیان لومړی پردې موضوع خبرېکوي چې ریاست څه ډول منځ ته راغی؟ معنا دا چې انسان څه ډول ځان په حکومتي نظام کې راوتاړه؟ حکومت څه ډول منځ ته راغی؟ د ریاست پېل څنګه وشو؟

په دې اړه له لومړي سره بېلابېل نظرونه موجود دي، له دې امله چې د دې نظریاتو اغیزوروسته د نظامونو په منځ ته راتلو کې ډېرو ؛نو دلته یې لنډه یادونه اړینه بولم.

پام مو وي چې کوم اندونه موږ بیانوو هغه یوازې د هغو خلکو نظرونه دي چې له اسماني لارښوونو څخه بې برخې دي، دوی هریو د حکومت منځ ته راتلو په اړه د عقل پر بنسټ خپل-خپل نظریات وړاندې کوي، او که څوک کومه رایه د خپل قیاس سره سم وړاندې کوي؛ نو د ځینو شواهدو او بېلګو وړاندې کولو کوښښ هم کوي.

#### ۱. د ټولنیز تړون نظریه

د سیاست په اړه چې په عامه توګه کوم نظرونه بیانیږي په هغو کې ترټولو لومړی د "ټولنیز تړون" یا "عمراني معاهدې" نظریه ده چې په انګریزي ژبه کې ورته (Social Contract) وایي، تاسو به د ټولنیز تړون نوم په کتابونو کې لوستی او رسنیو کې ډېر اورېدلی وي، د دې نظرلرونکي فلسفیان وایي چې کله انسان پر نړۍ پل کېښود هغه مهال نه حکومت و او نه هم دولت ، هر چا به د کوم واکمن پرته په انفرادي توګه خپل ژوند تېراوه چې سیاستوال

دا حالت په "فطري حالت" سره تعبیروي او په انګریزي ژبه کې ورته (State Of Nature) وایي، مانادا چې کله الله تعالی انسان دنړۍ پرمخ وپنځاوه، هغه مهال دژوند انه اړتیاوو دپرمخبېولو له پاره نه کوم دولت و، نه حکومت او نه هم کوم قانون و ، هر انسان به دخپل ژوند تېرولو لپاره خپله ځانګړې تګلاره کاروله او خپلې شخصي ګټې به یې ترلاسه کولې.

خو د دې نظریې څښتنان هغه خلک دي چې د الله تعالی د لاربښوونو څخه بې برخي و ؛ نو ځکه دوی فکر کاوه چې د ځمکې پرمخ یو وخت داسې هم و چې نه حاکم و اونه محکوم، چې همدې وخت ته دوی فطري حالت وایي، دوی وایي: "څرګنده ده چې په داسې حالت کې به دخلکو ګټې یو له بل سر ټکروې ، دیوه به ګټه په دې کې وه چې دا کار وکړي او دوهم به په هغه کار کې خپل تاوان لیده چې په پایله کې به دخلکو تر منځ جګړې رامنځته شوې؛ نوله همدې امله خلک سره راټول شول چې څه ډول داسې نظام جوړ کړي چې دهر چاګټې پکې خوندي وي او دخلکو ترمنځ دجګړو مخنیوی وشي، په پای کې دوی ټولو دا تړون وکړ چې ټول به دیوه نظام تر سیوري لاندې ژوند تېروي چې دهمدې تړون په نتیجه کې ریاست منځ ته راغی او خپل منځي جګړو او شخړو ته یې د پای ټکی کېښود، په دوی کې یو تن ځان مشر وټاکه او دخلکو دژوند له پاره یې ځانګړي قوانین غوره کړل او ټول خلک یې دهمدې اصولو او قوانینو پر پلې کولو مکلف وګرځول".

نو معنا دا چې خپله انسان خپلو ګټو ته په پام سره له یوبل سره تړون وکړ او د ریاست اداره یې جوړه کړه ، د "ټولنیز تړون" اصطلاح که څه هم په (۱۵) پېړۍ کې مشهوره شوې؛ خو دهمدې نظریې تصور دپخوانیو فلسفیانو په لیکنو او حالاتو کې هم موجود و.

خو عجیبه دا ده چې دهمدې ټولنیز تړون په نتیجه کې دوه بېلابېل متضاد سیاسي نظامونه منځ ته راغلي دي چې د دواړو بنسټ همدا تړون بلل



کېږي؛ خو لارې یې یو له بله بېخي جلا دي ، ددې په نتیجه کې یو مطلق العنان مستبد حکومت منځ ته راغلی دی او بل ولسي حکومت.

ځیني نور بیا د ټولنیز تړون منځ ته را تللو څېړنه داسې کوي: "ددې له پاره چې دخلکو ګټې خوندي وساتل شي، دوی خپل ټول واک ریاست ته وسپاره؛ نو ریاست مطلق العنان واکمن شو چې په همدې توګه دوی پر خپلو ټولو افرادو واکمني کوله".

ددوی استدلال دا و چې دشخصي ګټو دټکر په نتیجه کې دې تړون ته اړتیا پېښه شوه ، اوله دې امله چې هر انسان خپلو ګټو ته په پام سره له خپلې دائرې سره سم فکر کوي، نو دی باید ازاد نه وي چې یوازې خپلو ګټو ته په پام سره تګلاره غوره کړي چې کوم کاربنه او کوم بد دی، ده خپل ټول واک مشر تابه ته سپارلی دی؛ نو اوس چې هغه کومه پرېکړه کوي هماغه به سهي پرېکړه وي، هغه به په هره پرېکړه کې اجتماعي ګټې په پام کې نیسي او په ګټوري او تاواني پرېکړې هم هغه ښه پوهېږي؛ نو ځکه دهغه اطاعت کول فرض دی.

د مطلق العنان واکمنۍ تر ټولو زیات ملاتړ سقراط کړی دی ، سقراط دیونان په پلازمینه "اتن" کې زیږېدلی او د افلاطون استاد دی ، نوموړي دمذهب او اخلاقو په اړه ځیني داسې نظریات وړاندې کړل چې له پخوانیو سختندریځو نظریاتو سره یې ډېر توپیر درلود .

القطفي په خپل کتاب (اخبار الحکماء ۱/۸۷ مخ ) کې لیکي: "سقراط که څه هم د اخرت له ورځې څخه منکرو ؛ خو بوت لمانځنه یې نه منله، دده د ځانګړو نظریاتو له امله دهغه هیواد چارواکو پرېکړه وکړه چې سقراط زموږ دنیکونو او پلرونو له مذهب او اخلاقو څخه سر غړونه کړې ده او غواړي زموږ نوی نسل بېلارې کړي؛ نو باید ونیول شي او په دار و ځړول شي، په دې سره چارواکو دی ونیو او زندان ته واچاوه او بیا یې د اعدام پرېکړه ورته

واوروله ، سقراط به ویل: "ما د اخلاقو په اړه ځینې نوي نظریات وړاندې کړي چې له پخوانيو اخلاقي نورمونو سره توپیر لري او دا کوم جرم نه دی؛ خو زه چارواکو بندي کړم".

سقراط په ولس کې ډېر پلويان درلودل او ډېرو شتمنو خلکو يې ملاتړ کاوه؛ نو هماغه و چې هغوی زندان ته ورغلل او نوموړي ته يې وړاندیز وکړ چې موږ له زندانه ستا د تېښتې پلان جوړوو ، هغه مهال د يونان په هر ښار کې بېل بېل رياستي نظامونه ول ، د "اتن" واکمني يوازې تر همدې ښار پورې محدوده وه ، خلکو سقراط ته وويل چې موږ به تا له دې زندانه وباسو او په بل رياست کې به هوسا ژوندو کړې ، دوی له ځان سره د ده د راېستلو ټول وسائل وړي وو ؛ خو سقراط د خلکو دا غوښتنه رد کړه او ورته يې وويل: "زه د دې رياست يو وګړی يم او ما له چارواکو سره د مطلق العنان واکمني په منلو کې ژمنه کړې ده ، دوی چې کومه پرېکړه کوي زه يې منم او پر هغې به عمل کوم او زه پوهېږم چې دوی زما د مرګ پرېکړه کړې ده او دا ډېره ناوړه ، پر انصاف نه ولاړه او ظالمانه پرېکړه ده ، خو دا چې ما له دوی سره په واکمني منلو کې ژمنه کړې ده؛ نو زه پر هماغه ژمنه ولاړ يم او دا به نه ګڼم چې له زندانه تېښته وکړم ".

هغه مهال داسې قانون و چې چارواکو به د چا د اعدام پرېکړه وکړه؛ نو هغه ته به يې په زندان کې په پياله کې زهرور کول ، سقراط د زهرو غړپ وکړ ؛ خو له چارواکو سره تر خپلې کړې ژمنې په شا نه شو .

د سقراط دا کار د تاريخ يوه لويه کارنامه شمېرل کېږي ، چې نوموړي له زندانه د تېښتې ډېرې موکې درلودې؛ خو بيا يې هم تېښته ښه ونه ګڼله، او دا له دې امله چې ده له حکومت سره په منلو کې ژمنه کړې وه او نه يې غوښتل چې له خپلې ژمنې په شا شي چې همدا د مطلق العنان واکمني منلو يوه څرګنده بېلګه ده.

تر پنځلسمې زېږدیزې پېړۍ پورې د ټولنيز تړون تشريح په همدې توګه کېدله، تر دې چې په فرانسه کې د سياسي علومو درې نړیوال پوهان پيدا شول، چې په همدې علم کې هر څوک پر دوی حواله ورکوي.



۱ـ تامس هابس "Thomas Hobbes" ۲ـ لاک "lock" ۳ـ روسو "Roussou" دا درې هغه فلسفيان دي چې د دوی مفکورې دوروستيو سياستوالو د پاره يو بنسټ وګرځېده او د هغوی ليکل شوي کتابونه د دوی سرچينه شمېرل کېږي ، د دې درې واړو زماني يو بل ته ډېرې نږدې وې.

"Hobbes" او "lock" دواړو د ټولنيز تړون په اړه ورته نظر درلود ، دوی ويل: "د ټولنيز تړون په پايله کې چې کومه واکمني منځ ته راشي هغه بايد مطلق العنان واکمني وي او هره پرېکړه يې واجب الاطاعت وي؛ خو دريم تن "Roussou" روسو بيا بيخي بل ډول نظريه وړاندې کړه ، هغه د ټولنيز تړون په اړه داسې وايي: "رياست په خپله منځ ته نه دی راغلی؛ بلکې ولس سره راټول شو ، په خپل منځ کې يې تړون وکړ او رياست يې جوړ کړ؛ نو هر څوک چې د مشرتابه تر چوکۍ رسيږي په حقيقت کې د هغه د واک سرچينه په خپله ولس دی ، ولس دی مشر کړ او ده ته يې اختيار ورکړ؛ نو ولس مشر بايد د ولس استازيتوب وکړي او د هغوی له خوښې سره سم د چارو واګې پرمخ يوسي ، که دی د ولس له غوښتنو او ګټو سره سم واکمني نه کوي او خپل واک د ولس د ګټې پر ځای د هغوی په تاوان وکاروي؛ نو د دې معنا دا ده چې دی په خپله له ټولنيز تړون څخه سر غړونه کوي ، نو د همدې سرغړونې له امله بايد دی له واکه ګوښه کړل شي، او ولس حق لري چې دی له واکه ګوښه کړي ".

"روسو "دا نه مني چې د ټولنيز تړون په نتيجه کې دې مطلق العنان واکمني رامنځته شي، دی وايي چې هر ډول واکمني بايد د ولس له خوښې سره سم وکړل شي او "روسو " هغه شخصيت دی چې د نوموړي دافکارو په پايله کې په فرانسه کې پاڅون وشو چې تفصيل به يې ان شاء الله په خپل ځای درته وړاندې شي. همدا د ټولنيز تړون نظريې غور چاڼ و.

## ۲. د ځواک نظریه

دریاست منځ ته راتلو په اړه دوهمه نظریه دځواک ده ، دا نظریه ځینو فلسفیانو وړاندې کړې ده، هغوی وايي چې په لو مړي سر کې په نړۍ کې ریاست وجود نه درلود ؛ نو خلکو په خپل منځ کې جګړې وکړې او ترډېره وخته دا لړۍ روانه وه چې په پایله کې ځواکمن خلک واکمن شول، او د ځواک په مټ دولت منځ ته راغی، ددې نظریې دتعبیر په اړه انګریزان داسې متل کوي: "wars be got state" (جګړو دولت جوړولو ته لارهواره کړه).

ددې نظریې لنډه پېژندنه داسې ده چې په پیل کې دخلکو تر منځ د دولت په جوړولو کې کوم امنیتي تړون نه و، بلکې هغه مهال هیڅ دولت وجود نه درلود ؛ نو دخلکو تر منځ دخپلو ګټو په خاطر جګړې وشوې ، په پایله کې چې چا جګړه وګټله هغه واکمن شو او چې ماتې یې وخوړله هغه محکوم شو.

کوم خلک چې د دې نظریې پلوي کوي هغوی دزور له لارې واکمنۍ ته ځان رسول ظلم نه بولي، ویل کیږي چې ارسطو هم دهمدې فکر پلوي کوله ، هغه ویلي: "څوک چې دزور له لارې واکمني ترلاسه کړي په حقیقت کې هغه دخپل ورتیاله لارې ځان دې ځای ته ورساوه او د ده ځواک دده د ورتیا څرګندونه کوي؛ نو که دی دخپل ورتیا له امله واکمن شي دا دعقل او انصاف سره ټکر نه لري.

## ۳. د پلارواکي یا مور واکي نظریه

دربیمه نظریه داده چې د دولت بنسټ له کورنۍ څخه پیلیږي ، دهرې کورنۍ یو مشر وي او هغه د خپلې کورنۍ مشري کوي ، بیا څو کورنۍ سره یو شي او یو قوم ترې جوړشي او خپل یو مشر وټاکي او بیا څو قومونه سره راټول شي او د دولت بنسټ کېږدي او په خپل منځ کې یو تن مشر کړي؛ خو که په ځېر وکتل شي؛ نو ددې نظریې او ټولنیزتړون تر منځ ډېر توپیر نه



لیدل کیږي ، دا ځکه چې یوه کورنۍ ده، که قوم دی او که زیات شمېر قومونه دي ، دوی که مشرټاکي ؛ نو دکوم تړون له لارې به یې ټاکي ، که څه هم دا تړون په ژبه وي او که په عملي نمونه کې پلي شي.

## ۴. د الهي اصل نظریه

دې نظریې ته په انګریزي ژبه کې "Theory of divine origin" وايي. پورتني نظرونه یا مفکورې یوازې پر قیاساتو او اټکلونو ولاړې دي ، هیڅ سره ددې ثبوت نشته چې یو وخت رښتیاهم دخلکو تر منځ کوم تړون و یا خلکو د ځواک په مټ واکمني ترلاسه کړې ده ، ددې نظریاتو بنسټ په حقیقت کې پر هغې مفکورې ولاړ دی چې وايي انسان په خپله نړۍ ته راغلی دی، چا دکومې ځانګړې موخې لپاره نه دی پیدا کړی او نه یې هم څوک لارښود شته، کوم خلک چې پر الله تعالی ایمان نه لري او د اسماني لارښوونو څخه بې برخې دي؛ نو هغوی داسې ډول اټکلونو او تخمینونو ته اړ کیږي ، د دوی په اړه الله تعالی فرمايي: وَمَا لَهُم بِذَلِكَ مِنْ عِلْمٍ إِنْ هُمْ إِلاَّ يَظُنُّونَ. (الجاثیه ۲۴)

ژباړه: او دوی لره په دې خبره هیڅ علم نشته ، دوی نور څه نه یوازې ګومان کوي.

بل ځای کې فرمايي: إِن يَتَّبِعُونَ إِلاَّ الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلاَّ يَخْرُصُونَ.(الانعام ۱۱۶)

ژباړه: دوی بل څه نه صرف ګومان پسې ځي او له دروغ تړلو پرته نور څه نه کوي.

خو هغه خلک چې پر الله تعالی ایمان لري ،او دا مني چې ټول کائنات الله تعالی پیدا کړي دي او دیوې ځانګړې موخې له پاره یې پر ځمکه میشت کړي؛ نو هغوی داسې ډول اټکلونو او قیاسونو ته هیڅ اړتیا نلري.

دبېلګې په ډول مسلمانان او اهل کتاب په دې عقیده دي چې الله تعالی لومړی ادم علیه السلام پیدا کړ او نړۍ ته یې راولیږه او هماغه خدای دی پر ځمکه واکمن وګرځاوه او نور خلک یې ټول دده ماتحت کړل؛ نو ځکه پر انسان

داسې وخت نه دی راغلی چې کومه واکمني یا د ژوند چارو د پرمخبېولو د پاره یې کوم قانون نه وي لرلی، له لومړي سره لومړی مشر یا رئیس ادم علیه السلام و چې پر خپل اولاد واکمن و.

او د فلسفیانو دا خبرې چې یو مهال انسان په فطري حالت "**State of nature**" کې ژوند کاوه، بیا د ټولنیز تړون له لارې دولت منځ ته راغی، یا د ځواک له لارې دولت منځ ته راغلی دی، دا ټولې بې بنسټه خبرې دي، داسې ډول افکارو او اټکلونو ته هیڅ اړتیا نشته، بلکې سهي عقیده داده چې الله تعالی لومړی انسان پیدا کړی او بیا یې هغه واکمن یا رئیس وګرځاوه چې همدې نظریې ته د علم سیاست په ژبه د الهي اصل (**Divine Origin**) نظریه وایي.

دا یوازې د مسلمانانو نظریه نه ده بلکې هغه فلسفیان هم په همدې عقیده دي چې پر الله تعالی ایمان لري، دوی ټول پر دې یوه خوله دي چې انسان الله تعالی پیدا کړی دی او هغه ریاست هم پیدا کړی دی، خو د مسلمانانو پرته د ځینو نورو مذهبونو پلویان بیا د دې نظریې په تعبیر او څېړنه کې ښویېدلي دي او په دې اړه یې د ډېر افراط څخه کار اخیستی.

د مثال په توګه د ځینې مذهبونو پلویان وایي چې هر څوک واکمني ته رسیږي هغه ته الله تعالی دا واک ورکوي؛ نو هیڅوک حق نه لري چې دی له واکه ګوښه کړي او نه دې هم د ده د ګوښه کولو کوښښ کوي، ځکه چې دی د الله تعالی له خوا ټاکل شوي دی، ځینې خلک خو لا آن دا هم وایي چې که پر یو قوم کوم ظالم او جابر پاچا مسلط شي او پر دوی تېری کوي ، دا هم د دوی د عملونو په نتیجه کې پر دوی یو عذاب دی، اوس چې دا د الله تعالی له لوري یو عذاب دی او د الله تعالی له خوښې سره سم پر دوی نازل شوی دی؛ نو دوی نشي کولای په زوره یا سوله ایزه توګه ده د لري کولو کوښښ وکړي، او که داسې وکړي؛ نو معنا به یې داوي چې دوی د الله تعالی د خوښې پر ضد اقدام کوي؛ نو ځکه چې څوک پر چا واکمن شي ، د هغه اطاعت کول ، د هغه خبره منل او د هغه هر ډول امر ته خپل سر ټیټول ضروري دي او همدا د الله تعالی له خوښې سره سم کار دی.



کوم خلک چې دا عقیده لري په حقیقت کې دوی د الله تعالی د تکویني مشیت او تشریعي رضا تر منځ توپیر نه دی کړی ، د قران او حدیث له مخې دا خبره سهي ده چې کله ناکله انسانانو ته د خپلو بدو عملونو له امله الله تعالی د جزا ورکولو په موخه پر هغوی یو ظالم پاچا مسلط کړي، د بني اسرائیل سورت په لومړنیو ایاتونو کې الله تعالی فرمایي چې د بنیاسرائیلو د سرغړونې له امله مو دوه ځله پر دوی ظالم پاچا مسلط کړ ، دغه راز پیغمبر صلی الله علیه وسلم وایي: "ستاسو واکمنان ستاسو د عملونو پایله وي" ، خو دا د الله تعالی تکویني پرېکړه وي، د دې څخه دا نه معلومیږي چې د ظالم پاچا د ګوښه کولو ګوښښ دې نه کیږي ،بلکې د شریعت له مخې د الله تعالی خوښې په دې کې ده چې خلک له خپلو بدو عملونو توبه وباسي او د ظالمانو واکمنانو د ګوښه کولو هڅه وکړي او خپل حکومتي نظام سم کړي.

په عامو حالاتو کې شریعت د داسې واکمنانو د ګوښه کولو له پاره د وسلوال بغاوت اجازه نه ورکوي ځکه چې د داسې بغاوت تاوان تر ګټې زیات وي او شریعت د مسلمانانو پر وینو نه تویولو ډېر ټینګار کوي چې د دې په اړه به د کتاب په دویمه برخه کې ان شاء الله بشپړ بحث وړاندې شي؛ خو په سوله ایز ډول د داسې واکمنانو ګوښه کول پر هر مسلمان واجب دي.

د دې مثال کټ مټ د هغه چا په څېر دی چې ناروغي ور پېښه شي، همدا ناروغي ده ته د الله تعالی له ارادې سره سم پېښیږي او کله ناکله خو همدا ناروغي د ده د بدو عملونو له امله هم ورپېښیږي ، خو د دې مانا دا نه ده چې د ناروغۍ درملنه کول د الله تعالی د خوښې خلاف کار دی ، بلکې د الله تعالی امر داسې دی چې انسان دې له خپلو ګناهونو توبه وباسي او له روا لارې دې د خپلې ناروغۍ درملنه وکړي.

دا د هغو نظرونو لنډ غورچاڼ و ، چې په عام ډول په سیاسي علومو کې بیانیږي او همدا نظریات د بېلابېلو نظامونو د منځ ته راتلو بنسټ شمېرل کیږي.

# دویم څپرکی

## د نړۍ بېلابېل سیاسي نظامونه

زموږ بله موضوع پردې خبرو راڅرخي چې د سیاست د پورتنیو فلسفوي نظرونو قطع نظر، په نړۍ کې کوم ډول نظامونه په عملي بڼه منځ ته راغلي دي؟ او حکومت باید شخصي وي او که ټولنیز؟ ددې له پاره کوم ډول ځانګړنې اړیني دي؟ همدا ځانګړنې څنګه منځ ته راتلای شي؟ په دې اړه څه ډول تګلاره باید وکارول شي؟ د دغو بنسټیزو پوښتنو په اړه چې په کوم نظام کې څېړنې کیږي هغه ته سیاسي نظام "**Political System**" وایي. ترننه چې په نړۍ کې کوم نظامونه پلي شوي دي هغه پر درې لویو برخو وېشل کیږي:

۱. **شاهي**
۲. **اشراف واکي**
۳. **جمهوریت (ولسواکي)**

دا درې لوی نظامونه بیا په بېلابېلو څانګو وېشل شوي دي ، چې دلته یې څه ناڅه پېژندنه اړینه ده.

### ۱. شاهي نظام

د تاریخ له پاڼو څرګندیږي چې د نړۍ په سیاسي نظامونو کې ټولواکي (شاهي نظام) د نورو په پرتله زیات نافذ شوی دی چې له پېل نه تر اوسه پورې د نړۍ پر مخ په یوه یا بله بڼه راروان دی ،او د تاریخ په ډېرو پېښو کې ځانګړی ځای لري.

په ظاهري بڼه "ټولواکي" یو ویوکی دی چې د دولت مشر ټول واک (پاچا ) ته کارول کیږي ،دی شخصي واکمن وي او په خپل سر د حکومت چارې پرمخ بیایي؛ خو د دې نظام شکلونه په بېلابېلو زمانو او هیوادونو کې یو تر بله توپیر لري ، مانا دا چې دا نظام پرټوله نړۍ یو ډول نه دی راغلی، په هر پېر کې په مختلفو بڼو رامنځ ته شوی دی چې دلته یې موږ په لنډه توګه را اخلو:



### ۱. مطلق العنان ټولواکي

ددې واکمنې بنسټیزې ځانګړنې دا دي چې په داسې نظام کې پاچا د قانون یا دستور په منلو مکلف نه وي ،بلکې د ده ژبه قانون وي ، دی چې څه وایي هغه به د قانون یوه برخه ګرځي او د چارو په پلي کولو کې به هم له چاسره په مشوره کولو پابند نه وي ، او که دی په خپله خوښه له چاسره مشوره کوي هغه به د ده یوه لورینه وي او که مشوره نه کوي ؛ نو څوک ترې پوښتنه نشې کولای ، هغه به پخپله د چارو واګې پرمخ بیایي ، قانون به پخپله جوړوي او د جګړو پرېکړې به هم دی کوي ، د قضا پرېکړه به هم بالاخره ترده پورې رسیږي او د ده پرېکړه به وروستۍ او منونکې پرېکړه وي، که هغه په قضایي چارو کې وي او که پوځي چارو کې، لکه نن چې د پوځ په قانون کې کوم قوانین پلي کیږي چې د پلاني جرم به څنګه او څومره جزاوي؟ د دواړو ترمنځ یوازې دومره توپیر دی چې مطلق العنان پاچا په هیڅ قانون منلو مکلف نه وي ، که له چا یې بد راشي او پرېکړه وکړي چې پلانی دې د خره څرمن وخوري یا دې په دېوال کې ووډل شي ؛ نو ددې شخص په اړه همدا قانون ګرځي ، دېته مطلق العنان پاچاهي وایي او همداسې نظام د فرعون او نمرود په څېر انسانان وزېږول چې آن د خدایي دعوې یې هم وکړې.

### ۲. پاچایي شورا

د شاهي نظام دوهم ډول "پاچایي شورا "ده چې په انګریزي ژبه کې ورته "**Counseling monarchy**" وایي ، ددې لنډه پېژندنه داسې ده چې په دې نظام کې به پاچا قانون په خپله جوړوي او د چارو پرېکړې به هم دی کوي؛ خوله دې سره سره به له ځان سره یوه شورا هم ساتي او د قوانینو او احکامو په پلي کولو او اجرائیه چارو پرمخ بېولو کې به ورسره مشورې کوي ، بیا همدا شورا هم بېلابېل ډولونه لري: ځیني یې د کونسل "**council**" ځینې د سنا

مجلس او ځینې یې بیا په نورو نومونو یادیږي ، دغه راز مشورې هم یوله بل سره توپیرلري ، په ځینو ځایونو کې داسې شوي وي چې پاچا له شورا سره مشوره شریکه کړې ؛ خو دهغوی په مشورو منلو مکلف نه وي ، که د مشورې پر خلاف عمل وکړي بیا یې هم څوک له خپلې پریکړې نشې په شا کولای، او کله داسې هم شوي دي چې پاچا اړ وي چې د شورا پریکړه به مني ، شورا چې کومه پریکړه وکړي یا کوم قانون تصویب کړي پاچا به دهغو په منلو مکلف وي.

په تېر تاریخ کې دیونان ریاستونه ترټولو مهذب او منظم ریاستونه شمېرل کیږي ، هغه مهال هلته دښاري ریاستونو "city states" نظام و ، په هرښار کې به یوه ځانګړې واکمني وه او هغه به یو مستقل هیواد و ، او په هره کلا کې هستوګن خلک به دیوه ریاست افراد یادېدل ، د یونان هرښار به ځانګړی واکمن او ځانګړی نظام درلود ، دښاري ریاستونو همدا نظام ترډېرې مودې روان و ، ټول یونان په یو شمېر واکمنیو وېشل شوی و ، دهمدې ریاستونو پاچایان په لومړي سرکې مطلق العنان پاچایان ول؛ خو وروسته دوی دپاچاهي شورا نظام غوره کړ او ځینو یې دځان له پاره ځانګړي شوراګانې جوړې کړې چې په بېلابېلو معاملاتو کې به یې پاچاته مشورې ورکولې، په زیاتره ریاستونوکې به پاچایان د مشورو منلو پابند ول؛ خو په ځینو ریاستونو کې به پاچایان په دې مکلف نه ول چې د شورا مشورېومني او په ځینو نورو کې بیا پاچایانو ته خپل حدود ټاکل شوي وو چې په ځینو معاملاتو کې به د شورا د پریکړو په منلو مکلف وو، او په ځینو نوروکې بیادوی خپل واکه ول. همدا واکمنۍ په یونان کې دعیسی علیه السلام نه ۳۰۰/۴۰۰ کاله دمخه وې.



## ۳. مذهبي ټولواکي

دریم ډول مذهبي یا "Religious monarchy" پاچايي ده، دا داسې واکمني وه چې د پاچا د واک اصلي سرچینه به مذهب و ، پاچابه له مذهبي مراسمو سره سم دمذهبي مشرانو له خوا ټاکل کېده ، پاچاته به دوی لوړه ورکوله او ویل به یې چې پلانی زموږ له خوا پاچا وټاکل شو ، پاچابه په خپله واکمنۍ کې دمذهبي مشرانو تابع و او د دوی له پرېکړو سره سم به یې حکومتي چارې پرمخ بېولې، دامذهبي پاچایاني ترډېرې مودې په عیسایانو کې دود وې، چې د دې پېل دعیسی علیه السلام اسمان ته له خېژولو شاوخوا ۳۰۰ کاله وروسته شوی دی.

پرعیسایانو درې سوه کاله داسې تېرشوي دي چې دوی به تل دخپلو مخالفینو له خوا دظلم او شکنجې ښکار ول ، دوی دنړۍ پرمخ داسې ځای نه درلود چې سره راټول شي ، او دخپل دین تبلیغ به یې په پټه تر ځمکې لاندې په سمڅو کې تر سره کاوه چې دالړۍ تردرې سوه کاله همداسې روانه وه، په همدې موده کې د دوی په دین کې تحریف شوی دی او تر اوسه په هغه ډول را روان دی.

په پیل کې د عیسی علیه السلام لارویان موحدین ول او عیسی علیه السلام به یې یوازې د الله تعالی استازی او رسول مانه ؛ خو چې کله یهود د دوی منځ ته ورننوتل؛ نو د دوی په دین کې یې لاس وهنه وکړه.

پولوس "Saint Paul" چې لومړی یهودي و او دعیسایانو تر ټولو مخ کنۍ دښمن و ، عیسایان تر ټولو زیات د ده له لاسه کړېدلي دي، په پای کې ده عیسائیت ومانه او بیایې د عیسایانو په مذهب کې تحریف وکړ ، دتثلیث عقیده ، دکفارې عقیده او نور خرافات په عیسایانو کې همده دود کړل، چې بالاخره د عیسایي مذهب رښتوني لارویان ګوم نامه شول ، یا ختم شول او

ياد پر لړ پاتي شول او دا نوی دين چې "پولوس" له ځان نه جوړ کړی و، د عيسائيت په نوم مشهور شو.

د عيسی عليه السلام له اسمان ته ختلو درې پېړۍ وروسته د روم پاچا قسطنطين (چې لوی قسطنطين هم ورته وايي) د عيسائيت دين ومانه، تر دې مخکې به د روم پاچايانو د بوتانو عبادت کاوه؛ خو په دريېمه پېړۍ کې همدې پاچا د "پولوس" عيسايي مذهب ومانه. دا هغه قسطنطين دی چې قسطنطنيه ښار د ده په نوم جوړ شوی دی چې اوس ورته استنبول وايي او بيا همدا ښار د عيسايانو پلازمينه ونومول شوه، په همدې توگه د لومړي قسطنطين تر عيسائي کېدو وروسته په روم کې د عيسايانو واکمني پيل شوه، هغه مهال د "پوليس" عيسائيت مذهبي مشر "اتاناسيوس" (Athanasius) و، نو موړي په لومړي ځل "قسطنطين" پاچا په مذهبي توگه لومړی مستند پاچا وگرځاوه او په روم کې مذهبي پاچايي له همده څخه پيل شوه.

د دې مذهبي پاچايي ځانگړتيا داوه چې په مذهبي چارو کې به د کليسا مشر "پاپ" پرېکړه وروستۍ پرېکړه وه، د دولت مشر پاچا به يوازې سياسي دندې پرمخ بېولې او د کليسا مشر به دا واک هم درلود چې مالومه کړي کومه معامله مذهبي ده او کومه غير مذهبي؛ نو ځکه به پاچا تر ډېره بريده د کليسا مشر د پرېکړو په منلو مکلف و، که د کليسا مشرانو به پاچاته د کومې خبرې امر کاوه؛ نو هغه به يې په منلو مجبور و ځکه چې په يوه واکمنۍ کې دوه پاچايان نشي پاتي کېدلی، له همدې امله به د روم په تاريخ کې د پاپ او پاچا د واکمني حدود يوه ستونزمنه مسئله وه چې په دوی کې به د همدې مسئلې پر سر ډېري جگړې کېدلې. په پای کې دا مسئله نوره هم پسې توده شوه او يوه نه هوارېدونکې ستونزه وگرځېده تر دې چې د سيکولر (پرمذهب نه ولاړ) حکومت تر ولکې لاندې په "واتيکان" کې د پوپ بېل رياست جوړ شو.



## ۴. د ستوري پاچايي (Constitutional monarchy)

دستوري پاچايي د ېته وايي چې پاچا به هرومرو دستور يا قانون ته ژمن وي، داسې نه چې څه د ده له خولې وځي هغه به قانون وي، چې څه ډول غواړي هغسې پرېکړه به کوي او چې څنگه د ده خوښه وي هماغسې اقدام به کوي، بلکې د ده هر ډول گام به له يو دستور سره سم اخيستل کيږي، د همدې دستور په دائره کې به ژوند تېروي او له قانون څخه به هيڅ ډول سرغړونه نشي کولای.

د ستوري پاچايي هم د نورو نظامونو په څېر په بېلابېلو زمانو کې منځ ته راغلې ده، په خپله په يونان کې هم داسې پاچايي شوې ده، د روم په تاريخ کې هم داسې شوي دي چې پاچا به يو دستور ته ژمن و، په ځانگړي ډول په منځنيو پېړيو کې زياتره واکمنۍ او پاچاياني دستوري وې. داسې پاچايي يو ډول هغه دستوري پاچايي هم ده چې په ننني نړۍ کې د پارلمان يوه برخه شمېرل کيږي ،لکه په برتانيه کې، هلته اوس مهال پاچا ملکه "اليزابېت اليگزاندرا مېري" (Elizabeth Alexandra Mary) ده او په هغه هېواد کې دستوري پاچا يي نظام دی، خو دا پاچايي يوازې سمبوليکه بڼه لري، پاچا هيڅ واک نه لري، اختيارات ټول له کابينې او يا له پارلمان سره دي، يوازې د نوم له پاره يې يو پاچا کښېنولی دی چې رول يې تر ډېره ځايه مراسمي او سمبوليک دی.

تاسو ولوستل چې پاچايي يو داسې کلّي مشکک دی چې له مطلق العنان پاچايي څخه تر يوازې په نوم پاچايي پورې بېلا بېل ډولونه لري، مانا دا چې په نړۍ کې داسې پاچاهم تېر شوی چې يوازې وينا به يې قانون و او داسې پاچا هم شته چې هيڅ واک نه لري سره له دې چې دا هم د پاچايي يو ډول دی او ها بل هم د پاچايي يو ډول دی، لنډه دا چې شاهي نظام همدا څلور يا پنځه ډولونه لري.

او له دې څخه دا څرګندېږي چې له کوم وخت نه په نړۍ کې د جمهوریت غوغا پیل شوې ده له هغه وخت نه د پاچا کلمه یا د پاچايي او ملوکیت نوم هم بدنام شوی دی ، او د دې بدنامۍ پایله دا شوه چې اوس شاهي نظام محض یو شر ګڼل کیږي او خلک دا ګومان کوي چې شاهي او ملوکیت ټول بد نظام دی او بدې پایلې لري ، ځینې داسې خلک هم لیدل کیږي چې وایي په اسلام کې ملوکیت نشته ، شاهي نظام نشته او داسې نور.

په حقیقت کې دا خلک د هغو تبلیغاتو تر اغیز لاندې راغلي دي چې د جمهوریت غوغا یې را پیدا کړې ده، کنه نو ملوکیت؛ خو یو عنوان دی او د دې عنوان معنون ښه هم کېدلی شي او بد هم.

که تاسو قرآنکریم وګورئ؛ نو الله تعالی طالوت ((ملک)) یعني خپل قوم ته د پاچا په توګه رالیږلی و او دا کار یې له خپلو نعمتونو څخه شمېرلی دی ، هغه جل جلاله بني اسرایلو ته وایي: "موږ پر تاسو احسان وکړ چې طالوت مو د پاچا په توګه درولیږی ".

او دغه راز الله تعالی بني اسرائیلو ته خپلې نیکۍ بیان کړې ده، هغوی ته وایي: (وجعلکم ملوکا ) او الله تاسو پاچایان کړي وی، او داؤد علیه السلام او سلیمان علیه السلام ته یې هم پاچايي ورکړې وه ، اوس چې کله جمهوریت پاله خلک دې ایاتونو ته راورسیږی؛ نو ډول ډول تاویلات او توجیهات پکې کوي، دوی وایي چې له دېنه مراد پلانی ملک دی او په اسلام کې د ملوکیت نظام نشته او داسې نور...

خو حقیقت دادی چې ملوکیت ، پاچاهي ، ټول واکي یا هرډول نوم چې وي په دې کې اصل دادی چې د دې نظام واک څومره دی؟ او د کومو اصولو لاندې دوی حکومت کوي؟ که همدا اصول سم وي؛ نو که پاچايي ورته وایي ، که ملوکیت ورته وایي او که خلافت ورته وایي هرډول نوم چې پرې اږدي هیڅ



پروانه لري او د بېته بد نظام نه ویل کیږي ؛ نو دا خبره باید له پامه ونه غورځول شي چې دا ډول تصورات چې ملوکیت یا پاچايي محض یو شر دی ، دا د هغو روڼ اندو تبلغات دي چې زموږ په زمانه کې راپورته شوي دي ، او د دوی پوره تفصیلات به په خپل ځای کې درته وړاندې کړو . د پاچا په کلمه کې په خپل ذات کې هیڅ نیمګړتیا نشته، سهي هم کېدلی شي او غلط هم کېدلی شي ، دغه راز ښه هم وي او بد هم وي؛ خو اسلام په دې اړه هیڅ بندیز نه لري چې د مشر نوم "ملک" ، که "خلیفه" او یا "پاچا" او که "ولسمشر" وی، د نوم له امله په واکمني کې هیڅ ډول بدلون نه راځي ، بنسټیزه خبر داده چې واکمني د کومو اوصولو لاندې ، د کومو قواعدو په رڼا کې او د څه ډول نظام تر سیوري لاندې چاري پرمخ بیایي. د دې پوره تفصیل به ان شاءالله د کتاب په پای کې درته وړاندې کړو .

## ۲. اشراف واکي

دویم سیاسي نظام چې مخکې یې موږ یادونه وکړه، اشراف واکي یا د اشرافو حکومت دی چې په انګریزي ژبه کې ورته "**Aristocracy**" وایي.

اشراف واکي یوه تخریب کړل شوې کلمه ده چې له اشراف څخه اخیستل شو ی دی، اشراف نېکانو خلکو ته وایي ، کوم خلک چې په ټولنه کې د قدر وړ خلک وي هغو ته اشراف ویل کیږي. د دې نظام لنډه پېژندنه یا د دې ترشا نظریه داسې ده چې وایي حکومت کول د هرچا کار نه دی او نه هر انسان د واکمني کولو حق لري بلکې حکومت کول یوازې د ځینو ځانګړو خلکو حق دی چې د یو ځانګړي نسب او حسب څښتنان وي او یا د ځینو ځانګړو صفتونو څښتنان وي چې د اشرافو طبقه ورته وایي ، هر څوک د دې حق نه لري چې

واکمني وکړي او نه هم داحق لري چې دواکمني غوښتنه وکړي بلکې دا یوازې دیوې ځانګړې طبقې حق دی چې دوی یې په اشرافو سره تعبیر کوي.

اوس پوښتنه داده چې د دې طبقې خلک څوک دي؟ په دې اړه خلک بېلابېل نظرونه لري. ځینې وایي د غوره نسب او حسب څښتنان اشراف دي، او ځیني وایي چې کوم خلک په مذهبي توګه غوره ګڼل کیږي هماغه د اشرافو طبقه ده، او ځیني نوربیا وایي چې د اشرافو طبقه هغه خلک دي چې ځیني ځانګړي صلاحیتونه او نیک خویونه ولري او ډېر زړور او هوښیار وي؛ نو همدوی باید واکمن شي.

خلکو د اشرافو بېلابېل تعبیرونه کړي دي. د همدې تعبیرونو له امله په خپله اشراف واکي هم پر بېلو بېلو ځانګو وېشل شوې ده؛ خو په ټولیزه توګه د ټولو تصور همدا دی چې واکمني کول د هرچا کار نه دی، یوازې یوه ځانګړې طبقه دې واکمنه وي او باید ټول خلک یې اطاعت وکړي.

ددې تصور پیل د ارسطو او افلاطون څخه شوی دی او دا اصطلاح هم په خپله هغوی اختراع کړې ده. هغوی دا تصور وړاندې کړ چې واکمني د هغه چا حق دی چې د پوهې له پلوه ترنورو لوړوي؛ نو داسې به وو او یو چې هغوی د علمي اشراف واکي تصور وړاندې کړ؛ خو همدا تصور چې د پوهې پربنسټ دې خلک واکمن وګرځول شي یوازې د هغوی د ماغي تخیلات، هیلې او ارمانو، په عمل کې کله هم داسې نظام نه دی رامنځ ته شوی چې خالص پر علمي بنسټ حکومت وټاکي.

دلته دا یادونه هم اړینه بولم چې د اشراف واکي اصلي غوښتنه داوه چې د ځینو ځانګړو صفاتو لرونکې طبقه دې واکمنه کړل شي، خو دا اصطلاح هغه مهال هم کارول کیږي چې داسې طبقه مخامخ حاکمه نه وي؛ خو پر حکومت د ډېر اغیز له امله د پردې ترشا ټوله واکمني د دوی وي، که څه هم په ښکاره



واکمن نور خلک وي، په داسې وخت کې هم ویل کیږي چې دا اشراف واکي (Aristocracy) ده. او د داسې مفهوم له پاره په ننني نړۍ کې د "بیوروکریسۍ" کلمه ډېره کارول کیږي، ددې مانا داده چې په ښکاره که هر څوک واکمن وي؛ خو اصلي واکمنان پردوی دومره اغیز لري چې مهمې پرېکړې او پالیسي د هغوی له خوښې سره سم پلي کیږي، هغوی چې څنګه غواړي واکمن په خپله ولکه کې ساتي او پر هغه د خپلې خوښې پرېکړې مني. "بیو" رسمي چارواکو ته وایي او "روکریسي" حاکمیت (واکمني) ته وایي ؛نو د بیوروکریسي معنا داده چې اصلي واکمني د رسمي چارواکو په لاس کې ده، چې ددې ترجمه په شاهي افسر او شاهي مزدور سره هم کیږي.

لکه مخکې چې مو وویل اشراف واکي یوې ځانګړې طبقې ته د واک حق ورکوي، اوس ددې طبقې ټاکلو له پلوه اشراف واکي هم بېلابېل ډولونه لري، یو خو علمي اشراف واکي ده چې د هغې تصور ارسطو او افلاطون وړاندې کړی و؛ خو مخکې مو وویل چې دا محض یو ارمان و چې کله هم په وجود کې نه دی پلي شوی د دې پرته په عامه توګه اشراف واکي ډېر ډولونه لري.

## نژادي اشراف واکي

دویم ډول ته نژادي اشراف واکي (Racial aristocracy) وایي، ددې مانا داده چې د واکمني کولو لپاره به یوازې دیوې کورنۍ یا قوم غړي ټاکل کیږي، چې هر واکمن راځي؛ نو د همدې یوې کورنۍ څخه به وي او همدوی د واکمنۍ اهلیت لري، دا ډول واکمني په ډېرو قومونو کې عملي شوې ده، په ځانګړي ډول په هند و تهذیبونو کې ددې ځانګړې تصور و چې واکمني کول د "برهمن"، یا "راچپوت" او یا "کشترمي" نسلونو حق دی.

## مذهبي اشرافي یا تیوکراسي

دریم ډول مذهبي اشراف واکي ده چې تیوکراسي (**Theocracy**) هم ورته وایي ، تیوکراسي په اصل کې یوه یوناني کلمه ده ،په یوناني ژبه کې " **Theo** " خدای ته وایي (له همدې نه تیولوجي هم اخیستل شوې ده، او تیولوجي علم الهیات ته وایي ) او "**Cracy** " حاکمیت (واکمني ) ته وایي؛ نو د "**Theocracy** " مانا دا شوه چې د خدای واکمني.

ددې نظام اصل تصور ډېر مبارک دی ، هغه دا چې په حقیقت کې د کائناتو رښتونی واکمن الله تعالی دی ، د نړۍ پرمخ چې څه ډول نظام رامنځ ته کیږي باید دالله تعالی له احکامو سره برابر نظام وي. خو اوس پوښتنه دا ده چې د الله تعالی د حکمونو تعین به څوک کوي؟ په عیسایي نړۍ کې ددې عملي ځواب دا و چې د کلیسا مشر "پاپ" دا اختیار لري چې د الله تعالی د احکامو تعین وکړي او بیا یې پاچا ته ووایي؛ نو کوم امر چې "پاپ" د الله تعالی امر وګڼي واکمن به د هغه په عملي کولو مکلف وي. ددې پایله دا شوه چې تیوکراسي (د خدای حاکمیت) د مذهبي پاپانو په واکمني بدله شوه. نن چې د تیوکراسي ترجمه کیږي نو زیاتره وخت د "خدایي حاکمیت" پرځای د "مذهبي مشرانو حاکمیت" ترې اخیستل کیږي.

لکه مو چې ورته مخکې هم اشاره وکړه ، د روم په عیسائي حکومتونو کې دا یوه ستونزمنه مسئله وه چې د چارو واګې به د پاچا په لاس کې وي؛ خو نوموړی به په مذهبي چارو او احکاماتو کې د پاپ د امر تابع و ، پایله یې دا شوه چې له یوې خوا به د پاپ او پاچا ترمنځ تل شخړې او ناندرۍ روانې وې او له بلې خوا مذهبي مشر د احکامو په ټاکلو کې د بل چا له مشورې پرته کامل اختیار درلود ، هیڅ چا به یې مخه نشوه نیولی ؛نو له همدې امله به پاپ په ډېرو مواردو کې له خپل واک څخه ناروا ګټه پورته کوله ، په تېره بیا هغه



وخت دا ستونزه لا پسې زیاته شوه چې کله دا سې پاپان مشران شول چې تل به د خپلو خواهشاتو په زولنو کې بند ول ، هغوی دا سې پالیسۍ غوره کړې چې ټول ولس یې په ډېره بې رحمانه توګه په سلګونه کاله د جبر او ظلم په تورو تیارو کې وساته ، د همدې حالاتو په پایله کې د ولس په منځ کې د مذهب پرخلاف بغاوت را وټوکېده چې په نتیجه کې دوی مذهب له حکومت څخه بېل کړ او سیکولر (پرمذهب نه ولاړ) حکومت یې جوړ کړ. نو ځکه د تیوکراسي (خدایي حاکمیت) ویوکې یوه ناوړه خبره وګرځېدله، اوس چې څوک د تیوکراسي نوم واوري؛ نو په ذهن کې یې ټولې هغه ناوړه کړنې راوګرځي چې د پاپ اداري له خوا راپیدا شوي وې.

اوس چې د تیوکراسي نوم ډېر بدنام شو ؛ نو زموږ په اسلامي ټولنه کې هم خلک زیاتره وخت دا غږ پورته کوي چې اسلام د تیوکراسي پلوي نه دی او تیوکراسي د اسلام ضد نظام دی ؛ خو څوک چې دا خبري کوي هغوی د تیوکراسي د اصل تصور او په عیسائي نړۍ کې د هغې عملي اطلاق تر منځ توپیر نه کوي ، همدا لامل دی چې کله په پاکستان کې د اسلام غږ پورته کیږي یا د علماوو له خوا د اسلامي نظام راوستلو غږ پورته کیږي او یا علماء په سیاست کې ونډه اخلي ؛ نو سمدستي د ځینو نوښت پاله ادارو له خوا دا غږ پورته کیږي چې دا خلک په هیواد کې "**Theocracy** " نظام پلي کول غواړي او موږ په پاکستان کې دا سې نظام نه غواړو ؛ خو دا خلک یو هم د تیوکراسي په مانا نه پوهیږي، نه هغه څوک پرې پوهیږي چې دا پوښتنه راولاړوي او نه هم هغه خلک پرې پوهیږي چې ځواب ورکوي.

نو پایله یې دا شي چې خلک د تیوکراسي په عیبونو او ښېګڼو له پوهیدلو پرته دا ناره پورته کوي چې په اسلام کې تیوکراسي نشته او د تیوکراسي اصل تصور او هغه څه ترمنځ چې د همدې ویوکي کارولو ترنامه لاندې په اروپا کې وشول هیڅ توپیر نه کوي.

او حقیقت هغه دی چې مخکې موږ وړاندې کړ، د تیوکراسي خپله مانا داده چې د (خدای حاکمیت) او دا هغه حقیقت دی چې قران کریم د (ان الحکم الا لله) په لنډه جمله کې بیان کړی دی ، اوس تاسو فکر وکړئ چې کله وویل شي چې په اسلام کې تیوکراسي نشته؛ نو ددې مانا به داوي چې په اسلام کې دخدای حاکمیت نشته؟ نو کوم خلک چې له سوچ او فکر پرته داخبره کوي چې په اسلام کې تیوکراسي نشته دوی څومره له خطره ډکه خبرکوي !؟

حقیقت دا دی چې تیوکراسي دخپلې لغوي مانا او اصلي تصور له پلوه بالکل سهي ده چې په کائناتو کې دحاکمیت حق په حقیقت کې دالله جل جلاله په واک کې دی ، او انسان چې هر حکم صادروي هغه باید دالله تعالی داحکامو تابع وي ؛ خو کله چې "Theocracy" د ځمکې پرمخ په عملي بڼه پلې شوه ؛ نو دبېلابېلو مذهبونو له خوا پکې ډول ډول نیمګړتیاوې راپیدا شوې چې په پایله کې یې دا ویوکې بدنام کړ.



## یهودي او هندي تیوکراسي

په نړۍ کې تر ټولو لومړی دیهودو تیوکراسي منځ ته راغلې ده ، ددې اصلي تاریخ داسې و چې دعیسی علیه السلام نه مخکې ټول بني اسرائیل دموسی علیه السلام د شریعت تابع ول او دوی به د تورات په حکمونو عمل کاوه چې د دوی په اصطلاح به یې ورته "قانون" وایه ؛ خو په تورات کې چې کوم حکمونه دي هغه زیاتره دعباداتو او طهارت او نورو په اړه دي ، په ژوند پورې تړلي معاملاتو په اړه حکمونه ډېر کم دي. کله چې یهودو د خپل مذهب پربنسټ دولت جوړ کړ؛ نو دوی پرېکړه وکړه چې دواکمنۍ چارې به د تورات له قانون سره سم پلې کوي ، اوس دا چې په تورات کې په ژوند پورې تړلي ټول حکمونه نشته؛ نو دوی پر دې سلا شول چې کله له داسې پېښې سره مخ شي



چې په اړه یې په تورات کې څه نه وي؛ نو مذهبي مشر ته یې دا حق ورکړ چې هغه دالله تعالی خوښه مالومه کړي او دهغه له خوښې سره سم قانون جوړ کړي.

او دالله تعالی د رضا مالومولو د پاره به د یهودو تګلاره داوه چې هغوی یوه خیمه درلوده چې "دعبادت خیمه" یې بلله ، په خیمه کې یو تابوت و ، پر تابوت د سروزرو غلاف خپور و ، د دوی مذهبي مشر به تابوت ته ورغی او نږدې به ورسره کښېناست او په همدې توګه به یې د خدای رضا مالوموله. دوی به ددې کار له پاره تر خپله وسه داسې وخت ټاکی چې اسمان به اوریځ و او دبرېښنا امکان به و ، مذهبي مشر به د تابوت تر څنګ کښېناست ، مراقبه به شو او ځیني دعاګاني به یې له ځان سره وویلې، په دې وخت کې به په اسمان کې دبرېښنا پړک وشو ، له دې پړک وروسته به ده وویل چې ما ته "یهووا " په دې اړه داسې امر وکړ، (یهود خدای ته یهووا وایي ) دوی په دې عقیده ول چې "یهووا " دمذهبي مشر سره مخامخ خبرې کوي او د روانو حالاتو په اړه ورته قانون برابروي.

چې کله به څه پېښه وشوه ؛ نو مذهبي مشر به هلته ولاړ، د تابوت تر څنګ به کښېناست؛ نو که د برېښنا پړک به وشو ښه تر ښه، او کنه نو بیا به یې هم مراقبه کوله او له مراقبې وروسته به یې ویل چې ما ته داسې الهام وشو ، یاما ته دا خبره څرګنده کړل شوه چې د داسې حالاتو د پاره دا حکم دی .دا یهودي تیوکراسي وه !

څرګنده ده چې کوم مذهبي مشر ته مخامخ د الله تعالی له لوري الهام کېدل، یا کومه خبره هغه ته څرګندېدل دا محض توهمات دي، او دا خبرې دوی یوازې پر خلکو د خپلې خاني منلو له پاره جوړې کړې وې ؛ نو کوم قانون چې دوی پلي کړی و دا په حقیقت کې خدائي قانون نه و ، بلکې خپل خواهشات ، خپله رایه او خپل سوچ دخدای لورته منسوبول او پر خلکو پلي کول و .

کټ مټ همداسې تیوکراسي په هندوانو کې هم وه ، هغوی په دې عقیده ول چې "برهمن پروهت" دا اختیار درلود چې هغه مخامخ له خدای سره اړیکه ونیسي او قانون جاري کړي.

هیڅ چا دا جرئت نشو کولی چې ددې دواړو ډلو یهودي او هندي پرضد ودریږي او دوی ته اخطار ورکړي چې کوم حکم دوی پلي کوي هغه ربښتیا هم دخدای حکم دی که څنګه؟ دوی به چې څه ویل دهغو په منلو به ټول خلک مکلف ول.

په دواړو ډلو یهودو او هندوانو او دغه راز په ځینو هیوادونو کې په بودایانو کې هم دا دود و چې مذهبي مشر دا حق لري چې دخدای سره مخامخ اړیکه ونیسي او قانون جوړ کړي. په تبت او جاپان کې د "لامه" په نوم ډله کې تر اوسه همدا دود شته.

لنډه دا چې کوم مذهبي مشر به له ځان نه جوړ شوی قانون دخدای پاک امر وباله ؛ نو پاچا به دهغه په منلو مکلف و . د وخت په تیریدو پاچایانو سوچ وکړ چې دا هم یو ستر مصیبت شو چې مذهبي مشر څه غواړي هغه دخدای لورته منسوبوي او پرموږ یې مسلط کوي ؛ نو ولې داسې نه کوو چې دا واک هم په خپله ولکه کې راولو ، چې هغه مراقبه کولای شي یا د خدای رضا مالومولای شي ؛ نو دا کار خو موږ هم کولای شو ، په پای کې داسې وشول چې پاچایانو ځیني مذهبي مشران په خپل واک کې ورسره شریک کړل او دهغوی واک یې په خپل لاس کې واخیست ، او اعلان یې وکړ چې مذهبي مشرته الهام شوی چې له دې وروسته د خداي رضا مالومول او قانون جوړولو واک پاچا ته وسپارل شو ، په همدې توګه دمراقبې او له خدای سره داړیکي نیولو اختیار د مذبي مشر له لاسه ووت او د پاچا په پچه وخوت. له دې وروسته داخبره ومنل شوه چې پاچا هرڅه وايي هغه به خداي قانون وي، چې په نتیجه کې د خلکو ترمنځ داسې فکر خپور شو چې پاچا په حقیقت کې په جنت کې ټاکل کیږي او داجنتي مخلوق دی ، دالله تعالی له خوا ټاکل کیږي ،



د هغه جل جلاله نه خپل اختیار را اخلي او دنیا ته راځي؛ نو څکه هغه خدايي مخلوق دی ، اوس چې دوی هر ډول قانون جوړوي او یا امر صادروي هغه دټولو خلکو له پاره واجب الاطاعت دی ، او که کله داسې وشي چې پاچا پر چا ظلم کوي او یا یې شکنجه کوي؛ نو له دې امله چې د دوی ټول کړه وړه دالله تعالی له خوښې سره سم دي ، پر ولس فرض دي چې پر ظلم او شکنجه صبر وکړي، او د دوی دګوښه کولو هڅه دې هم نه کوي.

په همدې توګه تیوکراسي د مذهبي مشرتابه له لاسه ووته او په پاچایانو کې یې ځای ونیو.

## عیسایي تیوکراسي

له یهودو وروسته عیسائیت منځ ته راغی ، دعیسائیت په اړه لومړی داخبره زده کړئ چې عیسی علیه السلام یوازې بنی اسرائیلو ته پیغمبر رالیږل شوی و ، او د ده رالیږلو اصلي موخه دشرک او ځینو نورو بدو خویونو له منځه وړل و ؛ نو څکه دهغه شریعت په بنسټیزه توګه له ځینو ځانګړو احکاماتو پرته نور ټول دتورات له حکمونو سره برابر و ، دځینو حکمونو استثنا یې هم زه داسلامي عقیدې له مخې کوم ، کنه نو دبائبل دتصور له مخې عیسی علیه السلام یوازې دتورات حکمونو دپلي کولو له پاره رالیږل شوی و او نه یې غوښتل چې په هغه کې کوم بدلون راولي، دبائبل وینا داسې ده چې عیسی علیه السلام دنوي دین سره نه و رالیږل شوی. په بائبل کې دعیسی علیه السلام بې شمیره ویناوي په دې مانا دي چې زه دتورات منسوخ کولو لپاره نه یم رالیږل شوی، بلکې زه دتورات نافذولو له پاره رالیږل شوی یم.

دا ویناوې په هغو څلورګوني انجیلونو ( اناجیل اربعه ) کې هم شته چې اوس یې هم عیسایان مني ، له همدې کبله دعیسایانو په ربښتوني مذهب کې دعیسی علیه السلام شریعت دموسی علیه السلام له شریعت څخه جلا نه و .

خو "پولوس" يا "سينټ پال" چې کوم عيسايت له ځانه جوړ کړی دی په هغه کې دا دعوه هم شوې ده چې دعيسی عليه السلام په راتلو سره دتورات ټول حکمونه منسوخ شوي دي.

د "سينټ پال" يادونه موږ مخکې هم وکړه ، ده ته "پولوس" هم وايي ، نوموړی دعيسی عليه السلام په زمانه کې و ، د هغه خپل نوم "ساؤل" او په خټه يهودي و ، اسمان ته د عيسی عليه السلام له ختلو وروسته چې کله دهغه حوارينو (لارويانو ) دخپل دين تبليغ پيل کړ ؛ نو دوی ته تر ټولو ستر گواښ يهودان ول، يهودو نه غوښتل چې حوارين د خپل دين تبليغ وکړي ، هرځای چې به حوارينو سر راپورته کړ ؛ نو د يهودو له لاسه به سخت شکنجه کېدل او ډول ډول تعذيبونه به يې ورکول چې په دې کار کې "پولوس" تر ټولو وړاندې و ؛ خو ده پر عيسائي حوارينو تراوږدې مودې ظلم کولو وروسته يوځل ناڅاپه اعلان وکړ چې زه له دمشق څخه را روان وم ، په لاره کې زما د سرله پاسه په اسمان کې يوه رڼا را ښکاره شوه اوله هغې رڼا څخه ماته داسې غږ و شو : ((اې ساؤله ! ته پر ماولې ظلم کوې؟ نوموړي وويل: "دا دعيسی عليه السلام غږ و او موخه يې داوه چې زما پر لارويانو او حوارينو تېری ولې کوې؟ " هغه ويل "له دې پېښې وروسته ما خپل ژوند بدل کړ او له پخوانيو کارونو څخه مې توبه وويستله ، يهودي دين مې پرېښود او پرعيسی عليه السلام مې ايمان راوړ او اوس زه عيسايي شوم ".

خو "پولوس" له عيسائيت منلو وروسته په دې دين کې لاسوهنه وکړه او بېخي بل ډول نوی دين يې له ځانه جوړ کړ چې د ځلور گوني انجيلونو له مذهب سره يې هيڅ تړاو نشته. تثليث ، کفاره او نورې عقيدې ده له ځان نه جوړې کړې چې په انجيلونو کې د دې هيڅ يادونه نده شوې ، اوس هم څوک په څلور گونې انجيلونو کې دتثليث کلمه نشي پيدا کولای ، په يوه انجيل کې به هم څوک داسې جمله پيدا نه کړي چې په هغې کې داسې وي چې خدايان درې دي، ياخدای له درې "اقانيمو" : پلار، زوی او روح القدس څخه عبارت دی ، داخبره په يوه انجيل کې هم څوک نشي وړاندې کولای او نه هم په هغو کې دکفارې عقيدې په اړه څه شته ، کومې خبرې چې نن دعيسايي دين بنسټ دی هغه يوه هم په انجيلونو کې نشته، دا ټولې خبرې "پولوس" له ځا ن نه جوړې کړې دي.



"پولوس" په ډېرو شيانو کې ترميم وکړ ، او تر ټولو لويه لاسوهنه خو دا وه چې ده دتورات قانون لعنت وگرځاوه او ويل يې چې زه دېته رالېږل شوی يم چې خلک ددې لعنت څخه خلاص کړم.

دا يو اوږد داستان دی چې "پولوس" څه ډول په عيسايي نړۍ کې دحوارينو اغيز له منځه يووړ او په هغوی کې يې خپله مينه او اغيز پيدا کړ. زما په کتاب "عيسائيت کياهی "(عيسائيت څه شی دی ) کې په دې اړه بشپړ تفصيل شته.

لنډه دا چې "پولوس" دتورات حکمونه منسوخ وبلل او اوس په عيسائيت کې يوازې هغه خبرې د منلو وړ دي چې په څلور گوني انجيلونو کې راغلي دي. که تاسې څلور واړه انجيلونه ولولی؛ نو ډېره گرانه به وي چې تاسو دکوم تمدن يا سياسي نظام په اړه پکې څه پيدا کړی، په هغو کې يوازې دا جملې راغلي دي چې: "که څوک تاسو پرمخ په څاپېړه ووهي ؛ نو دا بل مخ هم ورواړوئ، اوکه څوک درنه کورتۍ اخلي؛ تاسې خپله چوپانه هم ورکړئ "

مانادا چې په انجيلونو کې دنيک چلند ، صبر اوښه حوصلې او نورو اخلاقي خبرو په اړه ډېر څه شته ، خو د احکامو او قوانينو په اړه پکې هيڅ نشته. تاسو فکر وکړئ چې په يو مذهب کې له پيل نه کوم قانون موجود نه وي؛ نو څنگه به هغه د قانون ډانچه وگرځول شي؟ اوس که چېرې يو حکومت دعيسائي مذهب پربنسټ جوړېږي؛ نو ددې اړيکه به له څلور واړو انجيلونو سره ناشونې وي ، ځکه چې په انجيلونو کې دحکومت په اړه له سره څه شته نه.

همدا لامل و چې کله په څلورمه پېړۍ کې د روم پاچا لومړی "قسطنطين" عیسایي شو، او عیسائیت یې رسمي مذهب اعلان کړ؛ نو داپوښتنه راولاړه شوه چې دمذهب پر بنسټ باید څه ډول قانون جوړ کړل شي، سره له دې چې په څلورو انجیلونو کې د قانون هیڅ یادونه نده شوې، یانې دومره یادونه هم نه ده شوې څومره چې په تورات کې و، په تورات کې خو د تعزیراتو او قضا په اړه څه ناڅه قوانین وو، خو له دې سره سره بیاهم د حکومت چلولو د پاره د مذهبي مشرانو دمراقبې اړتیاوه، او په انجیلونو کې خو دومره څه هم نه و چې دحکومت دقانون له پاره بنسټ وګرځول شي چې له همدې امله یوه بله فلسفه رامنځ ته شوه، هغه دا چې دوی دقوانینو جوړولو ټول واک کلیساته وسپاره.

دلته دا یادونه هم اړینه بولم چې په عیسایي کاتولیک مذهب کې کلیسا چې په انګریزي ژبه کې ورته "چرچ" وایي یوازې دعبادت ځای نه دی بلکې هغه یوه ځانګړې اداره ده.

زموږ په اسلامي ټولنه کې جومات یوازې دعبادت له پاره دی؛ خو په عیسایي مذهب کې کلیسا یوه پېچلې اداره ده، او د دوی په عقیده دا د عیسی علیه السلام ترټولو نږدې او پاک حواري "پطرس" نائبه اداره ده.

دعیسی علیه السلام دوولس حوارییین ول؛ په هغوی کې دعیسائي مذهب سره سم ترټولو غوره او لوړ رتبه حواري چې دعیسی علیه السلام ټول علوم ورته ورنقل کړل شوي دي هغه ښاغلی "پطرس" دی چې په انګریزي ژبه کې ورته "**Peter**" وایي.

عیسایان په دې عقیده دي چې کلیسا دیوې ادارې په حیث دښاغلي "پطرس" ځای ناستې ده، داسې به ووایو چې بلا تشبیه لکه مسلمانان چې په دې عقیده دي چې له پیغمبرعلیه السلام نه وروسته ترټولو لوړمقام دابوبکرصدیق رضی الله عنه دی. عیسایان "پطرس" دعیسی علیه السلام



وروسته تر ټولو غوره شخص ګڼي، بلکې تردې یې هم زیات غوره بولې ځکه چې دعیسایانو په عقیده حوارین ټول پېغمبران ول. دوی وایي چې "پطرس" ترڅان وروسته دمذهب کار مذهبي مشرانو ته ورسپارلی و، او د کلیسا دا اداره د همدې مذهبي مشرانو په مرسته منځ ته راغلې؛ نوځکه د "پطرس" نائبه وګرځېدله.

دا اداره د احکامو صادرولو او قوانینو وضع کولو حق لري. دکلیسامشر "پاپ" یا "پاپا" نومیږي، او د دې پاپ تر مشرۍ لاندې د مذهبي مشرتابه یو ترلی او ټینګ نظام وي چې د مذهبي مشرتوب بېلا بېلې درجې لري او هره درجه بیا ټاکلي دندې او اختیارات لري. ترټولو په ټیټه درجه کې "ډیکن" (**Deacon**) وي، بیا "ارچ ډیکن" (**Arch Deacon**) وي بیا "بشپ" (**Bishop**) او ورپسې "ارچ بشپ" (**Arch Bishop**) او بیا "کارډینل" (**Cardinal**) وي. په پای کې اویا (۷۰) کارډینله سره راټولیږي او پاپ ټاکي. پادري "**Priest**" داسې کلمه ده چې عبادت کونکي یا لارښوونکي ته کارول کیږي؛ دپادرۍ هغه مختلفې رتبې دي چې مخکې یې موږ دځینو یادونه وکړه، او داهم شوني ده چې یوتن پادري وي؛ خوله پورتنیو یادوشویو رتبو څخه برخمن نه وي. او دکلیسا په اداره کې چې رتبه په رتبه کومې دندې دي دهغو نظام ته په عربي ژبه کې (نظام الکهنوت) وایي او په انګریزي کې ورته هائریر "**Hierarchy**" وایي او په مختلفو دندو باندې دګومارل شویو افرادو مجموعې ته کلرجي "**Clergy**" وایي.

دکلیسا په دې پېیلي او پوړیز نظام کې د یوچا برخه اخیستل یوازې د هغه دعلمي او عملي وړتیا پربنسټ نه وي، بلکې په دې کې نژادي او سیمه ییزې سیالۍ هم ډېر رول لري، او دغه راز په کلیسا کې ټاکنې هم کیږي، هغوی یوه شورا لري چې پربېلابېلو دندو دخلکو دګومارلو له پاره انتخابات کوي، او په دې ټاکنو کې هم ټولې هغه هلې ځلې کیږي کومې چې په سیاسي انتخاباتو

کې ترسره کیږي، او کله ناکله خونژادي بندیزونه هم لګیږي. دبېلګې په ډول په یوه سیمه کې تور پوستي او سپین پوستې دواړه ژوند کوي، او ټول عیسایان دي ؛ نو داسې هم کیږي چې "بشپ" تل سپین پوستی وي، او تور پوستی دادنده نشي ترسره کولای که څه هم هغه ډېره پوهه ولري.

او بیا داخبره منل شوې ده چې پاپ دکلیسا استازی دی او کلیسا دنباغلي "پُطرس" نائبه اداره ده، نو ځکه پاپ هم له ګناهونو پاک ګڼل کیږي.

د رومن کاتولیک عیسایان په دې عقیده دي چې پاپ معصوم دی او په مذهبي چارو کې له هر ډول ګناهونو څخه پاک دی ، ددې له پاره په انګریزي ژبه کې د (Infallible ) اصطلاح کارول کیږي ، یاني هغه شخصیت چې هیڅکله نشي ښېلاري کېدلای. خو دده معصومیت یوازې په تشریعي کارونو پورې ځانګړی وي، په کوم وخت کې چې دی یو شرعي حکم جاري کوي یاکوم قانون نافذوي ؛ نو هغه معصوم وي او هیڅ ډول خطا نه ترې کیږي. دېته موهم پام وي چې پاپ یوازې شارح نه وي بلکې هغه شارع یاني قانون جوړونکی هم وي، نوموړی دقانون جوړولو پوره اختیار لري. او په همدې کارونو کې دی معصوم ګڼل کیږي او له دې پرته په نورو کارونو کې له ده څخه خطایي هم کېدلای شي ، ترڅو چې یو تن پاپ شوی نه وي ترهغوی معصوم نه وي؛ خو چې کله پاپ شي ؛ نوله هغه وروسته دی معصوم ګڼل کیږي.

اوس له یوې خوا په څلور واړه انجیلونو کې دحکومت او سیاست په اړه کوم واضح قانون نشته او له بلې خوا پاپ د دومره ستر واک څښتن دی چې آن له ګناهونو څخه هم پاک ګڼل کیږي. له دې څخه دا څرګنده شوه چې دعیسایي ټولنې هرڅه په پاپ پورې تړلي دي ، دی کولی شي هر ډول حکم صادر کړي او چې څه ډول قانون غواړي نافذولای یې شي او څوک یې مخه هم نشي نیولای او نه هم په دې معاملاتو کې څوک چیلنج ورکولای شي.



نو له یوې خوا دومره بې ساري او ډېر اختیارات او له بلې خوا دا چې دپاپ په ټاکلو کې دنژادي او قومي تعصباتو له امله دا اړینه نه ده چې داسې څوک دې پاپ شي چې پر نورو علمي او عملي لوړ والی او غوراوی ولري ؛ نو پایله یې داسې شوه چې پردې سپېڅلې او ځواکمنه دنده ډېر نااهله کسان هم وګومارل شول. خبره تردې راورسېده چې یو ځل د دوی ترمنځ د پاپ د چوکۍ پر سر یو ستر اختلاف رامنځته شو چې په پایله کې یو مشهور سمندري غل هم د دې سپېڅلې دندې څښتن شو ، دهغه نوم "جون" (Jhon ) و چې درویشتم جون (Jhon twenty third ) ورته وایي، اوس چې پاپ په تشریعي کارونو کې معصوم یاني له ګناهونو پاک وي؛ نو همدا ټول برکتونه د ده هم په برخه شول.

دغه راز په دې پاپیت کې ټول نه؛ خو یو زیات شمېر خلک داسې وو چې دهیڅ ډول بدو کارونو څخه به یې دریغ نه کاوه. تردې چې یو ځل پاپ حکم جاري کړ چې څوک جنت ته تلل غواړي؛ نو هغه دې موږ ته زموږ څخه د بخښنې لیک راولیږي. او کلیسا به دهمدې بخښنلیک ډېر زیات قیمت ترلاسه کاوه او دا لیک به په زرګونو روپو پېرل کېده، تر دې چې خبره تر پخوانیو مړو هم ورسېدله، خلکو غوښتل چې خپل هغه مړي هم په دې بخښنه ونازوي چې هډو کې یې هم خاوري شوي و ، وارثانو یې غوښتل چې دوی هم جنت ته بوځي؛ نو پاپ ته به ورتلل او وړاندیز به یې ورته کاوه چې زموږ پلانی دوست پخوا مړ شوی دی اوس تاسې دهغه دبخښنې څه چاره وکړئ. کلیسا به ددې په بدل کې پرېمانه پیسې واخېستلې او دهغوی بخښنلیک به یې صادر کړ.

له بلې خوا همدې پاپانو دپاچایانو په پزو کې قیزې ور اچولي وې او د هغوی واګې به د دوی په لاس کې وې؛ نو پاچا به اړ و چې ددې "معصوم" د تشریحي احکامو پابند وي، او دوی نشو کولی د پاپانو له خوښې پرته کوم

کار ترسره کړي چې په نتيجه کې يې د دوی ترمنځ رقابتونه راوټوکېدل. کله ناکله خو به داسې حالت هم رامنځ ته شو چې پاچا به د پاپ په خبرو منلو کې بې وسه شو؛ نو ويل به يې چې دا پريکړه زه نه منم، په دې سره به پاپانو دده پرضد دبدعتي (بې دينه) فتوا جاري کړه چې له امله به يې پاچا له واکه دګوښه کولو وړ وګرځېدی.

او بله دا چې دوی د خپلو مخالفينو دځپلو لپاره يوه سخته او ظالمانه محکمه جوړه کړې وه چې دوی به ورته د تحقيق او پلټنې محکمه (**Inquisition**) ويله، او دې محکمې بشپړ اختيار درلود چې د هر شخص د حالاتو مالومولو په موخه له هغه څخه پلټنې وکړي، چې د ده عقائد څه ډول دي؟ دی په تنهايي کې څه خبري کوي؟ کوم ډول کتابونه لولي؟ له کومو خلکو سره اړيکي ساتي؟ او چې نورو هېوادونو ته ځي؛ نو هلته له څه ډول خلکو سره ويني... او دا داسې شکنجه او تعذيب و چې يو ځل به څوک دې کندې ته ولويد؛ نو بيا به د هغه د راوتلو هيڅ لار نه وه، په هره کوڅه کې به د دوی يو پټ جاسوس او سبدی او هغه به هر ډول راپورونه دوی ته ور رسول، کوم خلک چې به د دې محکمې په دام کې راګېر شول؛ نو د هغوی پوستکی او نوکان به په ژوندون استل کېدل او ژوندی به سوځول کېده. د ظلم، شکنجې او تعذيب داسې ډول نه و چې هلته به نه ترسره کېده.

تاسو ته مالومه ده چې مسلمانانو پر اندلس ۷۰۰ کاله واکمني کړې ده؛ خو کله چې د "غرناطې" وروستي واکمن "ابوعبدالله" عيسايانو ته وسله پر ځمکه کېښوده له هغه وروسته هلته د مسلمانانو واکمني پای ته ورسېدله. هغه مهال د "ابوعبدالله" او عسايي پاچا "فرډينينډ" ترمنځ يوه لوزنامه لاس ليک شوې وه، په هغه لوزنامه کې دا خبره منل شوې وه چې مسلمانان به دخپلو لمانځنو بشپړه ازادي لري، او د مسلمانانو عبادت ځايونه به پر خپل حال وي، او د دوی په عباداتو او تعليم کې به هيڅ ډول لاسوهنه نه کيږي. خو



کله چې د "فرډينينډ" پوځ غرناطې ته ور داخل شو، هغه لوزنامه يې په عملي توګه داسې بې بنسټه وګرځوله چې د هغې په يوه خبره يې هم عمل و نه کړ، ټول جوماتونه يې په کليساوو بدل کړل، او د قرطبې او غرناطې د ټولو کتابتونونو کتابونه يې يو ځای ډېری کړل او داسې يې وسوځول چې په مياشتو مياشتو يې اورونه بلېدل او له دې وروسته يې د مسلمانانو پر ضد د تحقيق او پلټنې (**Inquisition**) په پلټونکو عملياتو لاس پورې کړ، او هغه مسلمان به يې هم نه پرېښود چې د عيسايانو په اړه له خولې يو توری وباسي، چې په پايله کې يې مسلمانانو ته بې دريغه تعذيبونه او تکليفونه ورسول، بالاخره مسلمانان اړ شول چې له هغه ځايه کډه وکړي او الجزائر او مراکش ته پناه يوسي.

ددې محکمې دا دستور هم و چې پاپ به يو حکم جاري کړ او د کوم شخص به ورسره اختلاف راغی چې ګواکې دا حکم د بائبل له غوښتنو خلاف دی، يا د عيسايي دين له روح سره ټکر لري. نو داسې خبرې به چې چا وکړې کليسا به هغه بدعتي (بې دينه) (**heretic**) اعلان کړ، او د هغوی په دين کې د بدعتي مانا دا وه چې دی نور په ټولنه کې د ژوند کول حق نه لري، دی بايد هرمرو ووژل شي. کېدای شي دا خبره تاسې حيران کړي چې تر ۱۴ او **۱۵** زېږديزه پېړۍ پورې د بائبل ترجمه کول جرم و، بلې ژبې ته د بائبل ترجمه کول ناشونی کار و او که چا به دا کار وکړ؛ نو هغه به مجرم ګڼل کېده. د بائبل پر ترجمه له دې امله بنديز و چې کوم اصلي بائبل و هغه په خپل ځای کې محدود وساتل شي او بل څوک ترې خبر نشي ترڅو دا نيوکه څوک ونکړي چې ستاسو پلانی حکم د بائبل سره ټکر لري.

په هغه زمانه کې د جان هس (**John Huss**) په نوم يو تن پيدا شو، نوموړي په لومړي ځل بائبل په پټه ترجمه کړ؛ خو کله چې د هغه دا کار افشا شو؛ نو

دهمدې ترجمې له امله نو موږ ی ژوندی وسوځل شو. دا دپاپیت او عیسائیت تیوکراسۍ وه چې څو مالومې تګلارې یې ما تاسو ته وړاندې کړې.

له دې نه تاسو مالومولی شي چې نوم دخدایي حاکمیت و؛ خو دا په حقیقت کې دیوڅو تنو ترټولو بده واکمني او دیکتاتوري وه، او همدوی دخدای او مذهب ترنامه لاندې یو کرغېړن نظام پرمخ بېوو.

دپاپیت دا انځور چې ماتاسو ته وړاندې کړ، که څه هم په دې اړه دعیسایانو بلې ډلې "پروټسټنټ" ډېره مبالغه کړې ده او په بېلابېلو ډولونو یې د دوی انځور وړاندې کړی دی، داسې نه و چې ددې نظام بنسټ سل په سله پرخرابۍ ولاړو، په دې کې سهي دور هم راغلی دی او په دې نظام کې ځینې داسې خبرې هم وې چې داسې ډول نېوکې نه پرې رښتیا کېدلې، ددې مبالغو اړخ هم پوځه بېل دی؛ خو هغه حقائق چې مادرته وړاندې کړل چې پاپ به له ګناهونو پاک ګڼل کېده، دبخښنې یامغفرت په نوم به تجارت کېده، او دپاپ تشریعي حکم دقانون درجه درلوده او هغه دقانون شارع بلل کېده، او دپلټنې په محکمه کې به خلک سخت شکنجه کېدل او پاچا به له دې بې پولې واک څخه ډېر پرېشانه و، داهغه خبرې دي چې دهیچا پکې اختلاف نشته او دعیسایي تیوکراسي بنسټ پرهمدې شیانو ولاړو.

اوس که تاسو داهر څه خپل مخ ته کېږدي او دقیق سوچ پرې وکړئ؛ نو داخبره به درته جوته شي چې داسلامي نظام مخنیوی کول یا په سیاست کې دعالمانو ونډه نه منل او د عیسایي تیوکراسي سره یې تشبیه کول به ډېره بې ځایه او پرانصاف نه ولاړه خبره وي، ددې خبرې دهغې تیوکراسۍ سره هیڅ تړاو نشته کومه چې په رومي واکمنیو کې پلې کېده، بلکې داسلامي واکمني او عیسایي تیوکراسي ترمنځ دختیځ اولو یدیځ هومره واټن دی.



داسلامي حکومت جوړولو او عسائي تیوکراسي ترمنځ لاندې څرګند توپېرونه موجود دي:

١. په انجیلونو کې دسیاست او حکومت په اړه احکام د نشت برابر دي، له همدې کبله دا حکامو جوړولو ټول واک دمذهبي مشرانو په لاس کې دی. او ددې برعکس داسلامي احکامو بنسټ پرقرآن کریم او سنتو ولاړدی، او په دې دواړو کې په ټولېزه توګه ګڼ شمېر څرګند حکمونه موجود دي، او په کوم ځای کې چې څرګند نص موجود وي هلته دیو فرد ځانګړي رایي ته هیڅ اعتبار نشته.

٢. په عیسایانو کې کلیسا یوه مستقله اداره ده چې غړي یې پخپله انسان ټاکي او دا اداره چې کوم قانون جوړوي هغه سره هیڅوک داختلاف کولو حق نه لري. ددې برعکس په اسلام کې داسې ډول اداره هیڅ وجود نه لري، یوازې دقرآن او حدیثو دڅېړنې او تعبېرله پاره له منطقي پلوه ځینې شرطونه هرو مرو شته؛ خو څوک چې له دې شرطونو سره برابر نه وي هغه نشي کولای دقرآن او حدیث څېړنه او تشریح وکړي. له دې نه پرته بله کومه اداره نشته بلکې د ټول امت اجتماعي ضمیر د هغه د منلو یا دکولو پرېکړه کولای شي، آن که د دوو مستندو او باوري مجتهدینو ترمنځ اختلاف وي؛ نو حاکم کولای شي په دوی کې دیوه رایه غوره وګڼي او نافذه یې کړي چې بیا هغه دقانون په توګه منل پرټولو لازم ګرځي که څه هم هغه دچا دشخصي رایي خلاف وي.

تاسو به هغه مشهوره کیسه اوریدلې وي چې په طبقات ابن سعد کې را وړل شوې ده، هغه دا چې عباسي خلیفه ابو جعفر منصور یو ځل امام مالک رحمه الله ته وړاندیز وکړ چې زه به ستا کتاب "موطا امام مالک" او ستا مذهب دحکومت رسمي قانون وګرځوم او په هېواد کې به یې نافذ کړم. امام مالک رحمه الله دهغه دا وړاندیز ونه مانه او ویې ویل چې زه نه غواړم خپل اجتهاد پر ټول امت ومنم، ځکه چې هر څوک په قرآن او حدیث پوهه او

بصيرت ولري هغه د اجتهاد حق لري او د همدې اجتهاد حق په کارولو سره کولی شي زما له رايي سره اختلاف وکړي ؛ نو زه نه غواړم چې ټول امت د يوه اجتهاد پابند وي.

٣. په عيسائيت کې پاپ په تشريعي معاملاتو کې له ګناهونو څخه معصوم ګڼل کيږي. او د اسلامي عقيدې له مخې عصمت يوازې انبياوو ته ځانګړې دی، او د نبوت د لړۍ پای ته رسېدو وروسته نه څوک د عصمت دعوه کولای شي او نه هم د اسلام په تاريخ کې تر اوسه تر ټولو لوړ عالم يا مجتهد داسې دعوه کړې ده.

په اسلام کې کومه اداره يا نظام معصوم نه بلل کيږي؛ خو دومره شته چې ټول امت پر ګمراهي نشي را ټولېدلی؛ نو که پر يوه مسئله ټول امت يوه خوله وي هغه به حق مسئله وي.

له دې پرته د قرآن او حديثو د څېړنې کار نه په کوم نسل پورې ځانګړی دی، نه په کومې دندې پورې او نه هم په کوم نسب پورې. بلکې دا کار د ځينې علمي صلاحيتونو پر بنسټ ولاړ دی او همدا علمي صلاحيتونه او صفات چې په هر چاکې پيدا شي ، هغه د قرآن او حديث د څېړنې حق لري. بيا د امت مجتهدينو اجتهاد او څېړنې د نورو مخ ته ايښودل کيږي او دوی پر هغو د نيوکې حق لري او کولی شي له هغوی سره بحث او مناظرې وکړي او په پايله کې اسلامي امت په ټوليزه توګه يوه رايه غوره کړي. نو د عيسايي تاريخ تيوکراسي د اسلام پر حکومتي نظام تپل به ډېر ستر تېری او ظالمانه خبره وي.

په نننۍ نړۍ کې که چېرې د اسلامي حکومت خبره کيږي ؛ نو ځينې لوېديځ پلوه يا هغه خلک چې هلته يې زده کړې ترلاسه کړې وي، وايي چې ملايان غواړي د پاپانو نظام راولي؛ خو څوک چې دا خبره کوي هغه په حقيقت کې د پاپيت د اصلي بنې او په اسلام کې د علماوو د رول څخه ناخبره وي.



که څوک په دې پوه شي چې "پاپيت" څه و او د اسلام شريعت علماوو ته څومره حد ټاکلی؛ نو بيا به داسې ډول بې ځايه نيوکې نه کوي. هو ! دا هرومرو څرګنده ده چې اسلام د قرآن او حديث د پوهاوي او څېړنې لپاره د اهليت ځينې ځانګړي صفتونه ټاکلي دي؛ نو همدا صفتونه که په چاکې وموندل شي ، هغه د قرآن او حديثو د تشريح او څېړنې حق لري او که په چاکې دا صفتونه موجود نه وي ، هغه نشي کولی د قرآن او حديثو څېړنه وکړي.

هر سړی ، نه سړی ودريږي او اسلامي نظام "پاپائيت" بولي ، اوس نو که ما ټول ژوند قرآن نه وي لوستی او نه هم په حديثو پوهېږم او دا د ځان حق بولم چې په دې اړه خپله رايه ورکړم ؛ نو د دې حماقت هيڅ درملنه نشته. د هر علم او فن په چوکاټ کې د اهليت ځيني صفتونو ته اړتياوي، هماغه صفتونه په ځان کې پيدا کړه ؛ نو بيا ته هم حق لرې په دې اړه څه ووايې؛ خو که د اهليت دا صفتونه په چاکې موجود نه وي او پر هغو باندې عالمان نيوکه کوي؛ نو بايد دوی ته د "پاپيت" او "تيوکراسي" تانه ورنه کړل شي.

نو تيوکراسي له خپلې اصلي مانا او تصورله پلوه غلطه نه ده، ځکه چې تيوکراسي د الله تعالی حاکميت ته وايي؛ خو همدا تيوکراسي يهودي ، عيسايي او نورو مذهبونو بدنامه کړه. خوکه د اسلام د اصولو سره سم حکومت جوړ کړل شي ؛ نو په هغه کې به دا ډول نېمګړتياوې هيڅکله هم رامنځته نه شي.

## تيوكراسي او د كفارې عقيده

د تيوكراسي په لړ كې دلته يو بل مهم اړخ ترڅېړنې لاندې نيسو. دتيوكراسي په مختلفو پلويانو كې ځيني يې دتيوكراسي روا والي دپاره دعيسايانو كفارې عقيده دبنسټ په توګه وړاندې كوي، او دوى وايي ددې عقيدې سره سم چې هر انسان په اصلي ګناه كې اخته دى هغه بايد ددې ګناه په جزا كې په بشپړ ډول دحكومت هرې پرېكړې ته غاړه كېږدي.

اوس چې دلته د عيسايانو د كفارې عقيدې يادونه وشوه؛ نو پېژندل يې اړين دي.

## د كفارې عقيده

دكفارې عقيده په عيسايانو كې ترټولو لومړنۍ او بنسټيزه عقيده ده او دا كلمه دعيسايانو په هغه ډله كې رامنځ ته شوې چې "پولس" يې بنسټ ايښى دى، دعيسى عليه السلام په سهي دين كې ددې عقيدې هيڅ وجود نشته، دڅلورو انجيلونو څخه په درې هغو كې ددې عقيدې هيڅ يادونه نشته، يوازې په څلورم انجيل كې يوه مبهمه جمله شته چې هغه د دوى دكفارې بنسټ جوړوي، خو وروسته دا عقيده دعيسائيت دملاتېر په توګه وګرځېده، له دې پرته دعسائيت تصور كول ناشونى ګڼل كيږي او دا په هغو عقيدو كې ده چې خواو شا دعيسايانو ټولې ډلې پرې يوه خوله دي. "رومن كاتوليک"، "ارتوډكس" "پروټسټنټ" او دعيسايانو ټولې هغه ډلې دا عقيده مني چې "پولس" يې بنسټ ايښى دى.

دكفارې دا عقيده يوه ډېره پېچلې عقيده ده، ددې لنډه پېژندنه داسې ده چې دوى وايي كائناتو كې ترټولو لومړنۍ ګناه له آدم عليه السلام څخه شوې ده، كله چې الله تعالى آدم عليه السلام وپنځاوه؛ نو هغه يې په جنت كې



مېشت كړ او دى هلته دهر ډول كړنو تر سره كولو لپاره ازاد و، په ده كې د ننه الله تعالى دنېكۍ او بدۍ دواړو صلاحيت او وړتيا ايښې وه او دى د خپلو اكه ارادې قوت څښتن و، ده كولاى شول خپل ارادې قوت دنېكۍ او بدۍ دواړو له پاره وكاروي، الله تعالى پرهغه يوازې يو بنديز ولګاوه چې غنم دې نه خوري، آدم عليه السلام دا بنديز دشيطان څخه داغيزله امله مات كړ او دغنم دانه يې وخوړله؛ نود دوى په عقيده چې آدم عليه السلام دغنم خوړلو داګناه وكړه (نقل كفر كفرنيست) نو هغه دټولو ګناهونو مجموعه وه، او دوى وايي دا كفر هم و؛ ځكه چې دا داسې شوه لكه ده چې دالله تعالى له حكم څخه سر غړونه كړې وي، په دې كې لوېې هم وه؛ ځكه چې انسان خپل ذات دالله تعالى له حكم څخه لوړ وباله، په دې كې حرص هم و؛ ځكه چې په زړه كې يې دغنمو تمه پيدا شوه، په دې كې غلا هم وه؛ ځكه چې كله دى له غنمو خوړلو څخه منع شوى و؛ نو هغه دده له ملكيت او تصرف څخه وتلى و، ده په خپل تصرف كې راوست او ويې خوړ؛ نو داغلا هم شوه، او دوى وايي په دې كې روحاني زناهم وه ځكه چې شيطان د هغه مېرمن دې كارته وهڅوله او (معاذالله) آدم عليه السلام دمېرمني په بې ځايه خبرو تېروت او دخپل ذاتي خواهشاتو پوره كولو له پاره يې دا كار وكړ، نو ځكه په دې كاركې روحاني زناهم وه.

لنډه دا چې ددريمې پېړۍ نوميالى عيسايي عالم "سينټ آګسټاين" وايي چې د زمكې پرمخ هر ډول ګناهونه ترسره كېږي، ددې ټولو يونه يو ډول انځورپه دې ګناه كې شته؛ نو داټولو ګناهونو مجموعه ده چې د آدم عليه السلام له لاسه پېښه شوه، له همدې امله دعيسايي فلسفې په اصطلاح كې دې ته اصلي ګناه (**original Sin**) وايي، دا له دې امله چې په كائناتو كې ترټولو لومړنۍ داګناه ترسره شوې ده او بله دا چې دا دټولو ګناهونو بنسټ و، او له دې امله هم ورته اصلي ګناه وايي چې آدم عليه السلام دهمدې ګناه له

امله نورو گناهونو ته وجود وربخښه ، نو دا د عیسایانو یو جوړ کړل شوی اټکل دی.

د عیسایانو دوهم اټکل دا دی چې کله آدم علیه السلام دغنمو له خوړلو څخه منع کړل شوی و هغه مهال ده ته ویل شوي و چې دغنم خوړلو جزابه مرگ وي ، ځکه چې د تورات په "پیدایښت "کتاب کې چې د آدم علیه السلام داپېښه بیانیږي، هلته داهم شته چې: "له کومې ورځې نه چې تادا وخوړ ، نو ته مړشوې "ددې جملې څېړنه دوی همدا کوي چې دغنمو خوړلو له بندیز سره سره الله تعالی دا هم ورته ویلي و چې که تاغنم وخوړ، نو دغنم خوړلو جزا به مرگ وي.

دریم اټکل دادی چې ددې اصلي گناه د ترسره کولو په پایله کې د آدم علیه السلام ارادي قوت سلب کړل شو ، یاني هغه ازاد اختیارات چې د ده په برخه ول چې که غواړي گناه کوي او یا نیکي کوي ، دا ازاد اختیارات له ده څخه واخیستل شول او نوموړی "مسلوب الاختیار" وگرځېد چې په نتیجه کې ا وس دی دگناه کولو له پاره ازاد دی ، خو دنیکي کولو له پاره ازادنه دی.

دلته داپوښتنه کیږي چې دی ولې سلب الاختیار شو؟ ددې ځواب داسې کیږي چې دگناه یوه لازمي پایله دا ده چې انسان دالله تعالی له رحمت څخه لري کیږي، کوم شی چې انسان له گناهونو څخه راگرځوي هغه دالله تعالی رحمت دی ؛ نو کله چې انسان دالله تعالی له رحمت څخه لري شي هغه داسې شي لکه په گناه کولو چې مجبور وي ، نو پایله یې داشوه چې دخپلو کړو گناهونو بار پخپله پرده ورواچول شو. دا د دوی دریم اټکل دی.

څلورم اټکل یې دادی چې د آدم علیه السلام له ملا نه چې څومره انسانان پیداکیږي هغه د ده اولاد دی، او د آدم علیه السلام وینه په دوی کې جریان کوي، او آدم علیه السلام داصلي گناه مرتکب و ؛ نو له همدې امله دا اصلي



گناه دده ټولو اولادونو ته ورنقل شوه ، مانا دا چې دمورله نسه کوم ماشوم زیږي هغه هم گنهگار پیداکیږي ځکه چې هغه داصلي گناه په دې کارکې شامل دی ، او دگنهگار پیداکیدو یوه مانا داهم ده چې کله انسان دمور له نسه پیداکیږي؛ نو هغه به مسلوب الاختیار وي ، گناه به کولای شي خو نېکي نه شي کولای ، نو یوه اصلي گناه خوده ته دمور په نس کې ورپه برخه شوې ده ، او بله داچې دسلب اختیار په پایله کې ده گڼ شمېر گناوې ترسره کړې ، اوس خبره داسې شوه چې له یوې خوا هرانسان گنهگار پیداکیږي او پرگناه کولو مجبوردی او له بلې خوا دا چې دگناه جزا مرگ دی ؛ نو اوس به ددې ستونزې حل څه وي؟ چې څومره انسانان دي ټولو ته دمرگ جزا ورکړل شي، او دمرگ جزاپه ورکولو سره دوی ټول له دې وبال څخه خلاص شي، اوس که ټولو انسانانو ته دمرگ جزا ورکړل شي؛ نو دنیا به ټوله ختمه شي ، اوکه ټولو انسانانو ته دمرگ جزا ورکړل شي او بیا ټول بېرته راژوندي کړل شي ؛ داهم دفطرت له قانون څخه خلاف کاردی ، یو صورت داهم کیدلای شي چې الله تعالی ټولو خلکو ته په خپل رحمت سره بخښنه وکړي. خو دعقېدې له پلوه داصورت هم ناشونی دی ځکه چې الله تعالی که له یوه پلوه رحیم دی خوله بل پلوه عادل هم دی او دعدل غوښتنه داده چې گنهگارته به دخپلې گناه څه ناڅه بدله ورکول کیږي.

نو ددې ستونزې څخه دوتلو له پاره خپله الله تعالی داسې طریقه جوړه کړه چې خپل کلامي صفت یې په انساني بڼه مجسم کړ او دنیا ته یې دحضرت عیسی علیه السلام په بڼه راولیږه ، هغه دنیا ته راغی او دڅه وخت له پاره پر ځمکه میشت شو او بالاخره دی زندۍ (اعدام )کړل شو ، هغه داعدام پړي ته خپله غاړه کیښوده او داصلي گناه دمرگ سزا یې خپله پر خپل ځان جاري کړه ، او په دې سره دالله تعالی هغه وینا عملي شوه چې ویل یې: "له کومې ورځې نه چې تادغنمو دانه وخوړله ، نو ته مړشوې". په دې سره الله تعالی دآدم علیه

السلام او دهغه داولا د داصلي گناه جزا پر عیسی علیه السلام باندې جارې کړه اودهغه مرگ دټولو انسانانو له پاره کفاره شوه، او دکفارې په نتیجه کې دآدم علیه السلام دټول او لاداصلي گناه وبخښل شوه ، هغه گناه چې آدم علیه السلام ترسره کړې وه چې له امله یې دانسان په فطرت کې گناه نغښتې وه، او په پایله کې یې انسان داطاعت له ځواک څخه بې برخې شوی و ، هغه اصلي گناه دهمدې کفارې په ذریعه وبښل شوه، او انسان ته بېرته دنېکۍ او بدۍ اختیار ور په برخه شو. اوس نو که دی غواړې نېکي کوي او که بدي کوي ، خو دا کفاره هغه مهال انسان ته کفاره کېدلای شي چې دی پر یسوع مسیح (عیسی علیه السلام ) باندې ایمان راوړي؛ نو ددې کفارې څخه دگټه اخیستو له پاره یوازینۍ لاره داده چې انسان پر "یسوع مسیح" هغه دخدای په زوی منلو او دهغه په کفاره منلو ایمان راوړي، او ددې نښه داده چې هغه به "بپتسمه" اخلي چې اصطباغ هم ورته وایي. مانا دا چې په هغه ځانگړې ډول به غسل کوي چې په عیسائیت کې د داخلېدلو لازمي غوښتنه ده. او دا هغه شی دی چې قران کریم ورته په دې ایت کې اشاره کړې ده: صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَ مَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً وَّ نَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ (۱)

ژباړه: داخلک په ظاهري رنگ ځان رنگوي؛ خو په حقیقت کې رښتونی رنگ د الله تعالی دی او د الله تعالی له رنگ څخه بل غوره رنگ د چا کېدلی شي.

داد کفارې عقیدې لنډه پېژندنه وه ! دتیوکراسي ځیني پیروان خپله نظریه دهمدې عقیدې پربنسټ بیانوي ، دوی وایي په حقیقت کې حکومت دهمدې اصلي گناه عذاب دی چې پرانسانانو مسلط کړل شوی دی، یاني هغه اصلي گناه چې دانسان په دماغو کې نغښتې ده ، دهغې له امله ددې اړتیا پېښه شوه چې باید یو حاکم هیئت موجود وي چې له انسان څخه د دې گناه بدله واخلي یا یې په راتلونکي کې له گناهونو وژغوري ، نو الله تعالی یوه اداره جوړه کړه

[1] سورة البقره: ۱۳۸



چې حکومت ورته وایي ، له دې امله چې دا د الله له خوا جوړه کړل شوې اداره ده؛ نو دحکومت هر پاچا یا مشرد سپېڅلتیا څښتن دی، اوس چې دی پاک او سپېڅلی دی؛ نو په هر کار کې واجب الاطاعت دی ، که دی ظلم کوي او که انصاف کوي هیڅ انسان باید د ده د گوښه کولو ، یا دده له حکم څخه دسرغړوني هڅه ونکړي. دتیوکراسي یوې ډلې دنظریې مهم ټکی همدا دی.

له دې څخه تاسو مالومولی شي چې انسان له کومو لارو او څه ډول دبېلاریو کندي ته ورلوېدلی دی ؟ او الله جل جلاله مونږ دخپل استازي محمد صلی الله علیه وسلم په ډالۍ سره له څومره بېلاریو او گمراهیو څخه ژغورلي یو !

رښتیا هم چې د رڼا ارزښت له تیارو وروسته مالومیږي او دهدایت ارزښت له بېلارۍ وروسته ښه ځرگندیږي ، کله چې سړی په دې دنیا کې د بېلارو خلکو مطالعه وکړي او دوی وگوري ، نو سړي ته دا اسلام ارزښت په ډېر ښه ډول مالومیږي. له خوږ پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم نه ځارشم چې له څومره سختیو او کړاوونو گاللو وروسته یې مونږ له دې گمراهیو او تورو تیارو څخه را استلي یو !

## عیسائیت او د اروپا فکري تاریخ ته ځغلنده کتنه

دعیسائیت خبره مخ ته راغله. نو دابه مناسبه وي چې دلته دعیسائیت دتاریخ یوه لنډه خاکه تاسو ته وړاندې کړو ، په مختلفو ځایونو کې ددې تاریخ د بېلابېلو مرحلو حوالې مخ ته راځي، او د دې تاریخ لورته اشارې کیږي، اوبله دا چې په اروپاکې ځو مره نظامونه منځ ته راغلي دي سیاسي دي که اقتصادي ، او که ولسي دي، ددې ټولو ترشا دعیسائیت یوډول نه یو ډول تړاو موجود دی.

دلته پیل له بني اسرائیلو کوو. اسرائیل دیعقوب علیه السلام نوم دی. دهغه دوولس (۱۲) زامن وو ، له همدې دوولسو څخه دبني اسرائیلو دوولس کورنۍ منځ ته راغلي دي چې دوولس اسباط هم ورته وایي او په قرآن کریم کې یې ځای پرځای یادونه شوې ده ، دهرې کورنۍ څخه یوه قبیله جوړه شوې ده او د دوی اصل ټاټوبی فلسطین دی ؛ خو کله چې یوسف علیه السلام مصر ته یو وړل شو او څه موده وروسته هلته واکمن شو ، نو ده خپل مور و پلار او وروڼه مصرته ور وبلل، په دې وخت کې عمالقه وو پرفلسطین برید وکړ او ترخپلې ولکې لاندې یې راوست. په پیل کې د مصر فرعونیانو (د مصر پاچایانو ) دبني اسرائیلو ډیرقدرکاوه او هغوی ته به یې عاجزي ځرګندوله ؛ خو وروسته چې کوم فرعون راغی هغه بني اسرائیل خپل غلامان کړل ، او دموسی علیه السلام تر راتلو پورې دوی دفرعونیانو تر ولکې لاندې ژوندکاوه.

موسی علیه السلام چې کله په مصر کې خلکو ته د توحید او دین بلنه پیل کړه؛ نو ورسره ورسره یې هرځای دا مشن هم چلاوه چې زه د مصر فرعونیانو د منګولو څخه د بني اسرائیلو دخلاصون لپاره راغلی یم، او بیا همدا سې وشول چې موسی علیه السلام باالاخره بني اسرائیل له مصر څخه وویستل؛



خو بیا دوی عمالقه وو سره له جهاد نه ډډه وکړه چې په نتیجه کې دوی د "سینا " په مېدان کې د یوې اوږدې مودې له پاره سرګردانه او لالهانده شول چې همهلته موسی علیه السلام هم له دې نړۍ څخه و کوچېد.

له دې وروسته دموسی علیه السلام نائب یوشع علیه السلام او د هغه نائب کالب علیه السلام دواړو په ګډه عمالقه وو سره دجهاد کولو هڅه وکړه او تریوحده په خپله مبارزه کې بریالي هم شول. دوی دفلسطین پریوه برخه واکمن شول او بېرته هلته مېشت شول. خو دفلسطین پر ځینو برخو لاهم عمالقه واکمن ول، او دیو شع علیه السلام او کالب علیه السلام ترمړینې وروسته بني اسرائیل ګډوډ شول او مشري یې له منځه ولاړه، دوی یو مشر نه درلود ، کوچیانه ژوند یې غوره کړ او هرچابه په خپل منځ کې یو تن مشر کړ او هغه ته به یې قاضي ویل چې د بېته دقاضیانو دور وایي ، مشربه دقاضي په توګه د دوی هر ډول ستونزې حل کولې، هغه مهال نه پاچایي وه او نه هم کوم حکومت و.

په دې وخت کې چې کله سموئیل علیه السلام پیغمبرشو ، نو بني اسرئیلو ورته وړاندیز وکړ چې موږ ته یو مشر راولېږه چې د هغه په مشرۍ د پاتي عمالقه وو سره جهاد وکړو او خپل هیواد په بشپړه توګه ازاد کړو ، د دوی دا وړاندیز الله تعالی په قرآن کریم کې دا سې بیان کړی دی: اِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ [1]

ژباړه: او کله چې دوی خپل نبي ته وویل چې موږ ته یو پاچا راولېږه چې د هغه په مشرۍ د الله په لار کې وجنګیږو.

سموئیل علیه السلام د دوی لپاره دعا وغوښته او بیا یې "طالوت" ورته دپاچا په توګه ورولېږه، طالوت دنبي اسرائیلو لومړی هغه پاچا دی چې

[1] سورة البقرة: ۲۴۶

پیغمبر نه و، له ده نه مخکې به پیغمبر د هغوی د قوم مشرهم و، کله چې طالوت د دوی پاچا شو، نو هغه له عمالقه وو سره جهاد وکړ او الله تعالی پر عمالقه وو فتح ورکړه.

هغه مهال داود علیه السلام ځوان و، او تر هغه وخته پیغمبري نه وه ورکړل شوې، دی هم د "طالوت" سره په جګړه کې ملګری و، او په جګړه کې د عمالقه وو ستر پالوان "جالوت" هم ده وواژه چې په دې سره د خلکو په زړونو کې د داود علیه السلام مینه نوره هم زیاته شوه، او بیا داود علیه السلام ته پیغمبري او پاچا یې هم ورکړل شوه، او بیا د نوموړي زوی سلیمان علیه السلام هم پاچا شو. سلیمان علیه السلام پخپل دور کې د بیت المقدس ودانې هم جوړه کړه، او د واکمني واګې یې تر ټوله نړۍ وغځېدلې او د نوموړي واکمني "یهودیه" نومېدله. د سلیمان علیه السلام تر مړینې وروسته د ده زوی "رُحْبِعام" د هغه ځای ناستی وټاکل شو، د سلیمان علیه السلام دا زوی ډېر نا اهله و او څه موده یې بوت لمانځنه هم کړې ده او په ډول ډول عیاشۍ کې بوخت شو، د نوموړي د حکومت نظام ګډوډ شو چې په پایله کې پخپله په "یهودیه" دولت کې دده پرضد خلک راپورته شول، او د ده ورور "یُورِبعام" په مشرۍ یې د "اسرائیل" په نوم یو بل نوی دولت جوړ کړ. اوس نو بني اسرائیل پر دوو واکمنیو ووېشل شول: یوه "یهودیه" چې پلازمینه یې "یروشلم" وه چې اوس ورته بیت القدس وایي او دویمه یې "اسرائیل" نومېدله او پلازمینه یې "سامره" وه چې اوس ورته "نابلُس" وایي.

د یهودیه او اسرائیل ترمنځ به تل شخړې او جګړې کېدلې تردې چې د دواړو ترمنځ ځینې عقېدوي اختلافات هم رامنځ ته شول، په دواړو کې څو ځله د بوت پرستۍ ناروغي راوټوکېدله او د دوی د اصلاح او لارښوونو له پاره به پیغمبران رالېږل کېدل، پیغمبران به کله "یهودیه" او کله "اسرائیل" ته راتلل، دا لړۍ همداسې روانه وه تردې چې د دوی ناروا کړه وړه او



بدخویونه له کچې ووتل؛ نو د الله تعالی له خوا پردوی یو عذاب رانازل شو، د عراق د "بابل" ښار پاچا "بُخت نصر" پردوی برید وکړ، د دوی سېمې یې ونېولې او دوی یې دړې وړې کړل، بیت المقدس یې لوټي لوټي کړ او د تورات ټولې نسخې یې وسوځولې، د دوی نران یې زیاتره ووژل او چې کوم پاتې شول هغه یې خپل غلامان کړل او ښځې یې مېنځې کړې، او ټول یې له ځان سره "بابل" ته بوتلل چې تر ډېره وخته یې له هېواده بهر په جلاوطنۍ کې ژوند تېر کړ. عُزیر علیه السلام هم په دې موده کې پېدا شوی، او دده په اړه په قرآن کې راځي چې: اَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ وَّ هِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا.(۱) ددې څخه زیاتره مفسرین بیت المقدس اخلي چې د بخت نصر په برېدونو کې وېجاړ شوی و، عُزیر علیه السلام له هغو سره روان و چې دا پېښه منځ ته راغلې وه، او دې مودې ته د "اسیر بابل" زمانه وایي.

بیا داسې وشول چې اسرائیلو په یو ډول توبه ووېستله او پیغمبرانو هم ورته دعا وکړه چې بیا د ایران پاچا "سائرس" په ظاهري مرسته بېرته په خپل ټاټوبي (بیت المقدس) کې اباد شول، اسرائیل یو ځل مخکې هم د "اسوریینو" له لاسه تباه شوي و، داځل پکې هیڅ هم نه و پاتې، یوازې د یهودیه دولت پاتې و؛ نو دوی له بېرته ستنېدو وروسته د "یهودیه" دولت جوړ کړ. له دې وروسته د دوی ترمنځ یو ځل بیا خوښي او سوکالي رامنځ ته شو؛ خو له څه مودې وروسته دوی بېرته همغه پخوانیو بدبختیو او ناوړه کړنو ته لاس ور واچاوه، بوت لمانځنه، عیاشي او نافرماني یې پیل کړه، چې په پایله کې الله تعالی یو ځل بیا بل پاچا ورباندې مسلط کړ، ددې پاچا نوم "انتیوکس فانیوس" (**Antiochus apiphanius**) و، قرآن کریم دې دواړو پاچایانو ته د سورة بني اسرائیل په پیل کې اشاره کړې ده، فرمایي: " فَإِذَا جَاء وَعْدُ أُولاهُمَا " په دې سره "بخت نصر" ته اشاره ده، دویمه اشاره "انتیوکس" ته ده

(۱) سورة البقرة: **۲۵۹**

چې که تاسو بیا هم داسې حرکت وکړئ ؛ نو موږ به په دویم ځل بیا پر تاسو عذاب درنازل کړو .

لنډه دا چې د "انتیوکس" له یرغل وروسته د اسرائیلو واکمني یو ځل بیا دړې وړې شوه ، دوی هرې خواته خواره واره شول ، پرته له کوم مشر او واکمني څخه دوی کوچیانه او غیر منظم ژوند غوره کړ. په دې موده کې دلږ وخت له پاره د "مکابینو" په نوم د دوی یوه لنډمهاله واکمني رامنځته شوې چې له دې پرته دوی بله کومه واکمني نه ده کړې. په دې وخت کې حضرت عیسی علیه السلام خپل قوم ته راولیږل شو ، هغه مهال هلته د روم پاچا واکمني وه او په ځانګړې توګه پر "یهودیه" سیمه چېرې چې عیسی علیه السلام رالیږل شوی و ، هلته "هیرودیس" پاچا واکمني کوله. عیسی علیه السلام خپل دین ته بلنه پیل کړه ؛ خو ډېرلږ بني اسرائیلو دهغه دې بلنې ته لبیک ووایه ، زیاترو ورسره دښمني پیل کړه او ډول ډول تکلیفونه به یې وررسول ، کومو خلکو چې دعیسی علیه السلام بلنه ومنله په هغو کې دوولس (۱۲) حواریین ډېرمشهوردي ، دوی دعیسی علیه السلام کلک پلویان ول او دمرګ تروروستۍ شېبې یې دعیسی علیه السلام مرسته کوله ، له دوی نه پرته ځیني نورو خلکو هم پر عیسی علیه السلام ایمان راوړی و او د هغه مرسته به یې کوله، په دې وخت کې الله تعالی عیسی علیه السلام اسمانونو ته وخېژاوه.

دبائبل روایت له مخې عیسی علیه السلام زندۍ کړل شو ، او بیا ترزندۍ کېدو درې ورځې وروسته بېرته ژوندی راغی او بیا اسمانونو ته پورته کړل شو ، دا دعیسایانو عقیده ده؛ خو رښتیا هغه دي چې قرآن کریم ویلي دي ، الله تعالی فرمایي:" وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ " دی یې نه دی وژلی او نه یې هم زندۍ کړی دی.

کله چې عیسی علیه السلام اسمان ته پورته کړل شو ؛ نو له ده نه وروسته د ده امتیانو په لومړي سر کې ډېرې زیاتې ستونزې او تکلیفونه وګالل او چاروا کو به د دوی په ربړونه او شکنجه کولو کې له یو ډول ظلم څخه هم دریغ



نه کاوه، دا د دوی لپاره ډېر د ستونزو ډک پیر و چې په عیسائي تاریخ کې دې مودې ته دازمائېنت دوره وایي چې تردرې سوه کاله وغځېدله ، په دې موده کې دعیسی علیه السلام امتیان رښتیاهم د ډېرو سختو ستونزو ، کړاوونو او پرېشانیو ښکار ول ، په دې موده کې ډېر واکمنان تېرشوي چې پردوی به یې بې دریغه ظلمونه کول. ښایي تاسو د "نیرو" پاچا هغه جمله اورېدلې وي چې ویلي یې و: "روم اور اخیستی و او "نیرو" باجه وهله" ده هم پرعیسایانو ډېر ظلمونه کړي دي ، پرهغوی یې یرغل وکړ او دړې وړې یې کړل.

درې پېړۍ وروسته د روم پاچا "قسطنطین اعظم" (لوی قسطنطین) عیسایي شو ، او نوموړي په خپله واکمنۍ کې عسائیت یو رسمي دین اعلان کړ او له همدې ځایه د عیسائي دولت پیل شوی دی ، تر یوې اوږدې مودې پرتوله نړۍ د رومیانو پاچاهي وه او پاچا به دکلیسا تابع و او هرډول پرېکړې به د مذهبي مشرانو له خوښې سره سم ترسره کېدلې ؛ خو په پای کې عیسایي سلطنت وویشل شو او کلیسا هم پردوه برخو وویشل شوه ، یوه ختیځه برخه او دویمه لوېدیځه برخه، دلوېدیځې برخې پلازمېنه د اټالیې دروم ښار و ، او د ختیځې برخې پلازمېنه "قسطنطنیه" وه چې اوس ورته استنبول وایي.

ددې وېش بېلابېل لاملونه ول ، ځیني سیاسي اختلافات و ، ځیني نژادي او ځیني د مذهبي عقائدو اختلاف هم و ؛ خولنډه دا چې د اختلافاتو په نتیجه کې دوه بېلابېلې کلیساوې رامنځ ته شوې چې دیوې مرکز "روم" و او د بلې مرکز "قسطنطنیه" وه چې د روم کلیسا ته به یې لوېدیځه کلیسا او دقسطنطنیې کلیسا ته به یې ختیځه کلیساویل ، د دواړو نومونه هم بېل وو ، د روم کلیسا ته به یې "رومن کاتولک چرچ" ویل، او دقسطنطنیې کلیسا ته به یې "هولي ارتوډوکس چرچ" ویل. ارتوډوکس د راسخ العقیده (پخه عقېده) په مانا دی، د دې کلیسا متبعینو به ځان ته راسخ العقیده ویل ، د

رومي كليسا مشرته به يې "پاپ" او دبلې كليسا مشرته به يې "پېټريارک" وايه چې په عربي ژبه كې ورته (بطريرک) وايي ...

كله چې سلطان محمد فاتح قسطنطنيه فتح كړه او هلته د مسلمانانو واكمني منځ ته راغله ترهغه وخته هم د "هولي ارتوډوكس" مشرانو له خپل ځان سره ((The Patriarch Of the great constantinople)) (دلويې قسطنطنيې پيټريارک) ليكل. لنډه دا چې د دواړو كليساوو تر منځ به ډېرې زياتې جګړې كېدلې چې د دوی په تاريخ كې دې پېر ته ( The Great Schism ) وايي ، ددې ترجمه په ستر نفاق سره كيږي ، خو دا په حقيقت كې د عيسايانو ترمنځ يو لوی درځ او وېش و.

له دې وروسته داسې دور راغی چې ددې دواړو واكمنيو ترمنځ جګړو دومره اور واخيست چې د دواړو واكمنيو په دننه كې هم يو شمېر واړه دولتونه او كليساوې جوړې شوې ، د دوو پرځای په خلور پاپان ول او د دوی ترمنځ به تل جګړې كېدلې ، او په همدې موده كې هغه پېښې رامنځ ته شوې چې مخكې يې موږ يادونه وكړه ، په دوی كې ډېر بد كارونه شروع شول و دكليسا له خوا به دبخښنليک په نوم تجارتونه كېدل ، او دا خبرې نوروته ښكاره كول هم جرم ګڼل كېده. دبائبل ترجمه كول جرم و او كومو خلكو چې به دظلم او تېرې پرضد غږ پورته كاوه هغوی به يې په عام محظر كې ودرول او په اور به يې و سوځول . چې د "جان هس" او "جېروم" په څېر خلک هم ددې عذاب ښكار شول.

په پای كې دخلكو ترمنځ دكليسا پرضد خوزښتونه راوټوكېدل ، په دې لړكې يو ازينی شخص چې په لومړي ځل د دوی پرضد په غږ پورته كولو بريالی شو هغه "مارټين لودر" (Martin luther) و او همدی د پروټسټنټ ډلې بنسټګردی.



د "پروټسټنټ" (Protestent) كلمه د پروټسټ "Protest" (لاريون كونكي) څخه اخېستل شوې ده، او دې ډلې ته له دې امله پروټسټنټ وايي چې دوی د رومن كاتوليک كليسا او پاپانو پرضد د لاريونونو غږ پورته كړ. مارټين لودر د رومن كاتوليک كليسا پاپانو ته دا ويل چې څوک ستاسو دفكر سره مخالفت ولري هغه تاسو بې دينه بولئ او سخته جزا وركوئ، سره له دې چې تاسو پخپله بې دينه ياست، تاسو داسې عقائد او رواجونه دود كړي چې په اصل دين كې هيڅ وجود نه لري؛ نو بې دينه تاسو ياست او دبائبل رښتوني منونكي موږ يو ، او تاسو چې كوم دودونه او عقائد له ځان نه جوړ كړي دي هغه موږ نه منو.

دپروټسټنټ ډله د رومن كاتوليک په پرتله څينې ځانګړنې لري. ترټولو لومړۍ ځانګړنه يې دا ده چې دا ډله د "عشاء رباني" څخه منكره ده او عشاء رباني د "رومن كاتوليک" مذهب دعبادت يوه ډېره مهمه برخه ده.



## عشاء رباني

د عشاء رباني (Ucharist) اصل داسې دی چې دبائبل په وينا عيسى عليه السلام تر اسمان ته ختلو وړاندې د وروستي ماښام ډوډۍ وخوړله، او دبائبل په وينا هغه بيا دا عدام تختې ته وخېژول شو ، رومن كاتوليک عيسايان وايي كوم خواړه چې په وروستي ماښام عيسى عليه السلام و خوړل په هغو كې يو څه ډوډۍ او دشوروا په څېر تركاري وه، له خوراک وروسته عيسى عليه السلام وويل: "همدا زما يادګار دی او تاسو يې تل كوئ" ددې جملې په تشريح كې د "رومن كاتوليک" كليسا وايي چې له دې پېښې وروسته پرموږ لازم دي چې دا كار موږ په دوديزه بڼه تر سره كړو ، داسې چې ډوډۍ به "پادري" ته وروړل كيږي او هغه به يې دخپل بدن له يوې برخې سره لګوي ؛ نو

هغه خواره به د دوی له عقېدې سره سم د عیسی علیه السلام غوښه وگرځي او شوروابه د هغه وینه شي. او دا کار موږ د دې لپاره کوو چې ثابته کړو موږ د عیسی علیه السلام پر کفارې ایمان لرو. مارټن ویل چې دا له ځانه جوړ کړل شوی دود دی، په اصل مذهب کې د دې هیڅ وجود نشته.

دوهم لوی توپیر یې دادی چې دا ډله د بائبل له ځینو کتابونو څخه منکره ده، بائبل چې عیسایان ورته سپېځلی کتاب وایي، د دوی د عقېدې سره سم د هغو ټولو کتابونو مجموعه ده چې د موسی علیه السلام څخه تر عیسی علیه السلام پورې او بیا تر هغه وروسته حوارینو او نورو باندې رانازل شوي دي.

په بائبل کې پنځه لومړني کتابونو: "زېږېدنه"، "خروج"، "استثنا"، "حساب" او "احبار" ته تورات ویل کیږي، له دې څخه وروسته د بني اسرائیلو پر انبیاوو چې کومې صحیفې رانازلې شوې دي چې په هغو کې "زبور" او د سلیمان علیه السلام "امثال" هم دي. او د عیسی علیه السلام څخه مخکې اته دېرش کتابونه، دې ټولو ته "قدیمه عهدنامه" وایي. بیا څلور انجیلونه (اناجیل اربعه) دي چې "جومتي"، "مرقس"، "لوقا" او "یوحنا" ته منسوب دي او ټول په عیسی علیه السلام پورې تړاو لري. بیا د حوارینو تاریخ دی چې د عیسی علیه السلام نه وروسته دوی څه کړي دي، او تر هغه وروسته د "پولس" خطوط دي چې د بېته "جدیده عهدنامه" وایي. او د دې ټولو مجموعه بائبل بلل کیږي. په دې کې دیارلس (۱۳) داسې کتابونه دي چې "رومن کاتولیک" یې مني؛ خو دویمه ډله "پروټسټنټ" یې نه مني. دوی دا هم نه مني چې دا الهامي کتابونه دي بلکې دوی یې مشتبه کتابونه گڼي چې په انگریزي ژبه کې ورته (**APOCRIPHA**) وایي، نو د پروټسټینټ دویمه ځانگړنه داده چې دوی (**Apocripha**) نه مني.



د دې پایله دا شوه چې د "رومن کاتولیک" او "پروټسټنټ" بائبلونه هم یو له بل سره توپیر لري، د رومن کاتولیک په بائبل کې دا (۱۳) کتابونه (**Apocripha**) هم شته او د پروټسینټ په بائبل کې بیا دا کتابونه شامل نه دي.

درېیم توپیر دادی چې دا خلک د پاپ مطلق العنان قائل نه دي، دوی وایي چې د بائبل د تشریح او تعبیر حق یوازې د پاپ نه دی، بلکې هرڅوک چې پوهه لري هغه کولای شي بائبل تعبیر کړي. او په دوی کې د خپلو مذهبي مشرانو هغه درجه بندي نشته کومه چې په رومن کاتولیک کې وه.

د پروټسټنټ مشران سره راټول شول او د خپل مشن لپاره یې تحریک وچلاوه، تردې چې د انگلستان پاچا "اتم هنري" د دې ډلې تر اغېز لاندې راغی. لکه هلته چې د روم پاچا "قسطنطین" د رومن کاتولیک تر اغیز لاندې راغلی و، دا رنگه دلته دا انگلستان پاچا "اتم هنري" د مارټن لوتر عقائد او نظریات خپل کړل چې په نتیجه کې یې دا یوه ځواکمنه او مستقله ډله شوه.

اوس هم په نړۍ کې رومن کاتولیک عیسایان ډېر دي؛ خو د هند پر لویه وچه پروټسټنټ عیسایان پراته دي. لنډه دا چې د پروټسټنټ ډلې د څه ویلو او رایه ورکولو دروازه خلاصه کړه، له دې نه مخکې چا دا حق نه درلود چې د کلیسا پر ضد څه ووایي. چې همدا د فکري ازادۍ لومړنی لامل گڼل کیږي. دوهم لامل یې دا و چې کله عیسایانو له مسلمانانو سره صلیبي جگړې پیل کړې، د دوی او سلطان صلاح الدین ایوبي رحمه الله او عماد الدین زنگي رحمه الله ترمنځ سختې جگړې وشوې، او په دې جگړو کې دوی سخته ماتې وخوړله او بیت المقدس د عیسایانو تر اتیا کلنې ولکې وروسته یوځل بیا ازاد شو او د مسلمانانو لاس ته ورغی. او په دې سره د مسلمانانو او عیسایانو ترمنځ د تگ راتگ دروازه خلاصه شوه.

له بلې خوا د اندلس د سقوط په نتيجه کې د مسلمانانو علوم دوی ته ورمنتقل شول، دځيني خلکو په زړونو کې د دې علومو د تحقيق او څيړنې جذبه راپيدا شوه چې د همدې علومو د تحقيق او څېړنې په نتيجه کې دوی خپلو علومو ته پرمختګ ورکړ او په کوم پېر کې چې دوی دا کارونه وکړل هغه ته (نشاة ثانيه ) (**Renaissance**) نوښت وايي.

له دې نه مخکې چې کليسا پر فکري ازادۍ کوم بنديزونه لګولي و هغه دور ته د تيارو دور(**Dark ages**) وايي چې په عربي ژبه کې ورته "العصور الظلماء" وايي. لکه زموږ په نيز چې د جاهليت زمانه ده دغه راز لويديځه نړۍ دې دور ته د جاهليت زمانه وايي او دا زمانه د دوی لپاره د تيارو زمانه ده.

لويديځوال دا پير د ټول انسانيت تاريخ لپاره د تيارو زمانه ګڼي ، سره له دې چې همدا د مسلمانانو د عروج او پرمختګ زمانه وه چې د مسلمانانو علومو او فنونو پکښې ډېر زيات پرمختګ وکړ. خو دا چې دا زمانه د دوی لپاره د جاهليت زمانه وه چې په دې پېر کې دوی د پوهې هيڅ شعور نه درلود ؛ نو له همدې امله يې دوی په تيارو سره تعبير کوي.

لنډه دا چې د نوښت پلويانو په سائنسي علومو کې پرمختګ وکړ او د عقل پالنې غږ يې پورته کړ، دوی ويل چې موږ هر کار د خپل عقل پر بنياد پرمخ بيايو چې بالاخره د (**Rationalism**) عقل پالنې په نتيجه کې دا سې وخت هم راغی چې هر څه به يې د عقل پر بنسټ پېژندل ، تردې چې دين ته يې هم ژبه ور اوږده کړه او دا يې د عقل سره ټکر يا د عقل خلاف وباله.

د عقل پالنې دور په پايله کې دې تصور زور واخيست چې هر شخص په خپل فکر ، خپل سوچ او خپل عمل کې په بشپړه توګه ازاد دی ، هرچا ته دا حق حاصل دی چې څه ډول غواړي ، هماغسې سوچ دې کوي ، چې څه ډول عقيده



خوښوي خپله دې کړي، يا هيڅ عقيده نه لري. او چې کوم شی يې زړه غواړي مني دې او چې نه يې غواړي نه دې مني، انسان چې په خپل شخصي ژوند کې څه غواړي کولای يې شي، دې نظريې ته وسيع المشربي يا ازاد خيالي (**Liberalism**) وايي. مانا يې دا ده چې هر انسان په خپل سوچ کې هم ازاد دی او په خپلو کړنو کې هم ازاد دی، چې څه ډول سوچ يا کړنې يې زړه غواړي کولای يې شي.

کله چې هر انسان ته فکري ازادي ورکړل شوه؛ نو په پايله کې دا ازادي تردې کچې ورسېده چې بيا به دوی ويل چې هر شی موږ د خپل عقل سره پيمانه کوو او د خپل عقل سره سم سوچ پرې کوو ، بيا مو چې څه ډول خوښه وي هماغسې به کوو.

تردې چې دوخت په تېريدو دوی د الله تعالی ذات هم پرېښود او له هغه جل جلاله څخه يې انکار وکړ، او وايي چې خدای پاک هم هيڅ شی نه دی. (نعوذبالله). دا د عيسائيت او اروپا فکري تاريخ ته يوه لنډه کتنه وه.

### فيوډالي نظام (فيوډاليزم)

د سياسي نظامونو په لړکې د دويم سياسي نظام اشراف واکي بيان روان و ، د دې په ترڅ کې د عيسائيت د فکري تاريخ يادونه وشوه ، اوس بېرته د اشراف واکي نظام تفصيل ته ورګرځو چې ما يې د شپږ ډولونو يادونه کړې وه ، په هغو کې د درېوو (علمي اشراف واکي، نژادي اشراف واکي او دين واکي ) بيان وشو ، څلورم ډول فيوډالي يا مځکه وال نظام دی. دلته دا يادونه اړينه بولم چې سياستوال او ليکوالان فيوډالي نظام دا شراف واکي له ډولونو څخه نه شمېري ؛ خو زه يې د دوو لاملونو په موخه دلته يادونه اړينه

بولم: لومړی دا چې زه غواړم په خپله ددې نظام تعارف او څېړنه وکړم، او دویم دا چې د اشراف واکي پراخه مفهوم چې ماپې مخکې بیان وکړ چې دیوې ځانګړې طبقې چې په ښکاره واکمنه نه وي؛ خو د ډېر رسوخ له امله د پردې ترشا اصلي واک د دې وي ، د همدې تعریف له مخې دا نظام هم په اشراف واکي کې راتلای شي چې پېژندل یې ضروري دي. او زه هڅه کوم په دې لنډ کورس کې بېلا بېل تصورات راټول کړم ؛ نو ځکه دا هم اړینه بولم چې د دې نظام لنډ تعارف تاسو ته وړاندې کړم.

فیوډالي نظام ته په انګریزي ژبه کې (**Feudalism**) وایي ، ددې نظام پېژندنه له دې امله هم اړینه ده چې زموږ په هیواد کې خلک د عیسایي تیوکراسي په مفهوم بیانولو سره د اسلامي حکومت څخه د خلکو د بېلارې کولو هڅې کوي، دغه راز دلته د فیوډالي نظام اصطلاح هم ډېره کارول کیږي او وخت ناوخته خو کرهنه چې اسلام یې اجازه ورکړې، هم په دې نظام پورې وتړل شي.

په تېروخت کې چې کله د اشتراکیت او سوشلیزم بازار ډېر تود و ؛ نو هغه مهال دا تور لګېدلی و چې اسلامي علماء د فیوډالي نظام ملا تړ کوي او د دې نظام د تقویت د پاره کار کوي. نو دا هم باید په ګوته کړل شي چې په اروپا کې د فیواډالي نظام مطلب څه دی.

فیوډالي نظام په منځنیو پېړیو کې د اروپا یو سیاسي او اقتصادي نظام و ، په اروپا کې یو مهال هرې خوا ته سختې شخړې او جګړې خورې وې ، ځینې جګړې پخپله د اروپایي طاقتونو ترمنځ شوې دي، لکه د انګلستان او فرانس تر منځ به تل جګړې کېدلې. او له بلې خوا اسلام د یو ستر ځواک په بڼه پرمختګ وکړ ، او په اروپا کې د مسلمانانو سره ډېرې جګړې رامنځ ته شوې دي. د همدې اوږدو جګړو له امله دا هیوادونه د سختو مالي ستونزو سره لاس و ګریوان شول او دوی نه شو کولای د جګړو مصارف برداشت کړي. له بلې خوا چې د جګړې



وسائلو پرمختګ کاوه؛ نو همدو مره به یې لګښتونه هم زیاتېدل او پر یوه پوځي مشربه ډېر زیات لګښت کېده. تاسو به او رېدلي وي په صلیبي جګړو کې د هغو پوځي مشرانو نومونه ډېر یادېږي چې دوی به ورته "نائټس (**Knights**) ویل ، دا خلک په جګړو او پالواني کې ډېر مشهور ول ، په هغه وخت کې چې د جګړو کوم ښه وسائل وو هغه به دوی کارول او د دوی معاشونه او غوښتنې هم ډېرې زیاتې وې ،د دغو خلکو لګښتونه پوره کول هم اسانه کار نه و ؛ نو د همدې ستونزې سره د مقابلې لپاره د غه نظام منځ ته راغی چې فیوډالیزم یا فیوډالي نظام ورته وایي ، اوس چې دا نظام د یو ضرورت له مخې منځ ته راغلی؛ نو دې ته د جواز ورکولو له پاره یوه فلسفه هم منځ ته راوړل شوه.

فلسفه دا سې وه چې په حقیقت کې د حاکم او محکوم تړاو له ځمکې سره دی، څوک چې د ځمکې څښتن دی هغه حاکم او څوک چې له دې ځمکې څخه کار اخلي هغه محکوم دی؛ نو د دوی بنسټیزه فلسفه دا سې شوه چې د ځمکې اصلي څښتن الله تعالی دی او ټوله ځمکه د هغه په ولکه کې ده ، اوس چې هغه کوم پاچا ته ځمکه ورکوي ، هغه پاچا د الله تعالی له خوا محکوم دی ، او چې دی یې چاته ورسپاري هغه د ده محکوم دی بیا چې هغه ځمکه وال بزګر ته ځمکه ورکوي هغه د بزګر محکوم دی او بیا چې لوی بزګر واړه بزګر ته د کرهنې له پاره ځمکه ورکوي ، هغه د ده محکوم دی. لنډه دا چې حاکمیت او محکومیت دا ټول د ځمکې په ملکیت پورې تړاو لري؛ نو دوی به ویل چې الله تعالی پاچاته ځمکه ورکړه ، همدا پاچا د محکوم په حیث د الله تعالی په وړاندې ځواب ویونکی دی ؛ خو اوس پر ځمکه بشپړ واک د پاچا دی. نو پاچا چې چاته د ځمکې یوه برخه ورکړې په هغه برخه کې دی د پاچا محکوم شو او همدې ځمکه وال ته پردې ځمکه پوره واک حاصل دی. ددې پایله دا شوه چې له پاچا څخه بیا تر یو وړوکي بزګر پورې دا د ځمکه والو او بزګرو یوه نه ختمېدونکې لړۍ وه.

دبېلګي په ډول پاچا یو چاته لس زره ایکړه ځمکه ورکړه ، نو دا سړی د دې لس زره ایکړه ځمکې څښتن شو او دی پردی ځمکه د بشپړ تصرف حق لري، بیا ده دا لس زره ایکړه ځمکه پر ګڼ شمېر ورو برخو و وېشله، او بیا یې دا برخې پر نورو خلکو و وېشلې، اوس هغه ټول د ځمکې څښتنان او د دې سړي محکوم شول ، بیا دوی دا ځمکه نورو ورو ځمکه والو ته ورکړه ، هغوی بیا ټول د دوی محکوم شول بیا هغوی دا ځمکه بزګرو ته ورکړه ، بزګر بیا د دوی محکوم شول. په همدې توګه به دا لړۍ تر یو ادنی سړي ورسېده.

پاچا دا ځمکه چاته وړیا نده ورکړې بلکې ورسره یې ددې په بدله کې ځیني شرطونه ورباندې اېښي دي. دبېلګې په ډول کوم سړي ته چې پاچا لس زره ایکړه ځمکه ورکړې ده، له هغه سره دا لوزنامه شوې چې پاچا ته به ټاکلې مالیه ورکوي او چې کله دجګړې اړتیا پېښه شي؛ نو دخپل رعیت څخه به ټاکلی شمېر جنګیالي تیاروي. پر چا لس زره جنګیالي اېښودل شوي ، پر چادوه زره او پر چا پنځه زره ، له پاچا سره د دوی یوازې دومره اړیکه ده چې هغه دوی ته ځمکه ورکړې او دوی به ددې په مقابل کې ورته مالیه ورکوي، او که دجګړې پرمهال اړتیا پېښه شي ؛ نو جنګیالي به هم ورته تیاروي.

اوس نو ددې ځمکه وال تر ولکې لاندې چې څومره نور ځمکه وال دي هغوی دده محکوم دي، او دی پر هغو مطلق العنان واکمن دی ، ماناد اچې که ځمکه وال غواړي پرخپلو بزګرانو مالیه لګوي ، یاله دوی څخه کرایه اخلي ، یاپر دوی شرطونه لګوي ، نه یوازې شرطونه بلکې دوی کولای شي پرخپلو بزګرو داسې واکمني وکړي لکه یو پاچا یې چې پر خپل رعیت کوي ، بلکې تردې هم زیات، تردې چې په عملي توګه داسې وشول چې څومره واکمني بادارپر خپل غلام کوي همدومره واکمني به ځمکه والو پر خپلو بزګرو کوله، اوله دې سره سره به یې دا تړون هم ورسره کړی و چې موږ تاسو ته دکرهنې له پاره ځمکه درکوو ، تاسو له همدې ځمکې خپله روزي اخلئ اوله



دې سره سره به ستاسو امنیت هم ساتل کیږي ځکه چې دمال او ځان ساتنه به پر ځمکه وال وي او که به د پاچا له خوا کوم مراعت ترلاسه شو ، نو ځمکه وال به دخپل رعیت لپاره د پاچا دمراعت زمه وارهم و.

بیا چې کوم واړه ځمکه وال وو هغوی به تر خپلې ولکې لاندې نورو ورو ځمکه والو سره په همدې تګلاره چلند کاوه. هر مشر ځمکه وال ته به یې فیوډل لارډ (**Feude Lored**) ویل او کوم چې به له ده نه ټیټ وچې له ده سره به یې مخامخ اړیکي لرل هغه ته به یې (**Vocal**) ویل، چې موږ ورته وړوکی ځمکه وال ویلای شو. مثلا پاچا (**Feudal Lord**) دی ، که پاچا به چاته ځمکه ورکړه هغه به دده (**Vocal**) و ، بیا چې به (**Vocal**) د خپلې ځمکې یو څه برخه چاته ورکړه؛ نو دی به د هغه (**Feudal Lord**) شو او وړوکی ځمکه وال به د هغه (**Vocal**) شو. په همدې توګه به دا لړۍ تر وروستي سړي پورې روانه وه، اوپر کومه ځمکه چې به دفیوډل لارډ ولکه وه هغې ته به یې (**Feud**) ویله چې تاسو ورته پټی هم ویلای شئ. هر محکوم ځمکه وال یا بزګر به یو شمېر دندې درلودې ، لومړۍ دنده به یې داوه چې کله به کوم فیوډل لارډ په یوه جګړه کې برخه اخیسته ، نو دده محکوم به ورته هر ډول اړتیا وړشیان برابرول ، بیابه هر واړه ځمکه وال خپل مشرته خدمتونه وړاندې کول ، تردې چې پاچا ته به خبره ورسېدله او په همدې توګه به هغوی دجګړې اړتیاوې او مسائل حل کول. په دې خدمتونو کې به هم ترتیب ټاکل شوی و. مثلا په کال کې څلویښت ورځې به پلانی او پلانی دجګړې وسائل برابروي او نورې څلویښت ورځې به یې نور خلک کوي،دغه راز به دوی په خپل منځ کې وخت اوورځې هم سره ویشلي وې.

د وړو ځمکه والو به دویمه دنده داوه چې دوی به خپل فیوډل لارډ ته دځمکې مالیه یاکرایه هم ورکوله.

دریم دا چې خپله فیوډل لارډ به یوه برخه ځمکه ځان ته د کرهنې لپاره ځانګړې کړې وه چې پردې ځمکه به خلکو د مزدورانو په توګه کار کاوه ، ددې لپاره به هم په کال کې ټاکلې ورځې وې چې په دې ورځو کې به دا خلک پردې ځمکه کارکوي او په نورو ورځو کې به یې نور خلک کوي.

څلورم دا چې کله به د فیوډال لارډ بچی ځوان شو ، نو هغه به یې د "نائټ" په توګه وټاکه او د نائټ په دې ټاکنه کې به خلکو ځمکه وال ته ځیني ډالۍ هم وړاندې کولې، او پر "نائټ" ټاکلو چې به څو مره لګښت کېده دې خلکو به هم پکې برخه اخیستله.

پنځم دا چې کله به د فیوډل لارډ د لور واده و ؛ نو د واده په لګښت کې به هم دې خلکو څه ناڅه برخه اخیستله.

شپږم دا چې که فیوډل لارډ به په کومه جګړه کې ونیول شو او دښمن به بندي کړ ؛ نو د ده رعیت به دا دنده درلوده چې د هغه د خلاصولو له پاره به فدیه ورکوي ، او که به دښمن د ده د خلاصولو په بدله کې کسان غوښتل ، نو د فیوډل لارډ د رعیت کسانو به د ده د خلاصون لپاره ځانونه ور وړاندې کول او د خپل فیوډل لارډ په بدله کې به د وی بندیان شول.

اووم دا چې کله به فیوډل لارډ صیب سفر کاوه یا به په ښکار پسې ووت؛ نو د ده ماتحت خلکو او بزګرو به ورسره په ښکار کولو کې مرسته کوله ، نوموړي ته به یې مېلمستیا کوله ، خواړه به یې ورته تیارول او د ښکار کولو لپاره به یې ورته ښه زمینه برابروله او دا هر څه به په ترون کې لیکل شوي و ، او په ترون کې دا هم لیکل شوي و چې کوم بې وارثه بزګر مړ شي ، د هغه میراث به هم فیوډل لارډ وړي، او که د فیوډل لارډ ترولکې لاندې کوم بزګر به د ده د امر سرغړونه وکړه ؛ نو ځمکه به یې ضبط کړل شوه.



دغه ډول شرطونه وو چې د ځمکه والو له خوا به پر بزګرانو تحمیل کېدل ، پر ورو ځمکه والو او بزګرو د بشپړ تسلط په پایله کې به همدا ځمکه وال د خپلې سیمې حاکم شو او د وخت په تېرېدا به د هغه واکمنۍ د یو حکومت بڼه غوره کړه او په همدې توګه به د ه پر ټول هیواد اغیز پیدا کړ.

پاچا به په یو ځل ځمکه ورکړه او ځان به یې ورڅخه فارغ کړ او بیا به چې کله د جنګیالیو اړتیا پېښه شوه ؛ نو پاچا به له ځمکه وال نه پوځ وغوښت او د دښمن مقابله به یې کوله. د وخت په تېرېدو به ځمکه وال د ومره خپل سری شو چې څه ډول قانون به یې زړه وغوښت پر خپل رعیت به یې پلی کاوه او چې څه ډول شرطونه به یې غوښتل پردوی به یې تطبیقول (پورته چې کوم شرطونه بیان شول هغه ټول په کتابونو کې راغلي دي )

ځمکه وال به بشپړ اختیار درلود چې څه ډول شرطونه به یې زړه غوښتل پر خپل رعیت به یې پلي کول او له دې امله چې ده به له پاچا سره په جګړو کې پوځي مرسته کوله ؛ نو پاچا به ورته اړ و چې د ده هر ډول روا او ناروا غوښتنې ومني ؛ نو دی به عملاً پر سیاست هم واکمن و او پر پاچا به د ده اغیز د ومره و چې څه ډول قانون به یې زړه وغوښت پر هغه به یې منلی شو. ترېو څه وخته دا نظام د پاچا او ځمکه وال په روغه جوړه روان و ؛ خو بالاخره داسې وخت راغی چې د پاچا او ځمکه وال ګټې به له یو بل سره ټکر شوې؛ نو خپله د دوی ترمنځ هم ډېرې جګړې شوې دي، چې په تاریخ کې د دوی د جګړو له امله ډېرې اوږدې پېښې رامنځ ته شوي دي.

دا په اروپا کې د منځنیو پېړیو فیوډالي نظام و ! ددې نظام نېمګړتیاوې او زیانونه څرګند ول ، هغه دا چې له یوې خوا به ځمکه والو له خپل ماتحت خلکو سره د غلامانو چلند کاوه او پردوی به یې هر ډول فشار راوست او له بلې خوا د دوی او پاچا ترمنځ چې څه ډول اړیکې وې د هغو پایله دا شوه چې ځمکه

والو خپل سري پیل کړه او بالاخره دهیواد پرسیاست داسې واکمن شول چې ددوی دخوښې پرخلاف چا سر هم نشو پورته کولای.

همدا ځمکه وال یا فیوډالي نظام وچې په کلونو کلونو روان و او ټوله اروپا یې له ستر کړکیچ سره مخ کړې وه. اوس چې ددې نظام نوم واخیستل شي؛ نو همدا ډول تصورات ذهن ته راځي او دایو ناوړه نظام شمېرل کیږي. د دې اروپایي نظام څه ناڅه څرک زموږ په اسلامي نړۍ کې هم رامنځ ته شوی دی.

دعثمانیه خلافت په ځیني دورونو کې دغه راز دمغلو په شاهنشاهي کې هم په ځیني وختونو کې ځمکه وال نظامونه منځ ته راغلي دي. که څه هم دلته کټ مټ هماغه نظام منځ ته نه دی راغلی ؛ خو داسې شوي دي چې دوی به خلکو ته په دې شرط ځمکې ورکولې چې دا ړتیا پر وخت به پاچاته جنګیالي ورکوي. بنایي تاسو د مغلو د وخت پنځه زریزه ځمکوالي او لس زریزه ځمکوالي اوریدلي وي. د پنځه زریزې ځمکوالۍ مطلب دا و چې د جګړې پر وخت به د دې ځمکې لرونکی له پنځه زره جنګیالیو سره جګړې ته ځان رارسوي او دلس زریزه ځمکوالۍ مطلب دا و چې ځمکه لرونکی به دلس زره جنګیالیو سره دجګړې مېدان ته راځي. دمغلو په دورکې همدا لړۍ وه؛ خو په داسې سختي او بشپړ نظام سره نه و لکه په اروپاکې چې و. له دې امله چې انګریزان له دې نظام سره له پخوانه عادي ول؛ نوکله چې دوی پرهندستان واکمن شول هلته یې هم په ځینو سیمو کې داسي نظام راوست لکه اوس چې په بلوچستان کې سرداري نظام دی ، داسرداري نظام په حقیقت کې دانګریزانو له خوا جوړکړل شوی د ځمکه وال نظام یوه بېه ده ، دوی له خپل رعیت سره داسې چلند وکړ لکه په اروپاکې چې په ځمکه وال نظام کې له خپل رعیت سره کیده.

خو پورتني تفصیل ته په کتو سره تاسو مالومولی شئ چې دا ځمکه وال یا فیوډالي نظام دشریعت له "اقطاع " حکمونو سره هیڅ تړاو نه لري ، کله چې



وویل شي چې په اسلام کې د "اقطاع" یاني خلکو ته دکرهني له پاره ځمکې ورکولو اجازه شته ؛ نو د دې مانا دا نه ده چې دا هم ځمکه وال نظام ته ورته یو نظام دی، د دې مسلې له هغه نظام سر هېڅ ډول تړاو نشته، هغه بیخې بل ډول شی دی او دابل ډول. د اقطاع اجازه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم له وخت نه شوې ده ، هغه په خپله اقطاع کړې ده ، ګڼ شمېر صحابه وو رضي الله عنهم ته یې دکرهنې لپاره ځمکه ورکړې ده. وائل بن حجررضي الله عنه ته یې ځمکه ورکړې ده ، معاویه رضي الله عنه ته یې ځمکه ورکړې ده ، عمرفاروق رضي الله عنه ته یې ځمکه ورکړې ده اوبوبکر صدیق رضي الله عنه ته یې ځمکه ورکړې ده. او د غه راز له دوی پرته نورو ګڼو صحابه وو ته یې هم د کرهنې لپاره ځمکې ورکړې دي. لومړی خو ددې ځمکې ورکولو موخه دانه وه کومه چې په اروپایي فیوډالي نظام کې بیان شوه ، بلکې د دې موخه دا وه چې په ټولیزه توګه د دولت ګټې په پام کې ونېول شي، کومې ځمکې چې شاړې وي هغه دخلکو په مرسته ابادي کړل شي، همدا لامل و چې کله به چاته دکرهني له پاره ځمکه ورکول کېدله ؛نو دا شرط به پرې لګول کېده چې دا ځمکه به په درې کلونو کې دننه ابادوي اوکه چا اباده نه کړای شوه ؛ نو بېرته به ترې اخیستل کیږي. اوکله ناکله به یې همدا ځمکې له غریبانو سره دمرستې په توګه هم ورکولې. نو دځمکو ورکولو یوازینۍ موخه داوه چې خلک همدا ځمکې په خپلې خوارۍ ابادې کړي او ددوی همدا عمل دځمکو دابادۍ لامل وګرځي، که خپله یې ابادې کړي اوکه په مزدورانو یې ابادې کړي په دې سره دهیواد په وارداتو کې زیاتوالی راځي. بیاد ابادولو وروسته همدا ځمکې ددوی په ملکیت کې راتلې چې دهمدې پربنسټ به دوی له بزګرو سره دمزارعت معاملې هم کولای شوې؛ خوله بزګرو سره چې کوم شرطونه وو هغه دشریعت له مخې ټاکل شوي شرطونه وو . نو هر څوک کولی شي دهمدې شرطونو پربنسټ له بزګرو سره معامله وکړي ، له دې پرته هیڅ ډول فاسد شرطونه د منلو وړ نه دي ، ځکه په مزارعت کې شریعت خپله شرطونه ایښي

دی چې څه ډول ترون باید وشي او څه ډول ونه شي ، له هغه څخه د ټاکلي حاصل غوښتنه نشي کېدلای چې دومره منه غله باید تاته درکړي، بلکې له هغه سره به د وېش معامله کیږي چې یوه څلورمه به زه اخلم او نوري به ته اخلې او له دې څخه پرته پرده باندې نورفاسد شرطونه نشي لګول کېدلای.

په شریعت کې د مزارعت معامله د دوو برابرو ډلو معامله ده ، لکه د بائع او مشتري معامله او یا د اجیر او مستأجر معامله او د دوی حقوق په خپلمنځي ترون کې ټاکل کیږي. نو په دې کې دا تصور نشي کېدلی چې د دې ترون له امله هغه بادار او دی غلام دی او یا هغه حاکم او دی محکوم دی او چې څه ډول شرطونه یې زړه وغواړي پردوی یې لګوي، چې زما دزوی په واده کې به دومره ورکوې او زما لورته به دا ورکوې ، زه به ستا وارث یم او دومره ټاکلي پیسې به ماته راکوې او داسې نور... دغه ډول شرطونه پرهغوی نشي لګول کېدلی. نو د اسلام اقطاع مسئله د اروپا له ځمکه وال یا فیوډالي نظام سره هیڅ ډول تړاو نه لري.

اوس چې خلک یوازې دا خبره واوري چې د اقطاع ترجمه په ځمکې ورکولو سره کیږي؛ نو دا ګونګوسې خپروي چې دا خلک په دې سره موږ د فیوډالي نظام په لوربیایي، سره له دې چې د دې اقطاع د اروپایي فیوډالي نظام سره هیڅ ډول تړاو نشته.

دوهم دا چې پرځمکه کوم شیان لازم دي هغه د شریعت له خوا ټاکل شوي چې هغه یا عشر دی او یا خراج ، په دې کې ځمکه وال ، یا بزګر او یا بل څوک هیڅ ډول بدلون نشي راوستلای. نو که دا اسلام په اقطاع نظام عمل وشي هیڅکله به هغه ستونزې او نېمګړتیاوې رامنځته نشي چې د اروپا په ځمکه وال نظام کې ورسره خلک لاس و ګریوان و. دا خبره ځکه په پام کې نیول اړین دي چې خلک د دې کلمې په بیا بیا کارولو سره د اروپاد ځمکه وال نظام نېمګرتیاوي بیانوي او په دې سره یې ډېر خلک بېلاري کړي دي او لا یې بېلاري کوي.



## فسطائیت، یافاشیزم

د اشراف واکي پنځم ډول "فسطائیت "یا "فاشیت" یا "فاشیزم" دی ! دا یو سیاسي نظام دی چې د ایټالیې دیکتاتور مسولیني (**Mussolini**) یې بنسټ اېښی دی، او دا کلمه هغه ایجاد کړې ده. فاشیزم (**Fascism**) یوناني کلمه ده چې له "فاست" څخه اخېستل شوې ده او د اد عربې ژبې له "فأس" څخه ماخوذ ده چې تبرګي ته وایي، یا د اتکړیو داسې مجموعې ته وایي چې شاته یې تبرګی لګېدلی وي. د ایټالیې دیکتاتور (**Dictotar**) مسولیني د خپل حکومت ملي نښه تبرګی ټاکلی و ، لکه د روسانو نښه چې لوردی یا لکه د پاکستان ملي نښه چې سپوږمۍ ده، (او یا لکه زموږ د هیواد افغانستان ملي نښه چې محراب او د غنمو وږی دی) د مسولیني ملي نښه تبرګی و چې پر خپل بیرغ او هرشي به یې لګوله ؛ نو که تاسو د فاشیزم ټیک ترجمه وکړئ؛ نو مانا به یې داسې شي چې د شاهي تبر نظام.

د دې نظام شالید داسې و چې په لومړۍ نړیواله جګړه کې ایټالیاته ډېر زیان او ښتی و ، که څه هم هغه جګړه اتحادیانو ګټلې وه ، او جرمني ته یې ماتې ورکړې وه او ایټالیا هم په اتحادیانو کې وه ، خو ایټالویانو په جګړه کې ډېرتاوانونه ولېدل او په هغو کې دوېرې او پریشانۍ عجیب او غریب کیفیت و ، اقتصاد یې تباه شو ، اداري نظام یې له منځه ولاړ ، خلک په ډېر بدحال کې وو او ډېر پریشانه وو او پرخلکو باندې د حکومت هیڅ اغیزنه و ، داسې حالت راغی چې دا هیواد د تباهي لورته ورنږدې شوی و ، داسې څوک نه و چې حالات کابو کړي او هیواد بېرته پر پښو ودروي. په دې وخت کې مسولیني په (۱۸۱۹ )کې د ایټالیا په "میلان" ښار کې د خپل "فاشست" ګوند بنسټ کېښود او خلکو ډېر ژر د ده انقلابي نظریات و منل او په ډېر لږ وخت کې یې په ولس کې ډېر پلویان پیدا کړل. مسولیني په (۱۹۲۲ )د خپلو پلویانو یو لښکر تیار کړ چې تورې جامې یې اغوستې وې او د "روم" پر لور یې ورمرش

کړل ، له چاروا کو يې وغوښتل چې مسوليني لومړی وزير وټاکي که نه ؛ نو د زور له لارې به حکومت رانسکور کړي. باالاخره پاچا اړ شو او مسوليني ته يې د حکومت جوړولو بلنه ورکړه ، او هغه د اټاليا مطلق العنان ديکتاتور شو او پر نورو ټولو گوندو نو يې بنديزونه ولگول.

د مسوليني د فاشيزم اجنډا داوه چې فرد هيڅ شی نه دی ، هرڅه چې دي هغه يوازې قوم دی چې سټيټ (دولت) يې استازيتوب کوي ، لکه اقبال چې وايي:

فرد قائم ربط ملت سے ہے تنہا کچہ نہين

موج ہے دریا مین اور بیرون دریا کچہ نہین

ژباړه: فرد له ملت څخه جوړ دی تنها هيڅ نه دی

د درياب څپې درياب کې وي بهر هيڅ نه وي.

مسوليني په بنسټيزه توگه دا فلسفه وړاندې کړه چې فرد په خپله هيڅ نه دی، مهمه او بنسټيزه خبره داده چې بايد د ولس گټې په پام کې ونيول شي ، د همدې گټو په نظر کې نيولو سره داسې اقدام وشي چې ولس پرمختگ وکړي ، دژوند محور او اصلي موخه داده چې زموږ ولس داسې پرمختگ وکړي چې د نړۍ په نورو ولسونو کې تر ټولو غوره ځای ولري.

د دې موخې ترلاسه کولو د پاره که له نورو ولسونو سره د جگړې اړتيا پېښېږي ، نو جگړه دې وشي او نورهيوادونه دې هم ترخپلې ولکې لاندې راوستل شي، نو ځکه بايد داسې حکومت جوړ کړل شي چې دژوند پر ټولو څانگو واکمن وي. تعليم، تربيت او اخلاق بايد له دوی څخه زده کړل شي ، قانون هم د دوی وي او کارونه دې ټول حکومت ترسره کوي ، نو اړينه ده چې حکومت بشپړ ځواکمن او مضبوط وي او د افرادو درايې پابند نه وي ، بلکې د خپل سوچ او فکر سره سم چې د ملت او ولس د ترقي لپاره کومه تگلاره



برابره کړي هغه دې له کومې ستونزې پرته اختيار کړل شي ، نو د همدې له پاره دا هم ضروري ده چې ټول افراد دې په بشپړه توگه د حکومت تابع وي او هيڅ اختلاف دې ورسره نه کوي.

په دې کې هيڅ شک نشته چې مسوليني د خپل ولس په پرمختگ کې ډېر رول لوبولو ، د لومړۍ نړيوالي جنگ پروخت چې اټاليا د څومره زيانونو سره مخ شوې وه هغه يې ترډېره حده لرې کړل او په ولس کې يې د قوم پرستۍ يوه نوې جذبه راپيدا کړه .هغه به ويل چې موږ عدم تشدد نه منو ، عدم تشدد د ډارنو خلکو کار دی ، موږ به جگړه هم کوو او همدا جگړه زموږ ولس ته ديو نوي ژوند پيغام ورکوي ، د مسوليني دا وينا ډېره مشهوره ده چې ويل به يې: "د سړي د پاره جگړه داسې ده لکه د مېرمنې د پاره اولاد زيږول " مانا دا چې لکه ميرمن چې په تخليقی توگه دا اولاد زيږولو پرته نور کارونه نشي کولای او ولس ته ډېره گټه نه شي رسولای د غه راز نر چې تر څو جگړه ونه کړي تر هغو کومه تخليقي کارنامه نشي ترسره کولای ؛نو دی بايد جگړه وکړي ، او له جگړې پرته ولسي اعتماد منځ ته نه شي راتلای او نه هم ولس برلاسه کېدلای شي ،د دې ترڅنگ هغه جمهوريت هم نه مانه ، ځکه چې د جمهوريت مانا داده چې د اکثريت رايه ضروري او حتمي گڼل ، که څه هم دا ضروري نه ده چې د اکثريت پرېکړه دې سهي وي ، هغوی غلطې پرېکړې هم کولای شي او هغه د هيواد او ولس له پاره تاواني هم کېدلای شي؛ نو فاشيست مشران چې د فاشيزم سره سم کومې پرېکړې کوي ولس بايد يوازې هغه پرېکړې و مني.

د هغوی د ريم شعار دا و چې موږ د افرادو ازادي او حرمت هم نه منو ، فرد په خپل ذات کې هيڅ هم نه دی ، هغه د ولس ديو جز په حيث د قدر وړ دي. په خپل ذات کې هغه هيڅ هم نه دی ، له همدې امله بايد د ولس د گټو او پر مختگ له پاره داسې قانون يا احکام جاري کړل شي چې د فرد پر ازادۍ باندې پابندي

ولګوي او داکار خپله دحکمت غوښتنه ده او دخپل ولس دپرمختګ له پاره دا کار ضروري دی.

ددې پایله داشوه چې څوک به سیاسي ګوندنه شي جوړولای، پرحکومت نیوکه نه شي کولای، هغه به ویل چې څوک پرحکومت نیوکه کوي هغه دې دفاشست ګوند ته دننه راشي او بیادې نیوکه وکړې او دادې ووایي چې مخنیوی او اصلاح یې څه ډول کیږي، خوکه له ګوند نه بهر څوک په رسنیو کې بیان ورکړي، یاغونډې وکړي او دخلکو په وړاندې دحکومت پرپالیسیو نیوکه وکړي داهیڅ دمنلو وړنه ده.

په همدې توګه دوی د فردازادي له منځه یوړه او د ګوند دبرلاسه کولو فلسفه یې وړاندې کړه، نو دفاشیزم تربنسټ لاندې چې به کومه واکمني منځ ته راتله هغه به دژوند پر ټولو برخو راڅرخېده؛ نو ځکه یې هغه نظام ته (Totalitarian) (انحصارغوښتونکی) هم ویل، مانا داچې دژوند یوه شعبه هم د دوی له ولکې او احکامو څخه بهر نه وه. نو له یوې خوا دحکومت لامتناهي اختیارات اوله بلې خوا د فرد له ازادۍ څخه انکار، دا دواړه چې سره یوځای شي؛ نو هرو مرو تشدد او جبر منځ ته راځي او په فاشیزم کې همدا و.



## نازي واکمني

له مسولینې وروسته په جرمني کې "هټلر" هم همداسې فاشیزم غوره کړ، د نوموړي فلسفه کټ مټ هغه وه کومه چې دمسولیني وه، هغه هم همداویل چې حکومت یاني مشرتابه هرڅه دی فردهیڅ هم نه دی؛ خو ده له فاشیزم سره یو بل شی هم زیات کړ چې هغه ته تاسو نژادي قوم پرستي (Racialnationalism) ویلای شئ.

دهټلرفلسفه داوه چې پرنړۍ دواکمنۍ حق یوازې داریایي قومونو دی، یوازې هغوی باید پرنړۍ واکمن وي، نو ځکه هټلردسامي نسل ولسونو سخت مخالف و، له همدې امله هغه داقانون پاس کړ چې سامي نسلونه باید له نړۍ څخه ورک کړل شي، دهټلردژوند یوازینی ارمان داو چې ترڅومې دنړۍ له مخ څخه دسامي نسلونو واکمني له منځه نه وي وړې ترهغو به زه جګړه کوم.

هغه په داسې ډول منځ ته راغی چې په لومړۍ نړیواله جګړه کې اټالیا فاتحه وه؛ خوله دې سره سره یې ډیرتاوانونه هم ولیدل، دغه هیواد په هر ډګرکې له پښو ولوید او د اټالیا نور اتحادیان، روسیه، فرانسه او انګلستان دومره زیانمن نه شول.

جرمني خو جګړه بایللې وه؛ نو چې د ګټونکو داسې حال وي، نو تاسو خپله فکر وکړئ چې د بایلونکو به څه حال و، په همدې حالاتو کې په جرمني کې ګډوډې وه او خلکو په ډېربد حال کې ژوندکاوه او ټول ولس د داسې چا په لټه کې و چې دوی له دې بد حالت څخه وباسي. په دې وخت کې هټلردمشرۍ بېرغ پورته کړ او په خپل هیواد کې یې دفاشیزم راوستلو اعلان وکړ، دمسولیني ټول نظریات یې په خپل هیواد کې پلي کړل او له دې سره سره یې نژادي قوم پرستي هم ورسره زیاته کړه او نازي حکومت یې جوړکړ، هغه دسامي نسل خلکو دښمن و، له همدې امله ویل کیږي چې هټلر پریهودو ډېر ناوړه ظلمونه

کړي دي. او هغوی يې مجبور کړل چې له جرمني ووځي. په دې اړه ځينې خبرې رښتيا دي؛ خو زياتره خبرې يهودو له ځانه جوړې کړې او په دې اړه يې ډېر زيات داستانونه جوړ کړي دي، د جرمني څخه د يهودو وېستلو ته هولو کاسټ "Holocaust" (ستره تباهي) ويل کېږي. د هالوکوسټ پر موضوع بې شميره کتابونه ليکل شوي دي، که تاسو د لويديځو هيوادونو کوم لوی کتابتون ته ورشئ؛ نو يوه برخه به د هالوکوسټ کتابونه وي، په دې کتابونو کې هغوی د هغو ظلمونو داستانونه په داسې ډول ليکلي دي چې د لوستونکو ورسره ډېره خواخوږي پيدا کېږي. دا ټولې له ځانه جوړې شوې کيسې دي دا کار دوی د دې له پاره کړی دی چې خپل مظلوميت خلکو ته وښايي او د اسرائيل حکومت جوړولو ته لار هواره کړي، په همدې موخه يې په ميليونونه ډالر مصرفونه کړي دي فيلمونه يې جوړ کړي دي چې په ټوله نړۍ کې کتل کېږي.

عجيبه خو دا ده چې يو ځل زه سوډان ته ولاړم، هلته په يو هوټل کې ديره وم، يوه ورځ مې وليدل چې زما د کوټې پر دروازه يو اشتهار لګېدلی و، په هغه کې دا خبره ليکل شوې وه چې د شپې نهه (۹) بجې به د هالوکوسټ فيلم لومړۍ برخه کتل کېږي. سبا دوهمه برخه او بل سبا به درېمه برخه کتل کېږي. په يو داسې عربي اسلامي هيواد کې چې د اسرائيلو پرضد د ډېرو چغو څخه د خلکو ستونې څيرې شول، هلته هم د هالوکوسټ په نوم فيلم اشتهار لګول کېږي چې دا فلم به په درې برخو کې کتل کېږي! (انا لله و انا اليه راجعون)

لنډه دا چې هټلر به ځان اريايي باله او جرمني يې د اريايي هيواد په نوم ياداوه، او سامي نسلونه د نوح عليه السلام د زوی سام اولاد دي، زياتره عربان او د منځني ختيځ ولسونو، يهود او انګريزانو ته ساميان ويل کېږي. هټلر د دوی پرضد د کرکې يو ستر طوفان را و پاراوه. په دې کې شک نشته چې هټلر جرمني ډېر ځواکمن کړ، دا هيواد يې دومره پياوړی کړ چې شونې ده په تاريخ کې هيڅکله جرمني داسې پرمختګ نه وی کړی، له اقتصادي



پلوه، او په صنعتي او سائنسي ميدانونو کې يې دومره پرمختګ وکړ چې د لومړۍ نړيوالې جګړې زيانونه يې بيخي هېر شول او په ولس کې يې د نژاد پرستي جزبه دومره راوپاروله چې په نړۍ کې يې ساري ډېر کم لېدل کېږي.

د دوی پوره ځواک په دويمه نړيواله جګړه کې وښودل شو، په دې جګړه کې چې جرمنيانو د اتحاديانو پرضد کومه قرباني ورکړه ساری يې په ګرانه مونده کېږي، خو د ده په دماغو کې د دې خبرې ليونتوب ځای نيولی و چې زه څه ډول سامي نسل له نړۍ څخه ورک کړم او پر ټوله نړۍ خپله زورواکي پلي کړم.

دا يو حقيقت دی چې هغه د تورې او ريځې په څېر يو ستر طوفان و چې پر ټوله نړۍ يې تياره وکړه، د هغه د فتوحاتو سيلاب په ډېرې تېزۍ روان و، خو بالاخره په روسيه کې د تباهۍ ښکار شو او ختم شو.

نو همدا د هټلر فاشيزم و، فاشيزم د هغه يوه سياسي فلسفه وه، او کوم ګوند چې ده جوړ کړی و چې ديکتاتوري نظام يې جوړ کړی و، هغه په نازي ګوند يادېده، له همدې امله د هټلر فاشيزم ته نازي ايزم هم وايي، او د ده تحريک ته نازي تحريک هم وايي.

مسوليني او هټلر ټولې نړۍ ته ځان وښود؛ خو وروسته بيا دواړه تباه شول، نورو ولسونو چې د دوی فاشيزم وکوت؛ نو په يو شمېر هيوادونو کې دوی هم پلي کړ، دا نظام يو څه وخت په جاپان کې هم و، ديو څه وخت له پاره په برازيل، ارجنټائن او هسپانيا کې هم پلي شوی، دوی وليدل چې هټلر خپل ولس له کوم ځای نه کوم ځای ته ورساوه؛ نو د هغه لاره يې خپله کړه، هغوی هم د هټلر د نظام راوستو کوښښ وکړ؛ خو هغې کچې ته ونه رسېدل چې مسوليني او هټلر رسيدلي ول، خو بالاخره د فاشيزم فلسفې د نړۍ څخه خپل ټغر ټول کړ.

که څه هم اوس چې په کوم هيواد کې مطلق العنان حکومت رامنځته شي؛ نو ويل کېږي چې دا فاشست ديکتاتوري ده؛ خو اوس هيڅوک دا نه خوښوي چې دا نوم له ځان سره وليکي. دا د اشراف واکي (Aristocracy) پنځه ډولونه وو.

## پرولټاري، یا کارګر حکومت

شپږم ډول حکومت پرولتاري یا کارګر حکومت دی ، دا په حقیقت کې دکمونیست رژیم دویم نوم دی. او ددې نظام بنسټ د "کارل مارکس" پرنظریاتو ولاړدی ، د نوموړي له نظریاتو څخه یوه مهمه نظریه هغه ده چې دوی ورته "شخړه ییزه ماده پالنه "(Dialectical Materialsm) وایي ، ددې نظریې څښتنان دا وایي چې دنړۍ له پیل نه تراوسه پورې د دنیا انسانان په دوه ډلو وېشل شوي ، یوه ډله پاچا ، امیران ، شتمن خلک او چارواکي دي ، او دوهمه ډله خواري کښ عوام دي، که هغه مزدور اوکه کرونده ګر وي. لومړۍ ډلې ته دوی "بورژوا "(Cbalrgeois) وایي او دوهمې ته "پرولتاریه "(Proltariat) دکارګرانو طبقه وایي. دکارل مارکس تاریخي شخړییزه فلسفه وایي چې دنړۍ له پیل نه تراوسه پورې دځمکې پرمخ د دوو ډلو ترمنځ شخړي او جنګونه را روان دي ، دی وایي په ټول تاریخ کې چې څومره جګړې شوي دي او څومره شخړې منځته راغلي دي ، په حقیقت کې ددې ترشا د دوو ډلو "یورژوا "او "پرولتاریه" ترمنځ جګړې دي او تل دهمدې دوو ډلو ترمنځ جګړې شوي دي ، او "بورژوا " ډلې تل د "پرولتاریه " ډله ترفشار لاندې راویستې ده ، د دوی له منځه وړلو کوښښ یې کړی دی او د دوی روا حقونه یې هیڅکله هم نه دي ورکړي ، په تېربیا له صنعتي انقلاب منځ ته راتلو وروسته ، مانا دا چې کله د صنعت بازار ګرم شوی او ماشین جوړ شوی دی ، نو څومره وردات چې جوړ شوي دي دا ټول دمزدورانو دخواریو او کوښښ په نتیجه کې جوړ شوي دي ؛ خو دلاسته راغلي پانګې څخه ډېرلږ د دوی لاس ته ورغلي دی ، ددې خبرې دثابتولو له پاره د دوی یوه بله نظریه هم شته چې "قدرزائد "( Surplus value) ورته وایي ، ددې نظریې له مخې چې په کومه فابریکه کې څه شی جوړیږي په هغو کې دوه ډوله شیان سره ګډیږي او بیا توکي ورڅخه تیاریږي ، یو خام مواد او دوهم زیارو ېستل. پرخام مال زیار وېستل کیږي او له هغه نه یو



تیار مال جوړیږي. په مالوچ باندې خواري وشي؛ نو تارترې جوړشي او پرتار چې خوارې وشي؛ نو ټوکر ورڅخه جوړشي ، خام مواد دقدرت یوه ورکړه ده او د ایوازې کوښښ دی چې پرخامو موادو یې زیار ویوست او له هغه څخه یې دکار وړ یو غوره شی جوړکړ ، او دهمدې غوره بڼې ورکولو په پایله کې د ده ارزښت او بیه زیاتیږي.

دبېلګې په ډول کله چې پرمالوچو کاروشي اوله هغه څخه تارجوړکړل شي او بیا له تار څخه ټوکر جوړکړل شي ؛ نو دمالوچ په پرتله دټوکر بیه زیاته شوه ، ددې ټوکر په بیه زیاتولو کې اصلي دخل د کوښښ دی که پرهمدې مالوچ زیار او کوښښ نه وای شوی بیه به یې نه زیا تېدله ؛ نو کومه بیه چې زیاته شوه ددې اصلي لامل کوښښ او زیار دی ؛ نو دا زیاتي کوښښ یوازې دمزدورحق دی ؛ خو دا حق شتمن وړي چې دهمدې استحصال له امله مزدور وروسته پاتي کیږي او شتمن د ده دخواري په نتیجه کې خپله شتمني زیاتوي . کارل مارکس به ویل چې اوس هغه وخت راغلی دی چې مزدور نور لاس تر زنې نشي کښېنستلی بلکې دی به ددې تېرې پرضد دبغاوت غږ پورته کوي ، چې دهمدې په پایله کې د "پرولتاري "یا "کارګر" واکمني رامنځ ته شوه ، د دې نظام رامنځ ته کېدو په موخه کارل مارکس دا ناره پورته کړه چې: "دنړۍ دګوټ ګوټ مزدورانو ! سره راټول شئ " همدې منشورته د اشتراکیت بیانیه (Communist Manifesto) وایي. د "کارل" په ژوند کې دا هیله عملي نه شوه ، خو د نوموړي له مرګ وروسته "لینن" د "زار روس" واکمني رانسکوره کړه او په لومړي ځل یې په روسیه کې اشتراکي نظام قائم کړ او د "پرولتاري" حکومت نوم یې پرې کېښود .

د پرولتاري واکمنۍ فلسفه داوه چې د اقتصاد حاصلاتو عوامل ، لکه: ځمکې او کارخانې دچا ترشخصي ملکیت لاندې نشي راتلای. دا ټول شیان د دولت په ملکیت کې دي او د دولت چلولو چارو حقونه یوازې د زیارکښو

پرولتاري حکومت ته حاصل دي ، چې دهمدې حکومت نماینده به ټول املاک په خپله ولکه کې ساتي او ديو اقتصادي پلان بنسټ به يې ايږدي ، مانا داچي دا پرېکړه به افرادو ته نه سپارل کيږي چې له پلانۍ ځمکې څخه به څه ډول کاراخيستل کيږي او په پلانۍ کارخانه کې به کوم شی په څومره مقدارکې جوړيږي ، بلکې د پرولتاري حکومت ترمشرۍ لاندې به عامه اړتياوي په پام کې نيول کيږي او يو جامع پلان به جوړوي چې په هغه کې به داخبره په پام کې نيول کيږي چې څه شی بايد جوړشي ؟ څومره اندازه شی جوړشي ؟او چاته څومره اجرت ورکړل شي ؟کومې اسانتياوې رامنځ ته کړل شي؟ داټولې خبرې به پرولتاري حکومت پرمخ بيايي ، اوله دې امله چې اصلي واک يو ازې دپرولتاريو دی ؛ نو دپورلتاريو له يوه گوند پرته بل څوک حق نه لري چې سياسي گوند جوړکړي ځکه چې دپرولتاريو دحقوقو ساتلو له پاره اړينه ده چې په هيوادکې له دوی پرته بل سياسي گوند نه وي او پردوی به کومه نيوکه هم نه کيږي. اوکه له پرولتاريو پرته بل کوم سياسي گوند منځ ته راځي هغه به هم د "بورژوا " ډلې دگټوله پاره کارکوي. له دې امله چې پرولتاريه حکومت دټولې ډلې دگټوله پاره کارکوي ؛ نو کوم کارچې ورپه غاړه کيږي بې له څه ويلو به هماغه کارکوي او چې دهغې له پاره کومه معاوضه ورته وټاکل شي هغه به مني او دچاخوښي او ناخو ښي پورې به هيڅ تړاو نه لري.

څرگنده ده چې په کوم نظام کې انفرادي ازادي نه وي ، هغه له يوې ځواکمنې واکمنۍ او ظلم او جبر پرته نشې پلي کېدلای ؛ نو په فاشيزم کې چې ديو گوندي حکومت. (Totaliarianism ) کوم بنسټيز اصول و هماغه په عملي توگه پرولتاري حکومت هم خپل کړل او ويل يې چې اصلي موخه دمزدور حالت ښه کول دي. دشتمنو د اجنټانو په دې منځ کې هر ډول مداخله بنده ده ، په دې اړه هغوی ته دڅه ويلو ، بيان خپرولو او هيڅ ډول نيوکو اجازه



نشته ؛ نو داهم د ديکتاتوري يوه ترټولو بده بڼه وه چې "لينن " پلي کړې وه ، بياله هغه وروسته "استالن " نور پرمختگ هم ورکړ ، چې د وړو وړو شتمنو پرځای يو لوی شتمن د پرولتاري حکومت په بڼه منځ ته راغی چې د دولت ټول وسائل يې تر ولکې لاندې راوستل او داسې کرغېړن نظام يې جوړکړ چې په هغه کې يوازې خبره کول هم لوی جرم و.

علامه اقبال په هغه زمانه کې ويلي و:




*زمام کار گر مزدور کے ہاتھوں میں ہو پھر کیا*

*طریق کوہکن میں بھی وہی حیلے ہیں پرویزی*

په روسيه کې څلوراويا کاله همدا نظام روان و ؛ خو د وخت په تېرېدو د دې نظام اقتصادي ، ټولنيزي، اخلاقي اوسياسي نيمگړتياوي او زيانونه دومره زيات شول چې ولس نور و نشو زغملای او باالاخره يې ددې نظام پرضد غږ پورته کړ او هغه يې رنگ کړ.

## دريم څپرکی

## ديموکراسي

### نظري اړخ

که څه هم ديموکراسي (Democracy) يا ولسواکي دبېلابېلو سياسي نظامونو په ډله کې يو نظام دی ؛ نو بايد د دوهم څپرکي برخه وايي ؛ خو په اوس وخت کې ددې اهميت ته پام سره په بيل څپرکي کې راوړل شو. په نننۍ نړۍ کې يوازې ولسواکي تر ټولو غوره نظام بلل کيږي او پر جمهوريت يا ولسواکي ايمان راوړل دنني سياست کلمه طيبه گرځېدلې ده ، څوک چې د ولسواکي پرضد څه ووايي ؛ نو دسياست په اصطلاح هغه له کافره کم نه گڼل کيږي؛ نو ځکه يې تفصيلي پېژندنه ډېره اړينه ده.

(۱) ولسواکي څه شي ته وايي ؟

(۲) د ولسواکي بنسټيز نظريات څه دي ؟

(۳) په نړۍ کې دا نظام څه ډول وپېژندل شو ؟

(۴) دې نظام کومې اداري منځ ته راوستلې ؟

(۵) نن چې په نړۍ کې د دې نظام بېلابېلې بڼې دود دي هغه کومې کومې دي؟

د ولسواکي توری دانگريزي له (Democracy) څخه ترجمه شوی او په انگريزي کې هم دا توری ديوناني ژبې څخه اخيستل شوی دی ، په يوناني ژبه کې (Dema) ولس ته وايي او (Cracy) واکمني ته وايي او په عربي ژبه کې ددې ترجمه په (الدمقراطيه) سره کيږي او په اردو ژبه کې (Democracy) په جمهوريت سره يادېږي (او په پښتو کې بيا ورته ولسواکي وايي ). خو په عربي ژبه کې د "جمهوريت " کلمه څوک په دې مفهوم نه پېژني.



دجمهوريت بنيادي تصور دادی چې د واکمنۍ حق يوازې د ولس دی ؛نو دجمهوريت مانا دا شوه چې داسې حکومتي نظام چې ولس يا د ولس رايه په يو ډول نه يو ډول دپالسي جوړولو له پاره بنسټ وگرځول شي، او بيا پخپله دسياست پوهانو ترمنځ دجمهوريت په جامع او مانع تعريف کې دومره ژوراختلاف دی چې يو له بل سره هيڅ سرنه خوري؛ خو په ټوليز ډول دجمهوريت مانا همدا ده چې دهيواد پاليسي د ولس له رايي سره سم جوړول.

ددې نظام اجمالي مفهوم ته په کتنې سره دا يوازې ددې دور زېږنده نه دی، بلکې په يونان کې هم هغه مهال جمهوريت و ، او لکه مخکې مو چې وويل دسياست پر موضوع دافلاطون کتاب نوم هم "جمهوريت " دی ؛ خو هلته دجمهوريت تصور نسبتا ساده او محدود و ، ساده په دې مانا چې په يونان کې کوم دولتونه وو هغو ته به يې ښاري رياستونه ويل ، دا کوچني رياستونه ول ، په ورو ورو ښارونو کې به مستقل حکومت و ، په يو ښار کې به لومړی مستقل حکومت و ، په بل کې دويم او په بل کې به دريم حکومت و ، ديونان په ښارونو کې ترټولو لوی ښار "اتن" و چې اوس هم په همدې نامه يادېږي، او هغه مهال ددې ښار وگړي زيات نه زيات لس زره تنه وو او نور ښارونه ، لکه "سپارټا " (Sparta) او نور... هغه ټول واړه وو ، کوچنی حکومت ، کوچنی هيواد او کم وگړي ول. که فرض کړو لس زره کسان دي؛ نو د دې ټولو په يو وخت او پر يوه ميدان راټولېدا گران نه و .

هلته دجمهوريت تصور داسې و چې پاچا به په ځانگړو او لويو معاملو کې د ولس د رايي مالومولو په پار ټول خلک راوبلل، خلک به ټول په يوه ميدان کې راټول شول ، پاچابه دوی ته يوه خبره وړاندې کړه چې موږ داپرېکړه کوو يا دا پاليسي جوړوو ستاسو څه رايه ده؟ نو ځينې خلک به ودرېدل او تائيد به يې وکړ، او ځينو نورو به بيا د دوی پرخلاف رايه ورکړه ،څه ناڅه بحث او خبرې به هم وشوې ، بالاخره به يې په خلکو لاسونه پورته کړل او يوه رايه به

ومنل شوه. هلته جمهوریت همدومره ساده و، کوم ځانګړی دستوریا قانون نه و چې په پلانۍ معامله کې به رایه اخیستل کیږي، په پلانۍ کې نه اخیستل کیږي او په پلانۍ معامله کې ولسمشرحق لري چې پرته له رایې اخېستلو کار وکړي او په پلانۍ معامله کې حق نه لري. پاچا به دخپلې خوښې سره سم کتل چې کومه مسئله داسې ده چې دهغې په اړه له خلکو رایه واخیستل شي؛ نو خلک به یې راټول کړل او دهغوی رایه به یې مالومه کړه، بیا ورو ورو دامشورې یو څه منظمې شوې او په دې کې څه ناڅه قوانین هم جوړ کړل شول؛ خو هغه قوانین ډېر دااهمیت وړنه وو. نو زیاتره وخت به دجمهوریت نقشه همداسې ساده وه. خو داخبره بدیهي ده چې دټولو خلکو د رول او له هغوی نه دپالیسې جوړولو په اړه رایه اخیستل په هغه ځای کې شونې دي چې هیواد وړوکی او وګړې یې کم وي؛ خو چې کله یو هیواد سترشي او وګړي یې زیات شي، هلته ټول خلک پر یوه ځای راټولول او له هغوی رایه اخیستل ناشونی کاردی. همدالامل و چې په سترو هیوادونو لکه دروم پاچاېي او نورو کې چې واکمني یې هم پراخه وه او وګړي یې هم ډېر وو داکار ناشونی و. نو هغه مهال هلته دجمهوریت تصور تردې ځایه محدود و چې پاچا به دخپلو مشورو له پاره یوه شورا جوړه کړه او وخت ناوخته به یې له هغې مشورې اخیستلې.

پایله یې داشوه چې دوخت په تېریدو دافکر له منځه ولاړ چې په پالیسي جوړولو کې دې دعوامو رایه واخیستل شي چې په دې سره په یونان کې دجمهوریت فکر د سیاست له ډګره کډه وکړه او پرځای یې مطلق العنان او دېته ورته نورو نظامونو ځای و نېو. بیا همدا تصور داتلسمې پیړۍ په پیل کې په دوهم ځل را ژوندی کړل شو، دې جمهوریت یوه منظمه بڼه غوره کړه چې د(Liberal Democracy) په نوم یادیږي او په پښتو کې ورته ازاد خیاله ولسواکي وایي چې نن یې په نړۍ کې بازار ډېر تود دی.



دهمدې ولسواکي دپېژندلو له پاره پرڅلورو بېلابېلو اړخو نو خبرې کول اړیني دي او زه غواړم د دې په ترڅ کې د ولسواکي په اړه لنډ غورچاڼ درته وړاندې کړم.

(۱) د ولسواکۍ بستېیزه فلسفه یافکري بنسټ

(۲) په نړۍ کې د ولسواکي دودکېدلو لنډ تاریخ تراتلسمي پېړۍ پورې.

(۳) دهغو ادارو پېژندنه چې ولسواکي جوړې کړې دي.

(۴) او د ولسواکي بېلابېلو بڼو پېژندل چې په مختلفو هیوادونو کې غوره کړل شوي دي. زما راتلونکی بحث پرهمدې څلورو عنوانونو ولاړدی.

## ۱. د دیموکراسۍ فلسفه او فکري بنسټونه

وړاندې وویل شول چې په اروپاکې تر "نشأة ثانیه" (نوښت) وروسته دفکري ازادۍ یو دور پیل شو، له دې نه مخکې کلیسا ټول خلک په یو ترلي چاپیریال کې ساتلي وو، دکلیسا بیان شویو نظریاتو او افکارو سره د ویښته په اندازه اختلاف کونکی به هم بې دینه اعلانېدی او بیا به د سختې ربړونې او شکنجې ښکار شو، کله ناکله خو به ژوندی وسوځول شو؛ خو د اروپا د "نشاة ثانیه" وروسته چې کله له اندلس او نورو هیوادونو د مسلمانانو علومو دې وچې ته مخه وکړه؛ نو په خلکو کې پخپله د فکر او پوهي مینه راپېداشوه، که څه هم ترهغه وخته دکلیسا سیاسي واک ډېر پیاوړی و، کومو خلکو چې به دنویو لارو موندلو کوښښ کاوه هغوی به دکلیسا له خوا دسترو مصیبتونو سره مخ کېدل؛ خو هغه خوزښت چې د ازاد خیالۍ خوزښت په نوم یادیږي له ظلم او ستونزو ګاللو سره سره ورو ورو په خلکو کې د کلیسا پرضد دنفرت فضا را منځته کړه، او دوخت په تېریدو

د کلیسا واکمني هم محدوده شوه. چې په پای کې دژوند په بېلابېلو برخو کې ډول ډول مفکرین پیدا شول چې د کلیسا پرفطرت نه ولاړ نظام څخه یې بغاوت وکړ او په خلکو کې یې نوي افکار خپاره کړل.

دلته موږ له نورو موضوعاتو بحث نه کوو؛ خو په لویدیځه نړۍ کې چې کومو شخصیتونو د جمهوریت یا ولسواکۍ بنسټ ایښی دی چې د نوي ازاد خیاله ولسواکۍ (**Liberal Democracy**) مؤسسین ګڼل کیږي د هغو لنډه پېژندنه کوو. والتیر (**Voltire**)، مونتیسکو (**Montesquiue**) او روسو (**Rousseau**)، دا هغه درې فیلسوفان دي چې د خپل خپل نظرونو او فلسفو پر بنسټ یې خپل افکار په نړۍ کې خپاره کړل چې په پایله کې یې جمهوریت منځ ته راغی، دا درې واړه فیلسوفان د فرانس دي. په دوی کې تر ټولو لومړی شخص "والتیر" و چې د اوولسمې (۱۷) پېړۍ په پای کې زېږېدلی او په اتلسمه (۱۸) پېړۍ کې له دې نړۍ څخه کوچېدلی، نوموړي د سائنس، فلسفې او طبعیاتو په هره څانګه کې ډېر کتابونه لیکلي دي او د ده د لیکنو ټولګه په خواوشا ۹۰ ټوکه کې خپره شوې ده. د "والتیر" ځانګړتیا داده چې هغه د دین ربښې و وبښتلې او دا دعوه یې کړې وه چې ټول اسماني ادیان تحریف شوي دي، او په اصل کې د انسان باید یو دین وي چې هغه فطري دین (**Natural Religion**) دی. ځینې خلک دا هم وايي چې په لومړي ځل "والتیر" د خدای په وجود کې د شک او شبهو تخم وکرلو، خو دا خبره ربښتونې ده چې دی په دې عقیده و چې د انسان باید یوازې یو دین فطري دین وي او د همدې دین لاندې د انسان تر پیدا کېدو وروسته که د خدای پاک وجود څوک مني؛ نو ودې مني. او په عامو ادیانو کې چې کومې اخلاقي یا قانوني لارښوونې کیږي، هغه او مذهبي نظامونه د یو څه وخت د پاره دي دا تل پاتې نه دي.



د "والتیر" د نظریاتو دوهمه برخه چې تر ټولو زیاته اغیزمنه ثابته شوې ده، هغه داده چې دین د انسان یوه ذاتي معامله ده، او هیڅ چارواکی نشي کولای څوک د کوم مذهب د حق او باطل قائل کړي، دا د هر انسان ذاتي معامله ده، که هغه بوت پرستي کوي، که د کوم اسماني مذهب پیروي کوي او که عیسایي کیږي او یا یهودي کیږي. په دې کې نه د کلیسا لاس وهنې ته اړتیا شته او نه هم دولت له کوم مذهب سره تړاو لري.

دې نظریې ډېر پرمختګ وکړ او بالاخره یې داسې بڼه اختیار کړه چې نن په لویدیځه نړۍ کې زیاتره خلک داسې تصور کوي چې په دین کې د حق او باطل هیڅ سوال نه پیدا کیږي چې کوم مذهب حق دی او کوم باطل دی؟ بلکې مذهب د انسان د ذاتي تسکین یوه ذریعه ده. مانا دا چې مذهب داسې شی دی چې انسان د دې په مټ خپل نفس او روح ته ډاډ ورکوي. که چاته په لمانځه کولو کې ډاډ تر لاسه کیږي؛ نو د ده د پاره همدا حق دی. او که چاته د بوت مخ ته په لاس نیولو ډاډ تر لاسه کیږي، د هغه لپاره هغه حق دی، او که چاته په مراقبه کې ډاډ حاصلیږي؛ هغه دې مراقبې کوي. انسان چې په هر شي ډاډه کیږي هماغه د ده د پاره حق دی؛ نو ځکه په مذهب کې د حق او باطل هیڅ سوال نه پیدا کیږي.

نن په لویدیځه نړۍ کې همدا نظریه خپره ده؛ نو ځکه هغوی وايي چې مذهب د هر چا شخصي معامله ده او هر څوک کولای شي د خپل ذاتي تسکین او ډاډ لپاره چې هر دین غوره کوي غوره دې کړي، او ټول دې د یو بل د دین قدر کوي او پخپلو کې دې ښې اړیکې ساتي. په دې اړه بحث او مباحثه کول او یو بل قائل کول هم بې ګټې کار دی. د نورو خلکو د دین قدر هم په دې اساس کوي چې په خپله دین د قدر وړ شی نه دی بلکې د دې لپاره یې قدر کوي چې هغه یو انسان د خپل ذاتي تسکین لپاره یوه ذریعه ګرځولې ده؛ نو ځکه یې پر هر چا قدر لازم دی، لکه څوک چې د خپل ذاتي ډاډ د پاره یو کور

جوړ کړي؛ نو پر تا فرض دي چې د هغه د کور قدر وکړې د هغه له اجازې پرته يې کورته ور نشې؛ همدا سې چې څوک خپل ځان ته يو دين غوره کړي؛ نو دا د هغه ذاتي معامله ده ته حق نه لرې چې د هغه د مذهب ترديد وکړې.

کله چې دا خبر و منل شوه چې دين د هرچا يوه ذاتي معامله او د ذاتي تسکين يوه ذريعه ده؛ نو له دولت او حکومت سره يې هيڅ اړه نشته، پايله يې دا شوه چې د حکومت هيڅ دين نشته. د همدې فکر پر بنسټ د "سيکولر" (بې ديني) نظريه را وټوکېدله. د "سيکولريزم" نوم به تاسو اوريدلی وي، د دې لفظي مانا "دنياوي" ده، سيکولر هغه څه ته وايي چې د دنيايي مصلحتونو او ګټو د پاره جوړ کړل شوی وي، نو مانا دا چې "سيکولر" دا سې يو نظام دی چې يوازې د دنياوي ګټو د پاره جوړ کړل شوی دی او يوازې همدا ګټې په پام کې نيسي؛ نو پايله يې هرمرو بې ديني ده. د دولت په اړه د "سيکولريزم" موخه داده چې دولت بايد له دين سره هيڅ ډول تړاو نه وي او يوازې د دنياوي مصلحتونو په بنسټ پر مخ يو وړل شي ځکه چې دين د هر چا شخصي معامله ده.

دا ټوله فلسفه د "والټير" پر نظرياتو مبني ده او د دې ترشا هغه لوی داستان دی چې ما مخکې تاسو ته وړاندې کړ، چې کليسا د "تيوکراسي" تر نامه لاندې څه وکړل په حقيقت کې دا د هغو غبرګون و. کليسا د مذهب په نوم ډېر ظلمونه او تېري وکړل، نو ځکه د هغوی پرضد د دې مفکرينو غبرګون دا و چې ترڅو مذهب ته شا نه کړئ او له خانه يې لرې نه کړئ ترهغو تاسو پرمختګ نشئ کولای. په همدې توګه يې دين پرېښود او د سيکولر دولت نظريه يې وړاندې کړه.

دوهم شخصيت چې په جمهوريت منځ ته راتلو کې يې ډېر رول درلود، هغه مونټيسکو (**Montesquiue**) دی، د نوموړي يوازې يو کتاب مشهور دی چې نوم يې د قانون روح (**Spirit of law**) دی، او دا کتاب زموږ په کتابتون



کې شته، دا کتاب خو او شا څلور سوه مخه لري؛ خو مونټيسکو وايي چې دې کتاب زه دومره ستړی کړم چې اوس زه ټول ژوند ارام کول غواړم. د نوموړي دا کتاب پر قانون او د هغه پر فلسفه ليکل شوی دی؛ خو د جمهوريت په اړه د نوموړي يوه نظريه دا هم ده چې واک بايد وېشلی وي چې په انګريزي ژبه کې ورته "**Separation of power**" (د واک بېلتون) وايي. مونټيسکو وايي چې څومره مطلق العنان حکومتونه تېر شوي دي او د دوی د استبداد له امله خلکو ته کوم زيانونه اوښتي دي د دې ټولو بنسټيز لامل دا و چې د دولت ټول واک د يو تن يا يوې ادارې پورې تړلی و، چې په پايله کې يې پر خلکو تېری هم کېدی او په دولتي کارونو کې پاتې والی هم ځکه راتلو؛ نو ترڅو چې واک پر بېلا بېلو برخو ونه وېشل شي تر هغو بې پايلې لاس ته نشي راتلی.

په لومړي ځل "مونټيسکو" دا خبره وکړه چې د دولت اختيارات په حقيقت کې درې مختلف ډوله اختيارات دي: (۱) د قانون جوړونې اختيارات. (۲) د همدې قانون سره سم د هېواد اجرائيه چارو پرمخ بېولو اختيارات. (۳) که څوک د قانون څخه سرغړونه وکړي، يا په دې اړه کومه شخړه رامنځته شي چې دا کار د قانون په دائره کې دی او که څنګه؟، د دې شخړې د هوارولو اختيارات. د "مونټيسکو" د بېلتون نظريې موخه دا ده چې دا درې واړه اختيارات بايد په يو شخص او يا يوې ادارې پورې نه وي تړلي بلکې دا درې واړه ادارې بايد ازادې او خپلواکه وي او يوه اداره د بلې په چارو کې بايد لاسوهنه ونه کړي.

نو کومه اداره چې د قانون جوړونې واک لري د هغې نوم مقنّنه يا "ليجسليچر" (**Legislature**) دی، او په ولسواکي نظام کې دا اختيارات د پارلمان يا د ولسي جرګې په لاس کې دي، کومه اداره چې د قانون سره سم د هيواد چارو چلولو واک لري هغې ته اجرائيه قوه (**Executive**) وايي چې په

ریاستي نظام کې یې مشر ولسمشر دی او په پارلماني نظام کې لومړی وزیر. دریم واک د هغې ادارې دی چې د قانون تشریح او د شخړو هواری کوي هغې ته عدلیه یا قضایي ځواک وایي چې په انګریزي ژبه کې ورته "**Judiciary**" وایي. دا هغه اداره ده چې په هیواد کې د محکمو په بڼه رامنځته کیږي. مونټیسکو وایي چې په تېر پیر کې دا درې واړه اختیارات د یو شخص یا یوې ادارې پورې تړلي وو، هغه به قانون جوړاوه، هغه به اجرائات کول او همده به د شخړو هواری هم پخپله کاوه. پایله یې دا شوه چې که اجرائیه ځواک به څه ناغېړي کوله؛ نو د دوی پرضد شکایت به هم همدوی ته ور تللو. شاعر د داسې نظام په اړه وایي:

*وہی قاتل وہی شاہد وہی منصف ٹھرے*

*اقرباء میرے کریں خون کا دعوی کس پر؟*

که څه هم په شاهي نظام کې هم محکمې وې، خو لومړی دا چې وروستۍ پرېکړه به یوازې د پاچا پرېکړه وه او دوهم دا چې په محکمه کې قاضي به هم یوازې د پاچا له خوا ټاکل کېده، او د ده د ګوښه کولو واک هم یوازې د پاچا په لاس کې و؛ نو قاضي به تل د پاچا سترګو ته کتل، که قاضي به د پاچا د خوښې پر ضد پرېکړه وکړه؛ نو هغه به له واکه ګوښه کړل شو؛ ځکه د واک ټولې واګې پر یوه تن را څرخېدلې. په داسې واکمنۍ کې که کوم واکمن ظلم وکړي؛ نو چاته به یې دعوه وړل کیږي؟ همدې واکمن ته، ځکه چې دی قاضي هم و او پرېکړې هم دی پخپله کوي، که دی یو قانون جوړ کړي او هغه سهي نه وي؛ نو چاته به فریاد کیږي؟ بیا به هم پخپله ده ته شکایت وړل کېږي. نو ځکه دا مطلق العنان واکمني ده.

د واک بېلتون نظریه دا وایي چې دا درې واړه کارونه باید د حکومت له بېلا بېلو ارګانونو سره وي، او هغه هر یو دې په بشپړه توګه خپلواک وي، یو



دې هم د بل تر فشار لاندې نه وي. مقنّنه ځواک دې قانون جوړوي، او دا قوه چې کوم قانون جوړ کړي اجرائیه ځواک دې هغه په عملي توګه نافذوي، او قضائیه قوه باید خپلواکه وي، که څوک له مقنّنې او اجرائې څخه کوم شکایت ولري؛ نو قضا ته دې ورشي او هغه د همدې شکایتونو په اپوزیسیون کې ده، نو دولت په دې درې برخو وېشل ضروري دی او همدې ته د واک بېلتون نظریه وایي.

دا نظریه دومره پرمخ ولاړه چې په پای کې ټولو جمهوري دولتونو ومنله، اوس چې د هر دولت کوم قانون جوړېږي، هغه پر دې بنسټونو جوړېږي چې د مقنّنې به بېل واک وي او د اجرائې او قضا ځواک به بیل واک وي. کله خو داسې هم کیږي چې کله مقنّنه یوځل کوم قانون جوړ کړي او نافذ یې کړ؛ نو د دې نظریې سره سم اوس مقنّنه د قانون جوړولو وروسته د دې د تشریح واک نه لري. د قانون جوړولو پر وخت چې دا کوم توري و کاروي اوس هغه داسې شول لکه له لندۍ چې غشی ووځي. له دې وروسته به قضا د هغه تورو تشریح کوي چې د دې قانون څه مانا ده،. کوم شخص چې په خپل قلم قانون لیکلی و؛ نو د مقنّنې د منلو وروسته که هغه ووایي چې زما د دې ټکي څخه پلانی مطلب و دا د منلو وړ نه دی. اوس دا کار د قضا دی هغه به ګوري چې کوم لفظ کارول شوی دی د هغه لفظ څه مانا ده؟ پارلمان دومره کولای شي چې دا قانون منسوخ کړي، یا نوی قانون جوړ کړي یا په هغه کې ترمیم وکړي، خو ترڅو چې هغه قانون په هماغه بڼه نافذ کړل شوی نه وي تر هغه وخته د دې واک یوازې له قضا سره دی.

دلته د دې خبرې یادونه هم اړینه ده چې د واک دې بېلوالي ته د واک بېلتون نظریه وایي. یوه بله نظریه ده چې هغې ته د واک وېش وایي هغه بېله نظریه ده.

د واک وېش (**Division of power**) مانا دا ده چې په مرکز او ولایتونو کې واک څه ډول وېشل کیږي؟ څومره واک له مرکز سره دی؟ او څومره واک له ولایتونو سره دی؟ د مونټیسکو د بېلتون نظریه په هغه مخکینۍ مانا ده.

۳: دریم شخص چې د جمهوریت په منځ ته راتلو کې یې پوره ونډه لرله هغه روسو (**Rousseau**) دی، ما مخکې هم د نوموړي یادونه وکړه او دا هغه شخص دی چې د ټولنیز تړون نظریې تجدید یې وکړ. د ټولنیز تړون (عمراني معاهده) نظریه موږ مخکې بیان کړه ، په دې اړه چې د نوموړي کوم کتاب مشهور دی د هغه نوم هم "ټولنیز تړون" دی.

روسو په خپل کتاب کې د عمراني معاهدې نظریې تجدید وکړ، دا نظریه په ځانګړي ډول پخوانۍ ده؛ خو د دې د تشریح په وخت کې ما مخکې یا دونه وکړه چې نظریه پخوانۍ ده خو د دې پایلې په دوو مختلفو اړخونو راوځي. یو اړخ دا و چې د عمراني معاهدې په پایله کې د مطلق العنان حکومت غوښتنه شوې وه. روسو لومړنی شخصیت دی چې ده د راڅرګند پدو وروسته دا نظریه ورکړه چې د عمراني معاهدې پایله دا نه ده چې مطلق العنان واکمني دې رامنځته شي، بلکې د عمراني معاهدې پایله دا ده چې داسې حکومت دې رامنځته شي چې په هغه کې هر فرد ته ازادي وي او حکومت دې د افرادو نماینده حکومت وي. ځکه چې فرد د حکومت په حق کې د خپلو ذاتي حقوقو څخه لاس پر سر شو ، دا د دې د پاره چې دا حکومت دې زموږ د ګټو او زموږ د ازادۍ ساتنه وکړي؛ نو ځکه د عمراني معاهدې غوښتنه دا ده چې عوام دې د خپل ولس نماینده حکومتونه جوړ کړي او د فرد ګټې دې خوندي وساتي. نو د "روسو" په نظریه کې دوه شیان دي: یو د فرد پر ازادۍ زور راوړل، او دوهم د افرادو نماینده حکومت، مانا دا چې د افرادو باید دا حق وي چې دوی هر وخت وغواړي حکومت دې جوړ کړي او چې کله غواړې؛ نو ختموي دې.

درې بنسټیزې نظریې دي چې په پایله کې یې ازاد خیالي او سیکولر جمهوریت منځ ته راغی: دولت له مذهب نه بېلول، دواک بېلتون، او د فرد ازادي او په نتیجه کې نماینده حکومت منځ ته راتلل.



## د دیموکراسۍ راتللو تاریخي عوامل

بله موضوع دا ده چې په نړۍ کې د دیموکراسۍ په منځ ته راتلو کې کومو تاریخي عواملو لاس درلود؟ په دې لړ کې د دوو پېښو یادونه کیږي چې په نړۍ کې یې د دیموکراسي په راتلو کې بنسټیز رول ولوباوه. (۱) د امریکا ازادي (۲) د فرانس انقلاب. د امریکا ازادي او د فرانس انقلاب یو بل ته په نږدې وختونو کې منځ ته راغلي دي، د دواړو ترمنځ دوولس (۱۲) کاله توپیر و. ښه به دا وي چې دلته لومړی د امریکا ازادۍ ته کتنه وکړو.

## د امریکا ازادي

د امریکا لویه وچه "کولمبس" موندلې ده. تاسو ته مالومه ده چې اروپایانو غوښتل د خپلو تجارتي اړیکو پر مخ بېولو په موخه د جنوبي آسیا هیوادونو ، لکه هندوستان او نورو سره اړیکي و نیسي؛ خو دوی ته د سمندر له لارې تر هغه ځایه رسېدل مالوم نه و چې په کومه لار ولاړ شي؟ تر هغه وخته د "سویز نهر" کانال هم نه و جوړ شوی. پر وچه لاره تلل خو بیخي ګران و ؛ نو د همدې سمندري لارې موندلو په موخه دوی ډېر ګامونه پورته کړل او ډېرې هڅې یې وکړې چې په دې هڅو کې ډېر خلک ناکام شول؛ خو یوازې د دوو تنو هڅې څه ناڅه بریالۍ شوې. یو "واس کوډي ګاما" چې د جنوبي افریقا له لارې یې د هندوستان لارې موندلو کوښښ وکړ او د افریقا جنوب د "ساوت کیپ" له لارې هندوستان ته ووت. دوهم تن "کولمبس" و. کولمبس هم د دې له پاره تللی و چې د هندوستان لار ومومي؛ خو "واس کوډې ګاما" هلته ووت او کولمبس بیا د ده بېخي برعکس بل لورې ته ووت، او اوس نوي څېړنې ښیي چې د دې دواړو لارښوونکي عرب ماڼوګان ول. ابن مجاهد یو عرب ماڼو و چې د دوی لارښوونه یې کوله. د ده کتاب هم چاپ شوی دی. لنډه دا چې "واس کوډې ګاما" هندوستان ته ورسید او "کولمبیس" لوېدیځ لور

ته ولاړ تر دې چې امریکا ته ترسېدو وړاندې هغو ټاپوګانو ته ورسېد چې نن ورته "ویسټ انډیز" (لویدیځ هندیان) وایي. نوموړي هلته تر بښکته کېدو وروسته داسې انګېرله چې د هند وچې ته ورسېد؛ خو دا د "کریبین" ټاپو ګان وو، چې له همدې امله د هغو ټاپو ګانو نوم "ویسټ انډیز" کېښودل شو چې په عربي ژبه کې ورته "جزائر غرب الهند" هم وایي. کولمبس نور هم مخکې ولاړ تردې چې لویه وچه امریکا یې وموندله چې همدا د امریکا موندلو پېلامه ګڼل کېږي او د دې لویې وچې موندلو تاریخي ویاړ د "کولمبیس" په برخه شو.

د دې لویې وچې په موندلو سره انګریزانو او د اروپا خلکو فکر وکړ چې د ابادۍ او تجارت پرمخ بېولو یو لوی مېدان یې وموند، دوی غوښتل د خپل ژوندانه پر مخبېولو لپاره هلته ورکډه شي، په همدې موخه یې امریکا ته مخه کړه او د خپل هر ډول وسائلو لېږدول یې پیل کړل، که څه هم ډچ قامونو او فرانسویانو هم هلته د هستوګنې لپاره هڅې پېل کړې او پرتګیزیان هم هلته ولاړل او خپلې فامیلۍ یې جوړې کړې؛ خو په دې کار کې انګریزانو زیاته ونډه لرله چې په پایله کې برتانویانو هلته خپل حکومت جوړ کړ او همدا وچه یې خپله مستعمره وګرځوله. اوس هم که تاسو په نقشه کې وګورئ امریکا یوه لویه وچه ده او دوه پنځوس ایالتونه لري. د امریکا پر همدې لویو لویو ایالتونو باندې برتانیا واکمنه وه، او تر اوږدې مودې یې له لندنه پرې واکمني کوله.

برتانیا غوښتل په امریکا کې تجارت هم وکړي او د هغه ځای خلکو څخه یې مالیه هم ټولوله، او له بلې خوا د دیموکراسۍ افکارو هم هغې خواته مخه کړې وه، یو وخت داسې راغی چې برتانیا پر هغوی د مالیې زیاتولو غوښتنه وکړه، له دې سره د امریکا خلکو کلک مخالفت وښود، او د برتانیا پر ضد یې غږ پورته کړ چې موږ مالیه نه ورکوو، په پایله کې دوی سره راټول شول او



پرېکړه یې وکړه چې موږ له برتانیا ازادي غواړو او دلته خپل مستقل دولت جوړوو او موږ نور د برتانیا تر تسلط لاندې ژوند نه تېروو. د همدې لپاره هغوی له برتانیا سره جګړې وکړې او د دې جګړو په پایله کې "جارج واشنګټن" فاتح شو او امریکا یې یو مستقل دولت اعلان کړ. جارج واشنګټن د ازادۍ اعلان په ترخ کې دا هم وویل چې د امریکا ټول ایالتونه دې سره یوځای شي او یو نوی جمهوري نظام دې رامنځته کړي. دې ته د ازادۍ اعلان (**Declaration of independence**) وایي، په دې کې جارج د ټولو انسانانو جمهوري حقوقو اعلان وکړ. د دې اعلان پېل له دې جملو وشو چې انسان د مور له نسه ازاد پېدا شوی دی؛ نو هیڅ چاته د دې حق نشته چې انسان خپل غلام کړي (په حقیقت کې دا هغې جملې ته ډېره ورته ده چې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه عمرو بن العاص ته ویلې و: "متی استعبدتم الناس و قدولدتهم امهاتهم احرارا" (۱)

ژباړه: تاسو له کوم وخت نه خلک خپل غلامان کړي دي سره له دې چې د دوی مېندو دوی ازاد زېږولي دي!؟.

ویل کېږي چې دا لومړنۍ لبرل سیکولر دیموکراسي ده چې په نړۍ کې منځته راغله، خو له دې امله چې اروپا له امریکا ډېره لرې ده؛ نو هلته امریکایي جمهوریت کوم ځانګړی اغیز نه درلود، هلته چې پر خلکو اغیز وکړ هغه د فرانس انقلاب و. کله چې امریکا د ازادۍ اعلان وکړ، تر هغې ۱۲ کاله وروسته په فرانس کې انقلاب رامنځته شو، دا انقلاب څه ډول رامنځته شوی؟ د دې بشپړه کیسه ډېره اوږده ده؛ خو دلته به ورته یوه ځغلنده کتنه وکړو.

[1]): کنزالعمال ۱۲: ۶۲ حدیث شمېره:۳۶۰۱

## د فرانسې انقلاب

دا د اتلسمې پېړۍ پای و. تر ۱۷۸۹ پورې په فرانس او ټوله اروپا کې شاهي نظامونه و، په فرانس کې هغه مهال واکمن پاچا "لويي" و او هلته د لويي په نوم پخپل وار ډېرو پاچايانو واکمني کړې ده، تر دې دمه شپاړسم "لويي" واکمن و. لکه مخکې مو چې وويل دې پاچايانو خپلې شوراوې جوړې کړې وې؛ خو دا د خپلې خوښې شوراوې وې، که به د پاچا زړه و، شورا به يې راوغوښتله، او که نه؛ نو چا به څه نشو ويلی او په دې کې به هم د پاچا خوښه وه چې په کومو خبرو کې به يې له شورا مشوره اخېستله او په کومو کې به يې نه اخېستله. "لويي" هم دغسې شورا جوړه کړې وه چې د "Senate **General**" (عمومي شورا) په نوم يادېدله، دا شورا په درې ډوله طبقو باندې وېشل شوې وه: لومړۍ د کليسا غړي، دوهم ځمکه وال، او درېيم عام ولس. دوی پر درې برخو وېشل شوي وو، او د هرې طبقې به بېله بېله غونډه کېدله، او په درې وارو مجلسونو کې به مساوي افراد وو، يانې د کليسا، ځمکه والو او عوامو شمېر به برابر و. کله به چې په شورا کې کوم قرار داد وړاندې کېده؛ نو په دې کې به په عام ډول د کليسا غړي او ځمکه والو يو له بل سره جوړ جاړی کاوه، په نتيجه کې به د درېيمې طبقې يانې عوامو غړ بې اغېزه و، او عوام به هم په منظمه توګه شورا ته نه ټاکل کېدل بلکې په مختلفو ټولګيو کې به ځيني خلک وټاکل شول او بيا به يې په شورا کې ګډون کولو چې په همدې توګه د عوامو غړ بې ارزښته و.

له يوې خوا داسې حال و او له بلې خوا به د پاچا خوښه وه چې کله به يې زړه و؛ شورا به يې را وغوښته او کله به يې بيا نه را غوښتله؛ نو د کوم وخت چې موږ يادونه وکړه، يانې ۱۷۸۹ ز کې تر دې وخته د شورا جوړېدو ۱۱۲ کاله شوي و او په دومره موده کې د شورا يوه غونډه هم نه وه رابلل شوې. کله چې د جمهوريت فلسفي افکارو د خلکو په زړونو کې ځای و نېو؛ نو غوښتنه يې



وکړه چې ۱۱۲کاله کيږي "عمومي شورا (سينټ جنرل) نه ده راغوښتل شوې اوس دې دا شورا را وغوښتل شي.

او بله دا چې د هغه وخت پاچا "لويي" په عياشي او بې ځايه لګښتونو کې نوم درلود. هغه د خپلو لګښتونو د پاره نورې ماليې ته ضرورت درلود؛ نو کله چې خلکو غوښتنه وکړه چې د مشرانو جرګې غونډه راوغواړه؛ نو پاچا په دې هيله غونډه را وغوښته چې له همدې لارې پر خلکو نوره ماليه وضع کړي. د مخکنيو تجربو په رڼا کې د کليسا غړو او ځمکه والو ملاتړ ترلاسه کول او په هغوی خپل وړاندېز منل ګران نه و، په همدې هيله پاچا غونډه را وغوښته. خو کله چې غونډه را وغوښتل شوه؛ نو په عوامو کې خوزښتونه را وټوکېدل، عوامو ويل چې په جرګه کې زموږ ټول شمېر يوازې درېيمه برخه تشکيلوي او دا بې انصافي ده، بايد د عوامو شمېر د کليسا او ځمکه والو دواړو سره برابر کړل شي. د دې غوښتنې د پاره عوامو لاريونونه او نارې پورته کړې. په پای کې پاچا دا غوښتنه هم ومنله او ويل يې چې زه د عوامو شمېر زياتوم، له دې وروسته عوامو بله غوښتنه وکړه چې دا غونډې ولې بېلې بېلې کيږي، د کليسا بېله او د ځمکه والو بېله او د عوامو بېله غونډه وي، دا دې ټول پر يو ځای را ټول کړل شي؛ نو چې اکثريت کومه پرېکړه وکړه هغه دې عملي شي. د دې غوښتنې منلو ته پاچا تيار نه و ځکه چې هغه پوهيدی دا کار د عوامو په ګټه دی، هغه له دې کاره ډډه وکړه؛ نو ولس وويل چې موږ ځان ته ولسي جرګه جوړوو. د ولسي جرګې نوم تر ټولو مخکې همدلته منځ ته راغی، هغوی يو بېل تالار جوړ کړ او د ولسي جرګې نوم يې پرې کېښود او خپله لومړنۍ غونډه يې را وغوښته. د دې غونډې موخه دا وه چې اوس موږ له کليسا او ځمکه والو سره هيڅ کار نه لرو اوس به موږ خپله غونډه رابلو او په هغې کې چې څنګه زموږ خوښه وي هغسې پرېکړې به کوو.

پاچا پوه شو چې نور اوبه له ورخه اوړي نو په داسې وخت کې د پاچايانو د عادت سره سم يې له زوره کار واخيست ، په کومه ودانۍ کې چې غونډه کېدله د هغې پر خوا او شا يې پوځ ځای پر ځای کړ او خلک يې له هلته ورننوتو اېسار کړل. کله چې خلک له هغه ځايه منع کړل شول ؛ نو هغوی وويل چې موږ دلته غونډه نه کوو ، موږ غواړو بل ځای غونډه جوړه کړو ، د تالار سره نږدې د ټينس لوبې يو لوبغالی و چې همدا لوبه پکې کېدله، دوی هلته ولاړل او خپله غونډه يې را وبلله او په هغه لوبغالي کې يې ولسي جرگه جوړه کړه. په غونډه کې تر اوږده بحث وروسته ټولو په يوه خوله د مونټيسکو د بيلتون نظريې پر بنسټ د هيواد يو نوی دستور جوړ کړ، ياني مقنّنه، اجرائيه او قضا درې واړه قوې يې سره بېلې کړې او د درې واړو اختيارات يې پر بېلو بېلو څانگو ووېشل او فرد ته د ازادۍ ورکولو بنسټيزو حقوقو يوه ډانچه يې تياره کړه؛ خو شاهي نظام يې ختم نه کړ، په دې دستور کې يې ويلي و چې پا چا دې پر خپل حال وي؛ خو د پاچا واک دې يوازې تر اجرائيه قوې محدود وي، مقنّنه او قضا دې ازاده وي او د پاچا تر اغيز دې لاندې نه وي.

دا د فرانسې لومړنی دستور او د نړۍ لومړنی جمهوريت دی چې ولسي جرگې تصويب کړ، هغه مهال چې کله د جرگې غونډه روانه وه يو شمېر خلکو د پاچا پر ماڼۍ هجوم ور وړ او پاچا ته يې وويل چې ولسي جرگې ته ورشه، پاچا يې په زوره له ماڼۍ را ويوست او ولسي جرگې ته يې بوتلو ، او د پاچا په شتون کې دا ټول دستور و منل شو او د لاسليک لپاره يې پاچا ته وړاندې کړ، هغه فکر وکړ چې که نور نه وي د اجرائيه قوې چارې خو به مې په لاس کې وي که څه هم د مقنّنې او قضا څخه بې برخې شوم ، دا خبره يې د ځان د پاره غنيمت وگڼله او پر دستور يې لاسليک و کړ. په همدې توگه پاچا اړ کړل شو چې دستور و مني او لاسليک پرې وکړي.



څه موده وروسته پاچا ته اندېښنه ور ولوېده چې دا لومړنی قدم دی چې دوی زما نه د قضا او مقننې واک واخيست، اوس چې دا څپانده سېلاب په ډېرې تېزۍ سره روان دی دا که مخ پروړاندې ولاړ شي؛ نو دا خلک به زما نه د اجرائيه قوې واک هم واخلي او ما به د پاچايي له تخت نه هم بې برخې کړي. پاچا د پردې تر شا د جرمني له پاچا سره اړيکې ونيولې او غوښتل يې خپل ولس په بل دام کې راگېر کړي، له هغه سره يې تړون وکړ چې نوموړی به د اړتيا پروخت د جرمني پوځ راغواړي او خپل ولس به ځپي. په جرمني کې هم هغه مهال شاهي نظام و ، نو چې د يوه پاچا له لاسه تخت وځي بل به هم له دې چوکۍ بې برخې کيږي؛ نو جرمني پاچا هم فکر وکړ چې داسې نه دا بلا زموږ کور ته هم راننوځي ځکه سمدستي د فرانس د پاچا مرستې ته تيار شو او د دواړو ترمنځ تړون وشو چې يو له بل سره به مرسته کوي، د دوی دواړو ترمنځ يوڅو سازشونه وشول ځکه خو دا تړون افشا شو او د فرانس پاڅون کونکو ته دا خبره مالومه شوه چې پاچا يې د دوی د ځپلو په موخه د جرمني له پاچا سره جوړ جاړی کړی دی. پاڅون کونکو بيان خپور کړ چې پاچا زموږ پر خلاف د جرمني له پاچا سره زموږ د سر سودا کړې ده ، که څه هم پاچا تر نېول کېدو وروسته د دې څخه انکار وکړ؛ خو پاڅون کونکي پر دې ټينگ وو چې دا حقيقت دی؛ نو هغوی پاچا و نيو او زندان ته يې وا چاو.

د پاچا تر نېولو وروسته هغه دستور لغوه شو چې مخکې تصويب شوی و ، ځکه چې هغه مهال پاچايي پرځای وه او اوس پاچايي له منځه ولاړه، ولسي جرگې يوه بله غونډه را وبلله چې بل دستور جوړ کړي، په دې غونډه کې د اجرائيه قوې واک د پاچا پرځای يو بل کميسون ته وسپارل شو چې هغه ته يې د "**convention**" (مجلس) نوم ورکړ او دې ته دوهم جمهوريت وايي.

د دې کميسون حکومت پر پاچا "لويي" باندې د بغاوت مقدمه وچلوله او پر هغه دا جرم ثابت شو چې د جرمن پاچا سره يې د فرانس پر ولس باندې د

برید لپاره جوړ جاري کړی و، د دې په نتیجه کې یې پاچا ته د مرګ سزا واوروله او د ټول ولس په مخکې یې د هغه سر له تنه جلا کړ چې په همدې توګه په فرانس کې شاهنشاهیت ته د پای ټکې کېښودل شو.

اوس نو دا پاڅون کونکي حکومت شو ، دوی په ډېر جوش او جذبه کې ول؛ خو نه یې د حکومت کولو تجربه درلوده او نه هم د دوی ترمنځ کوم ترلې منظم نظام و، په دوی کې جذباتیان ډېر وو چې په نتیجه کې د دوی ترمنځ اختلافات را وټوکېدل او د یوې اوږدې مودې لپاره یې یوبل ته سرونه اړم کړل، دوی په خپلو کې سختې جګړې وکړې ، د ترهګرۍ بازار ډېر ګرم و او دا د بې قانونۍ یوه ترخه او اوږده دوره وه، تر دې چې ولس د خپل پخواني پاچا ارمان وکړ. په پای کې دوی اړ شول چې په اجرائیه امورو او ټیکاو راوستو کې د پوځ مرسته تر لاسه کړي. هغه مهال د پوځ مشر "ناپلیون بونا پارټ" و چې د فرانس یو وتلی فاتح دی. ناپلیون د چارو واګې په لاس کې واخیستې او په ټول هیواد کې یې ټیکاو راوست، ولس ولېدل چې د کمیسون حکومت ناکام شو پاچایي تر دې ښه وه؛ نو ځکه یې ناپلیون پاچا کړ، اوس نو په دوهم ځل بیا پاچایي راغله. خو ناپلیون غوښتل چې ولس یې خپله تاج پر سر ورکړېدي، دی پاچا کړي او ټول اختیارات ورکړي، له دې سره سره ناپلیون وویل چې په ماضي کې څه شوي دي دا د پاڅون کونکو د فکر نتیجه ده، له همدې امله زه دې جمهوري فکر ته پرمختګ ورکوم. ناپلیون یو مهم کار دا هم وکړ چې کورنۍ جګړه یې ختمه کړه، له بهرنیو سره یې جګړې وکړې، آسټریا چې د دوی لوی دښمن هیواد و هغه ته یې ماتې ورکړه او تر مصره یې ځان ورساوه، او له بلې خوا یې جمهوري فکر ته د پرمختګ ورکولو لپاره د خپلو ملګرو یو ګوند جوړ کړ.

ناپلیون ډېر هیوادونه تر خپلې ولکې لاندې را وستل؛ خو کله یې چې له برتانیې سره ښکر اړم کړل؛ نو د "واټرلو" په سیمه کې د داوړو خواوو ترمنځ



یوه ستره جګړه وشوه چې په پایله کې یې ناپلیون ته سخته ماتې ورکړه او له دې ماتې وروسته دی هم له دې نړۍ وکوچېده. د ناپلیون پلویان ټول د انقلابي فکر څښتنان ول؛ نو تر ناپلیون وروسته هغوی په دوهم ځل بیا د جمهوریت بنسټ کېښود. دېته دریم جمهوریت وایي، د دې پربنسټ په فرانس کې بشپړه دیموکراسي رامنځته شوه او بیا د فرانس تر اغیز لاندې په ټولو اروپایي هیوادونو کې انقلاب راغی. د فرانس دې انقلاب په اروپا کې درې بنسټیزو شیانو ته ډېره وده ورکړه: (۱) د افرادو ازادي. (۲) د اختیاراتو بېلتون (۳) د مذهب او سیاست بېلوالی. د دې په نتیجه کې همدا تصورات د اروپا په نورو هیوادونو کې هم دود شول او لیبرل سیکولر جمهوریت په ټوله نړۍ کې مشهور شو. دا د فرانس انقلاب او د امریکا ازادۍ لنډه پېژندنه وه چې په نړۍ کې د دودیزې دیموکراسۍ منځ ته راتلو بنسټیز لامل شو.

## د دیموکراسۍ له اغېزه جوړې شوي اداري

د دیموکراسي یا جمهوریت تر اغیز لاندې چې کومې اداري جوړې شوي دي په هغو کې څلور اداري د زیات اهمیت وړ دي.

(۱) سیاسي ګوندونه (۲) ټاکنې (۳) مقننه (۴) دستور

### ۱. سیاسي ګوندونه

د جمهوریت په بنسټیزو نظریاتو او افکارو کې دا خبره شته چې د هیواد ټول وګړي حق لري یو سیاسي ګوند او یا سیاسي ډله جوړه کړي او باید پر هیڅ ګوند او ټولنې کوم بندیز نه وي؛ نو په هر هېواد کې چې یو ګوند او یا ډله جوړېږي هغه درې ډوله وي:

### ۱. **د همګټو ډله** (Interest Group)

دا هغه ډله ده چې د ګډو ګټو د ترلاسه کولو په موخه منځته راغلې وي. لکه د یو ځانګړي فن خلک چې د خپلو حقوقو د ساتنې او ګډې همکارۍ په موخه یوه ډله جوړه کړي. د دې ډلې موخه واک یا حکومت ته رسېدل نه وي بلکې داسې ډله د غیر سیاسي موخو لپاره جوړېږي. د سیاست په اصطلاح کې داسې ډلې ته "د همګټو ډله" وایي.

### ۲. **د فشار ډله** (Pressure Group)

د دې ګوند یا ډلې موخه واک ترلاسه کول نه وي، د دوی موخه د هیواد نه بهر اوسېدل او پر حکومت فشار راوړل وي چې زموږ پلانۍ غوښتنه دې ومني ، یا زموږ پلانۍ پالیسي د خپلې پالیسۍ یوه برخه وګرځوي.

### ۳. **سیاسي ګوند** (Political Group/Party)

سیاسي ګوند د هغو افرادو د مجموعې یا ډلې نوم دی چې د کومې ځانګړې پالیسۍ د نافذولو په موخه واک ته رسېدل غواړي. په جمهوریت کې د سیاسي ګوند جوړولو کړنلاره داسې ده چې ځینې خلک د مخکې نه دا سوچ کوي چې د هیواد د پاره کوم ډول ټولنیزه او اقتصادي پالیسي ګټوره کېدلی شي. بیا د همدې پالیسي د عملي کولو په موخه خپل یو منشور جوړوي چې که موږ واک ته ورسېدو ؛ نو د دې منشور سره سم به د هیواد چارې پرمخ بیایو. منشور د هغه سند نوم دی چې یو سیاسي ګوند یې د خپلو موخو د بیانولو د پاره تیاروي چې د واک ته رسېدو وروسته به د هیواد چارې څه ډول پرمخ بیایي. بیا دوی نورو خلکو ته د یووالي په موخه خپل ګوند ته د ګډون بلنه ورکوي. بیا ټول سره یوشي او د واک ترلاسه کولو په موخه خپلې هلې ځلې پیل کړي. نو چې کله دا ګوند واک ته ورسیږي پر دوی فرض دي چې



په هیواد کې هغه منشور نافذ کړي چې ولس د هغه پر اساس رایې ورکړې وي او په نتیجه کې دوی واک ته رسېدلي وي.

په عامه توګه د دوو سیاسي ګوندونو ترمنځ توپیر د "منشور" پر بنسټ وي، د یوه ګوند یو ډول منشور وي او د بل ګوند بل ډول منشور وي. او که منشور یو وي بیا د سیاسي ګوند جوړولو جواز نشته. په جمهوریت کې د سیاسي ګوند جوړولو اصل تصور همدا دی.

په مختلفو هیوادونو کې د سیاسي ګوندونو رنګارنګ نظامونه دود دي. په ځینو هیوادونو کې یو سیاسي ګوند وي چې هغه ته "یو سیاسي ګوندیزه نظام" (One Party System) وایي. دا نظام زیاتره په کمونیستي هیوادونو کې دود دی، هلته دوهم ګوند نشي جوړېدلی. دوهم ګوند په قانوني توګه بند وي. په ځیني هیوادونو کې "دوه ګوندیزه نظام" دود دی، په داسې هیوادونو کې په قانوني توګه دا بندیز نه وي چې له دوو زیات ګوندونه دې نه جوړیږي، خو د بېلا بېلو ټاکنو په نتیجه کې واړه واړه ګوندونه یا بیخې ختم شي، یا داسې بې اغیزه شي چې عملا داسې ښیي چې په حقیقت کې دهیواد دوه ګوندونه د یادولو وړ دي، په دوی کې کله یو ګوند واک ته رسیږي او کله دوهم ګوند واک ته رسیږي. په امریکا او برتانیا کې همداسې دود دی.

په ځینو هیوادونو کې "ګڼ ګوندیزه نظام" دود وي. هلته لوی او واړه ګوندونه وي او هغوی د واک ترلاسه کولو هڅې کوي، خو په داسې هیواد کې له مخکې نه وړاندوینه کول ګرانه وي چې کوم ګوند به واک ته رسېږي.

که څه هم د جمهوري نظام د پاره د سیاسي ګوندونو شتون لازمي نه دی؛ خو عملا داسې کیږي چې چېرې جمهوري نظام جوړیږي هلته هرومرو سیاسي ګوندونه شته وي. ډېر سیاستوال په دې نظر دي چې د سیاسي ګوندونو شتون د جمهوریت د پاره ګټور نه دی، بلکې بدې پایلې لري ؛ خو نن په نړۍ کې داسې جمهوري هیواد نشته چې په هغه کې سیاسي ګوند نه وي.

## (۲) ټاکنې

په جمهوري نظام کې دا ضروري ده چې حکومت د ټاکنو له لارې واک ته ورسېږي. د همدې موخې د پاره په پیل کې د پارلمان د غړیتوب د پاره ټاکنې کیږي. بیا په پارلماني نظام حکومت کې چې کوم گوند د پارلمان د اکثریت غړو رایه ترلاسه کړي هغه حکومت جوړوي. په جمهوریت کې په عامه توگه د ټاکنو دوه ډولونه دي:

۱. **بې واسطه ټاکنې** ۲. **باواسطه ټاکنې**

د بې واسطه ټاکنو مانا دا ده چې هر بالغ وگړي ته دې د رایې ورکولو حق ورکړل شي، که هغه سړی وي او که مېرمن، بوډا وي او که ځوان، پوه وي او که ناپوه او کوم کاندید چې د خپلې شمېرې زیاته رایه ترلاسه کړي هغه ټاکل کیږي.

د باواسطه ټاکنو مطلب دا دی چې ولس دې د خپلو رایو په مټ د ټاکونکي د پاره ټاکنې وکړي. مانا دا چې ولس دې له مخکې نه داسې څوک و ټاکي چې د پارلمان د غړیتوب صلاحیت ولري، بیا هغه ټاکل شوي افراد د مقنّنې د پاره د غړو ټاکنې کوي، لکه په پاکستان کې چې د ایوب خان په وخت کې د جمهوریت سهي نظام و، چې په هغه کې به ولس لومړی د سهي جمهوریت د پاره غړي ټاکل، بیا به هغو غړو د پارلمان د غړو ټاکنې کولې. خو نن په نړۍ کې یوازې د بې واسطه ټاکنو تگلاره دود ده.

## د رایه ورکوونکي د اهلیت صفتونه

بیا په بې واسطه ټاکنو کې هم د رایه ورکونکو د اهلیت صفتونه چې په مټ یې د رایه ورکونې حق ترلاسه کیږي مختلف دي، په دې اړه هم په بېلابېلو هېوادونو کې مختلف نظامونه دود دي. د بېلگې په ډول په "سویزرلینډ" کې ځلور پنځه کاله مخکې هم مېرمنو د رایه ورکولو حق نه درلود. یوازې سړو



حق درلود چې رایه ورکړي. کله چې پر دې خبره بحث وشو چې مېرمنو ته هم باید د رایه ورکولو حق ورکړل شي؛ نو د دې خبرې مخالفت پخپله مېرمنو وکړ، هغوی استدلال کاوه چې موږ دا حق نه غواړو ځکه چې که داسې وشي؛ نو په کورونو کې به شخړې او تاوتریخوالی رامنځته شي او سیاسي سیالۍ به بیا کوروته دننه هم راننوځي، ځکه چې خاوند به غواړي یوه کاندید ته رایه ورکړي او مېرمن به یې بل ته ورکوي؛ نو په نتیجه کې به د دوی ترمنځ تاوتریخوالی را وټوکیږي. خو وروسته بیا مېرمنو ته هم د رایه ورکولو حق ورکړل شو، او اوس په ټوله نړۍ کې د همدې پر بنسټ د ټاکنو نظام دود دی. نو څوک چې بالغ وي هغه د رایه ورکولو حق لري.

## د ټاکنو عامه تگلاره

بیا چې د ټاکنو په عامه گړنلاره کې څوک زیاتې رایې وگټي هغه گټونکی شمېرل کیږي؛ خو که کاندیدان زیات وي؛ نو کله ناکله داسې وشي چې هغه څوک هم گټونکی شمېرل کیږي چې پخپله شمېره کې یې د رایه ورکونکو پنځلس سلنه رایي گټلي وي، او پاتې پنځه اتیا سلنه خلکو رایې د دې امله ناچله اعلانیږي چې هغوی بېلابېلو کاندیدانو ته ورکړي دي چې په هغوی کې یوه هم پنځلس سلنه رایې ترلاسه نه کړای شوې. یوازې یوه کاندید تر ټولو زیاتي رایې یاني پنځلس سلنه رایې کټلي. په همدې توگه یوازې یو تن د ټولې سېمې د نماینده په توگه رامخ ته شو، سره له دې چې پنځه اتیا سلنه خلک دی خپل نماینده نه بولي. خو نو موږ له دې امله گټونکی شمېرل کیږي چې ده دنورو کاندیدانو په مقابل کې ډېرې رایې گټلي دي. نو د ټاکنو د عامې تگلارې پر وخت ټاکنې د ولس د ریښتوني استازیتوب انځور نشي وړاندې کولی. او زیاتره وخت لږه کي گوندونه پر زیاتو واکمني کوي.

## دوه ځلېزي ټاکنې

د دې نېمګړتیا د لـه منځـه وړلـو پـه موخـه مختلفـو هېوادونـو بـېلا بېلـي تګلاري کـارولي دي، پـه فـرانس کـې د دوه ځلیـزه ټـاکنو (Second Ballot) نظـام دود دی. د دې مانـا داده چـې کـه چـا پـه خپلـه انتخابـاتي شـمېره کـې يوپنځوس سلنه رايې ترلاسه کړې؛ نو هغـه ګټـونکی شـمېرل کيـږي. ځکـه چې هغه د دې شمېرې د اکثریت باور ترلاسه کړ. خو که فرض کړه يوپنځـوس سلنه رايه هیڅا ترلاسه نه کړای شوه؛ نو بيا به له يوې اونۍ وروسته پـه دې شـمېره کې په دوهم ځل ټاکنې کيږي، او په دې دوهم ځل ټاکنو کې يـوازې هغـه څـوک کانديد کېدلای شي چې هغه مخکې له دوولس نـيم سـلنه زيـاتې رايـې ګټلـي وي. چا چې تر دې کمې رايې ګټلي وي هغه په دوهم ځل ټاکنو کې ونډه نشـي اخېستلای. بيا چې پـه دې دوهم ځل ټاکنو کې چا زيـاتې رايـې و ګټلـې هغـه بريالی شمېرل کيږي.

## د تناسب نمايندګي نظام

د ټـاکنو دويمـه تګــلاره "متناســبه نماينــدګي" (Proportionate Representation) ده، او دا هم مختلفې بڼې لري.

يوه بڼه يې داده چې کله د کانديدانو نوملړ خپور کړل شي، په هغه کې د کوم کانديد نوم نه وي، يوازې د ګوندونو نومونه او د هغـو نښـې پکـې وي. خلکـو ته ويل کيږي چې تاسو کوم ګونـد خوښـوئ هغـه تـه مخـامخ نښـه وکـړئ، بيـا د ټاکنو بشپړېدو وروسته دا کتل کيږي چې په ټول هيـواد کـې څـومره ګوندونو څومره رايې ګټلي دي؟ او بيا چې کوم ګوند څومره فیصـده رايـې وګټـې، هغـه تـه پـه ولسـي جرګـه کـې همـدومره چـوکۍ ورکـول کيـږي. د بېلګـې پـه ډول يـوه



ګوند د ېرش سلنه رايي و ګټلې؛ نو هغه تـه پـه ولسـي جرګـه کـې د ېرش چوکۍ ورکول کيږي. تر ټاکنو وروسته دې ګوند ته ويل کيږي چې اوس نو پـه ولسـي جرګه کې د ېرش سلنه حق ستاسو دی او تاسو د ولسي جرګې د غړيتوب لپاره خپل استازي وټاکئ، په همدې توګه دوی خپل استازي وټاکي.

خو پـه ځينـو هيـوادونو کې بيـا د ټـاکنو پـر وخت ګوند د خپلو کانديـدانو نومونه وړاندې کوي، او اعلان کوي چې موږ دې کسانو ته غړيتوب ورکوو، دا کسان تر يو لړ مشورو وروسته غوره کيږي او پـه يـوه پاڼه کـې يـې نومونـه اعلانيږي. د بېلګې په ډول د يو ګوند پـه نومپاڼـه کـې پنځـوس نومونـه ليکـل شوي وي، که دې ګوند پنځوس سلنه رايې ګټلي وي؛ نو دوی تـه بـه پـه ولسـي جرګه کې پنځوس چوکۍ ورکول کيږي او که د رايې فيصدي يې کمـه وي بيـا پر همدې تناسب د دې پاڼې پورتني لومړي نومونه اخېستل کيږي، پـاتې نـور نه اخلي. خو دا تګلاره يوازې هغه مهال کارول کيږي چې کله د ټـاکنو کمپـاين د سياسي ګوندونو پر بنسټ وشي.

کله نا کله ګوندونو ته د ترجيح حق ورکولو وروسته ولس تـه دا حق ورکـول کيږي چې هغوی خپلې متبادلې رايې ورکاروي. د بېلګې په ډول په يوه ټـاکنېزه شمېره کې ګڼ شمېر کانديدان ولاړ دي، په داسې وخت کې بيـا ولـس تـه ويـل کيږي چې په دې ټولو کانديدانو کې يوازې درې کانديدانو تـه د تـرجيح نښـې ولګوي او بيـا داچې پـه دې درې کانديـدانو کـې سـتا پـه نيـز لـومړی چاتـه د ترجيح حق حاصل دی، دوهم چاته او دریم چاته؟ په همدې توګه د يـو او دوه او درې نښې ولګوئ. د دې ترڅنګ دا اندازه هم ټاکل کيـږي چې مـثلا پـه پلانـۍ شمېره کې چې هر چا تر ديرش زره کمې رايې وګټلې هغه به ګټونکی نه شمېرل کيږي. بيـا د رايـو شـمېرنې پروخت کتـل کيـږي چـې کـوم اسـتازي د تـرجيح پـر بنيـاد تـر ټولـو وړانـدې ديـرش زره رايـې ګټلي دي؛ نـو هغـه ګټـونکی شـمېرل کيږي او که دې کانديد تر د ېرش زره زياتې رايې ګټلي وي هغه زياتې رايې بـه

پخپله دوهم ترجیح لرونکي نماینده ته ور نقل کیږي. دې نظام ته د "انتقال وړ یو کسېزه رایه "(Single Transferable Vote) تګلاره وایي. یاني رایه یوه ده خو هغه له متبادلې لارې له یو شخص نه بل ته نقل کیږي.

لنډه دا چې په ساده اکثریت لرونکي ټاکنیز نظام کې چې کومې نیمګړتیاوې منځ ته راځي چې د لږو رایو په مټ یو تن نماینده شي او واکمني کوي، د دې نیمګړتیا د لرې کولو لپاره د ټاکنو تېرې بېلابېلې کړنلارې په مختلفو هیوادونو کې غوره کیږي؛ خو د دې ستونزې د اوارولو لپاره په دوی کې یو نظام هم په بشپړډول نشي بریالی کېدلی، بلکې د لږو رایو په مټ ګټونکي په دې نظامونو کې راتلی شي، او په دې نظامونو کې کړکیچونه هم ډېروي او کړکیچ چې څومره زیاتیږي همدومره د درغلیو امکانات هم زیاتیږي، دغه راز په دې تګلارو کارولو سره لګښتونه هم ډېر کیږي، او تر ډېرو ورځو د نه باور یوه فضا رامنځته کیږي. د دې هرڅه سره سره بیا هم نه ویل کیږي چې د دې تګلارو کارولو په مټ سل فیصده نماینده ګي تر لاسه شوه.

## (۳) مقنّنه (Legislature)

د جمهوریت جوړي شوي دریمې ادارې ته مقنّنه وایي. په دموکراتیک نظام کې مقنّنه ترټولو زیات اهمیت لري. "مقنّنه" د "قانون جوړونکی مجلس" په مانا دی، او دا د ولس له استازو څخه جوړ د دولت هغه عالي ارګان دی چې د قانون جوړونې، د ملت څخه د استازیتوب او د حکومت یا د اجرائیه قوې له کړنو څخه د څارنې دنده او صلاحیت لري. په ځینو هېوادونو کې دېته "پارلمان" یا "ولسي جرګه" هم وایي. پارلمان د فرانسوي کلمې له (Parlement) او بیا له (Parler) څخه اخیستل شوی دی، د خبرې کولو یا بحث کولو په مانا دی، یاني هغه ځای چېرې چې خلک کښېني او بحث کوي.



او د اسمبلي مانا "دراټولېدو ځای". د دې ادارې بنسټیز کار قانون جوړونه ده، په هېواد کې دننه باید کوم قانون نافذ کړل شي؟ پر دې خبره دا اداره بحث کوي، بیا چې د کوم قانون اکثریت ملاتړ وشو، هغه و منل شي او نافذ کړل شي. د دې تر څنګ دا اداره د حکومت پر پالیسي هم بحث کوي، او په دموکراتیک نظام کې دا اداره تر ټولو لوړ ارګان ګڼل کیږي.

## د مقنّنې دوه نظامونه

په جمهوري نظام کې دننه د مقنّنې دوه ډوله نظامونه مشهور دي:

(۱) یوه جرګه لرونکې مقنّنه (Unicameral)

(۲) دوه جرګې لرونکې مقنّنه (Bicameral)

یوه جرګه لرونکی مقنّني نظام خو څرګند دی چې په هیواد کې د حکومت چلولو د پاره یوه مقنّنه منځ ته راځي، هغه به قانون جوړوي، او کوم قانون چې د دې ارګان له خوا ومنل شي همغه به په هیواد کې نافذیږي.

دوه جرګې لرونکی مقنّني نظام له دوو مجلسونو تشکیل شوی وي، یوه ته ولسي جرګه او بل ته د مشرانو جرګه وایي.

## ولسي جرګه

دې جرګې ته زموږ په هیواد (پاکستان) کې ملي اسامبلۍ، په برتانیان کې د عوامو مجلس، په هندوستان کې لوکسبا – په افغانستان کې ولسي جرګه- او په امریکا کې نماینده مجلس یا کانګریس وایي.

## د مشرانو جرګه

دې جرګې ته په پاکستان کې "سینټ" -په افغانستان کې د سنامجلس یا د مشرانو جرګه- په برتانیا کې د مشرانو مجلس، په هندوستان کې راجیه سبا او په امریکا کې ورته سینټ وايي.

پوښتنه دا ده چې دوارو جرګو ته څه اړتیا ده؟ د دوارو جرګو جوړولو لامل دا بیانیږي چې په ولسي جرګه کې نماینده د رایې ورکولو پر بنسټ او په عامه توګه د ګوندیز نظام له لارې ټاکل کیږي، د وړتیا او صلاحیتونو پر بنسټ نه ټاکل کیږي، چې له امله یې زیاتره وخت په دوی کې جذبات ډېر وي، او د خپل سیاسي ګوند د فشار له امله مغلوبیږي، او دا خبره لرې نه ده چې دا خلک په جذباتو کې راشي او داسې قانون تصویب کړي چې د هیواد په ګټه نه وي. نو یوې داسې اداري ته اړتیا ده چې د هغې تشکیل له ولسي جرګې بېخي په بېل ډول شوی وي، او کوم قانون چې ولسي جرګه تصویب کړي پر هغه قانون په دوهم ځل په دې اداره (دمشرانو جرګه) کې بحث وشي او بیا له سوچ او فکر وروسته همدا قانون نافذ کړل شي تر څو یو قانون په بېړه او د جذباتو له لارې جوړ نشي. په دې اړه اصل تصور دا و چې پر یوه موضوع قانون جوړیږي، کله داسې هم وشي چې د هغې موضوع ماهر په ولسي جرګه کې نه وي، نو په مشرانو جرګه کې د ژوند په هره څانګه پورې تړاو لرونکي خلک ګومارل کیږي ترڅو ولسي جرګه یو قانون تصویب کړي او پر هغه باندې د مشرانو جرګې ماهرین بیا کتنه وکړي او د فني کتنې له مخې پر دې قانون سمه رڼا واچوي، که په قانون کې د سمونې اړتیا برېښي؛ نو ولسي جرګې ته د بیاکتنې او سمونې مشوره ورکړي.

که د مشرانو جرګې په تشکیل کې رښتیا هم علمي او فني صلاحیت معیار وګرځول شي؛ نو د دې جرګې اړتیا د منلو وړ ده. خو په عامه توګه داسې نه



وي، بلکې ډېری داسې هیوادونه دي چې په هغو کې د مشرانو جرګې غړي د دې بنیاد پرځای په یو بل معیار باندې ټاکل کیږي چې د هغې د پاره بېلې بېلې تګلارې کارول کیږي، نو ځکه یې پورتنۍ اړتیا نه تر سترګو کیږي.

د مشرانو جرګې د جواز دوهم لامل دا بیانیږي چې کوم هیواد تر یوه زیات ولایتونه ولري، په هغه کې به سیمیز، ثقافتي او ژبني اختلافات موجود وي، څرګنده ده چې په دوی کې به ځیني ولایتونه واړه او ځیني لوی وي، لکه په پاکستان کې چې پنجاب د وګړو له پلوه لوی او سند او بلوچستان واړه ولایتونه دي، او په ولسي جرګه کې د وګړو د شمېر پر بنسټ نماینده ټاکل کیږي او جرګې ته ورځي، نو د دې نتیجه به دا وي چې د واړه ولایت نماینده ګان به هلته کم وي او د لوی ولایت نماینده ګان به زیات وي، په داسې وخت کې شونې ده چې د لوی ولایت نماینده ګان یو داسې قانون تصویب کړي چې د واړه ولایت له ګټو سره ټکر ولري او له دې امله چې د واړه ولایت نماینده ګان اقلیت دي؛ نو د هغوی رایه به رد کیږي. له همدې امله یوې داسې جرګې ته اړتیا شته چې په هغې کې د ټولو ولایتونو نماینده ګان برابر وي، د وګړو د شمېر یا ابادي پر بنسټ نه وي تر څو د لویو ولایتونو نماینده ګان خپل غوښتني ونه منلی شي. او نن چې د نړۍ په کوم هیواد کې دوه مقنّنې دي هغه زیاتره د همدې اندېښنې په نتیجه کې منځته راځي ترڅو هلته د وړو ولایتونو د ګټو ساتنه وشي.

خو عجیبه دا ده چې له یوې خوا ویل کیږي دوهمه جرګه د دې لپاره جوړیږي چې د وړو ولایتونو د ګټو ساتنه وشي؛ خو دا یوازې د نوم له مخې "دمشرانو جرګه" ده، په حقیقت کې دا جرګه د واک له مخې ډېره کمزورې ده، سره له دې چې هغه د مشرانو جرګه ده خو واک یې د کشرانو (ولسي جرګې) تر جرګې ډېر کم دی. همدا لامل دی چې په زیاتره هیوادونو کې کله ولسي جرګه یو قانون تصویبوي، بیا هغه قانون د مشرانو جرګې ته وړاندې کیږي، د سوچ

او فکر وروسته که د مشرانو جرگه دا قانون سهي و نه بولي؛ نو زیات نه زیات دومره کولی شي چې د بیا کتنې لپاره یې ولسي جرگې ته بېرته وروليږي؛ خو ردولی یې نشي. او کله چې ولسي جرگه دا قانون د دوهم ځل سوچ او فکر وروسته تصویبوي؛ نو دا یو منل شوی قانون گڼل کیږي، په دوهم ځل د مشرانو جرگې ته نه وړاندې کیږي.

په پاکستان کې د مشرانو جرگې اختیارات د نورو هیوادونو په پرتله زیات دي. د اتم ترمیم له لارې چې د مشرانو جرگې کوم تشکیل وشو په هغه کې د مشرانو جرگې ته زیات واک ورکړل شو. د بېلگې په ډول: د دې هیواد په سنامجلس کې دوه ډوله مصلحتونه یوځای کړل شوي دي، لومړی دا چې له یوې خوا په دې کې د ولایتونو مصلحتونو ته پاملرنه شوې ده او له بلې خوا د سنا مجلس ځینو غړو ټاکنې د پوهې او فني مهارت پر بنسټ شوي دي ، او د دوی لپاره ځیني چوکۍ ځانگړې شوي دي. دوهم دا چې په پاکستان کې د یو قانون جوړولو پیل هم د سنا له مجلسه کیږي چې په نورو هیوادونو کې په عامه توگه د قانون جوړونې پیل له ولسي جرگې کیږي. هلته چې کله یو قانون تصویبیږي؛ نو هغه بیا په دوهم ځل د سنا مجلس ته وړاندې کیږي؛ خو په پاکستان بیا د قانون مسوده لکه څرنگه چې په ولسي جرگه کې وړاندې کیږي همداسې د سنا په مجلس کې هم وړاندې کیږي.

دغه راز په پاکستان کې که په ولسي جرگه کې کوم قانون تصویب شي، او بیا هغه قانون د سنا مجلس ته وړاندې کړل شي؛ نو که د سنامجلس دا قانون تصویب کړي نافذیږي، او که په هغه کې سمونه وکړي؛ نو هغه قانون بیا په دوهم وار اسامبلۍ ته وړاندې کیږي. که اسامبلۍ دا سمونه ومنله نو سهي ده، هغه قانون به نافذیږي او که و نه منل شي ؛ نو په داسې حالت کې بیا دواړه مجلسونه گډه غونډه رابلي، که په غونډه کې اکثریت خوا دا قانون



ومانه؛ هغه نافذیږي. لنډه دا چې په پاکستان کې د سنامجلس یا د مشرانو جرگه د نورو هېوادونو د مجلسونو په پرتله ډېر واک لري.

د نړۍ په زیاتره هیوادونو کې د دوو مجلسونو نظام دود دی. ډېری سیاستوال پر دې د نیوکې سره سره دا هم وایي چې د نړۍ زیاترو هېوادونو دا نظام خپل کړی دی ؛ نو ځکه څوک د دې نظام پرضد د څه ویلو جرأت نه کوي، او همدا لامل دی چې ډېره غوښتنه یې کیږي.

لکه مخکې مو چې وویل، په جمهوري نظام کې "مقنّنه" تر ټولو پیاوړی ارگان دی او د جمهوریت په مذهب کې "مقنّنه" له گناهونو پاکه شمېرل کیږي، گواکې له دې نه هیڅ ډول خطایې نشي کېدلی. خو په دې اړه د امریکا او برتانیا نظامونه یو له بل سره توپیر لري. په برتانوي نظام کې د پارلمان جوړ شوي قانون یا کوم اقدام ته د هیواد یوه اداره هم گوته نشي نېولی؛ ځکه چې له پارلمانه غلطي نشي کېدلی. خو په امریکایي نظام کې بیا "پارلمان" که څه هم بشپړه واکمنه اداره گڼل کیږي؛ خو که پارلمان کوم قانون تصویب کړي او دا قانون څوک د دستور یا بنسټیزو حقوقو پرضد وبولي؛ نو کولی شي په قضا کې دې قانون ته گوته و نیسي، او که قضا دا قانون د هیواد دستور یا بنسټیزو حقوقو سره ټکر وبلي؛ نو په پارلمان کې جوړ کړل شوی قانون منسوخ اعلانیږي. او دې ته قضایي بیاکتنه(**Judicial Review**) نظام وایي.

په پاکستان کې هم د "جوډیشنل ریویو" (قضایي بیاکتنه) نظام نافذ دی. دلته که پارلمان یو قانون تصویب کړي او هغه قانون د اساسي قانون د کومې مادې خلاف وي، یا له بنسټیزو حقوقو سره ټکر ولري؛ نو هغه په ستره محکمه کې چیلنج کېدای شي، او محکمه کولی شي پرېکړه وکړي چې دا قانون غلط دی. له دې پرېکړې وروسته د پارلمان جوړ شوی قانون منسوخ اعلانیږي.

دغه راز د پاکستان په اساسي قانون کې دا ماده هم شته چې پارلمان یو داسې قانون تصویب کړي چې د قرآن او سنت سره ټکر ولري، نو هغه هم په "فیډرل شریعت کورټ " کې چیلنج کېدای شي. لکه څرنگه چې یو قانون د بنسټیزو حقوقو او اساسي قانون سره ټکر ولري؛ نو قضا هغه منسوخ اعلانولی شي دغه راز که یو قانون د شریعت خلاف وي؛ نو "فیډرل شریعت کورټ" کولی شي هغه منسوخ کړي. د دې پرېکړې وړاندیز هم د محکمې په یوه ځانگړې برخه کې کېدلی شي چې "شریعت اپیلیټ بینچ" (شریعت کتنې ځانگه) ورته وایي. په دې څانگه کې د فیدرل شریعت کورټ پرېکړه د قرآن او حدیثو په رڼا کې تر څېړنې لاندې نېول کیږي، او که دا څانگه د فیدرل شریعت کورټ پرېکړې سره متفقه شي چې رښتیا هم دا قانون د قرآن او حدیث له احکامو سره ټکر لري؛ نو هغه یو تاریخ و ټاکي او قانون ختم کړي. د جنرل ضیاء الحق په وخت کې چې کله فیډرل شریعت کورټ جوړ شو؛ نو هغه مهال د سیکولر ټولنو له خوا دا نیوکه وشوه چې پارلمان د هیواد تر ټولو لوړه اداره ده، د فیډرل شریعت کورټ او ستره محکمه کې د شریعت اپیلیټ بینچ په جوړولو سره پر دې لوړه اداره باندې دې محکمو ته برلاسی ورکړل شو او دوی ته د ویټو اختیار ورکړل شو چې په دې سره د پارلمان تر ټولو ستر واک تصور ختم شو.

د دې نیوکې ځواب دا دی چې پارلمان د بنسټیزو حقوقو یا اساسي قانون په خلاف کوم قانون تصویب کړي؛ نو په محکمه کې هغه تر نیوکې لاندې راتلی شي ، چې په دې سره هم د پارلمان لوړ واک ته زیان رسیږي، پر دې هیڅوک نیوکه نه کوي؛ خو چې کله د شریعت پر بنسټ د قوانینو د منسوخېدو اختیار خبره رامنځته شوه ؛ نو دا پوښتني راپورته کیږي چې د پارلمان لوړ واک تر پوښتني لاندې راغی ! !.



## (۴) دستور

د جمهوري او مطلق العنان حکومتونو ترمنځ بنسټیز توپیر دا دی چې مطلق العنان حکومت د کوم دستور پابند نه وي او په جمهوري نظام کې حکومت د دې پابند وي چې خپلې ټولې حکومتي چارې به له اساسي قانون سره سم پرمخ وړي.

په عامه توگه خلک د "دستور" او "قانون" ترمنځ توپیر نه کوي. "دستور" هغه اسنادو ته وایي چې په هغه کې د حکومت چلولو قواعد او ظوابط لیکل شوي وي. گواکې دستور د حکومت قانون دی، او حکومت تر دې قانون لاندې پرمخ بېول کیږي. د بېلگې په ډول په دستور کې دا لیکل شوي وي چې د "مقنّنه قوې" اختیارات څه دي؟ د اجرائیه قوې اختیارات څومره دي؟ د ولسمشر او لومړي وزیر څومره اختیارات دي؟ ټاکنې څه ډول کیږي؟ مقنّنه به یو جرگیې وي او که دوه جرگیې؟ صادرات څه ډول کیږي؟ قضا څه ډول منځ ته راځي، او د قضا اختیارات څه دي؟ دا ټولې خبرې په دستور کې لیکل شوي وي، او قانون د عوامو د پاره وي چې عوام خپل معاملات تر څینو قوانینو لاندې پرمخ یوسي.

۱. وحداني دستور

۲. وفاقي دستور

## وحداني دستور (Unitary)

د وحداني دستور مانا دا ده چې د ټول هیواد د پاره یوه "مقنّنه" وي، او د دې چې کوم سیمه ییز وحدتونه دي، که هغه د ولایتونو په شکل کې وي، یا د ولسوالیو او یا هم د ایالتونو په شکل کې وي، د دې وحدتونو بېل حکومت او مقنّنه نه وي، بلکې د ټول هیواد د پاره یوازې یو حکومت، یوه مقنّنه، یوه اجرائیه او یوه قضا وي، او د ټول هیواد نظام له مرکز نه پرمخ بېول کیږي او ټولې سیمې د دې حکومت تر ولکې لاندې وي او د اجرائیې وحدتونو لکه ولایتونه، ولسوالۍ، ایالتونو او نورو د انتظام چلولو د پاره رسمي چارواکي ټاکل کیږي. لکه د ښار د انتظام لپاره "ښاروال" وي، او دی د ښار حاکم شمېرل کیږي، هغه سیاسي واکمن نه وي بلکې رسمي چارواکی وي. دغه راز که ډېر ولایتونه وي؛ نو په هر ولایت کې رسمي چارواکی د هغه ځای نظام پرمخ بیایي. خو د دوی نه کومه بېله جرګه وي، نه کابینه او نه هم د دې کوم بېل سیاسي وجود وي. دا د وحداني دستور د چلولو تګلاره ده. دا نظام په عامه توګه په هغو هیوادونو کې چلیږي چې هلته ولایتونه محدود وي، یا د یو هیواد ټول وګړي د یوه نظر څښتنان وي ځکه چې د دوی ترمنځ په خپل منځي ګټو کې یو له بل سره ټکر نه وي، له همدې امله هلته وحداني دستور غوره کیږي.

په برتانیا کې "وحداني حکومتي نظام" دی، سره له دې چې هلته مختلف سیمه ییز وحدتونه موجود دي، او د بېلا بېلو سیمو کلتور، لهجې او د ژوند تګلاره هم یو له بل سره توپیر لري، ځکه چې برتانیا یو ګڼ توکمیز او ګڼ میشت هیواد دی؛ خو له دې امله چې هغه خلک ټول ځانونه د یو فکري نظام پابند بولي؛ نو ځکه هغوی په خپل هېواد کې د "وحداني" دستور تګلاره پلي کړې ده.



## وفاقي دستور

وفاقي دستور په داسې هیواد کې نافذیږي چې هلته یو شمېر سیمه ییز وحدتونه موجود وي. د وفاقي حکومت اصل تصور داسې رامنځته شو چې په پیل کې د هر سیمه ییز وحدت خپل بېل حکومت و. په بله مانا دا چې هر ولایت یو مستقل حکومت درلود، خو وروسته بیا دا حکومتونه سره یو ځای شول او یو ګډ حکومت یې جوړ کړ چې وفاقي حکومت ورته وایي. په همدې توګه دا یو مرکزي حکومت وي چې وفاقي ورته وایي، او د هر ولایت یو سیمه ییز بېل حکومت جوړ شوی وي او هغوی په خپل منځ کې اختیارات سره وېشي.

خو په عملي توګه وفاقي دستور یا وفاقي نظام په هغه ځای کې هم جاري کیږي چې هلته له پیل نه یو لوی حکومت منځ ته راشي او په هغه کې د ولایتونو په بڼه واړه واړه سیمه ییز وحدتونه وي؛ نو هغوی ته د ډاډ ورکولو پر ځای وحداني ډوله حکومت وفاقي حکومتي بڼه غوره کړې تر څو هر ولایت دا محسوس کړي چې زموږ ترمنځ یو غړ دی او زموږ ترمنځ یو تشخص دی. په دې حکومتي بڼه کې داسې وي چې یو وفاقي حکومت وي چې مرکزي حکومت ورته وایي، او بل په هر ولایت کې خپل ولایتي حکومت وي لکه په پاکستان کې چې اوس دی، هلته یو وفاقي حکومت دی او د هر ولایت بېل حکومت دی، د پنجاب بېل، د سند بېل، د بلوچستان بېل او د پښتونخوا بېل حکومتونه دي، دا ولایتي حکومتونه وي، د دوی جرګې بېلې وي، کابینې یې بېلې وي او د دوی اجرائیه هم بېله وي، او په دستور کې دا خبره منل کیږي چې په کومو معاملاتو کې د قانون جوړونې حق د وفاق دی او په کومو کې د ولایتونو دی. د همدې لپاره وخت ناوخته په دستور کې د قانون جوړونې اختیارات په وفاق او ولایتونو کې د وېشلو د پاره د قانون جوړونې د معاملاتو بېل بېل لړلیکونه جوړیږي چې په دې معاملاتو کې دې قانون

جوړونه وفاق وکړي او په دې کې دې ولايتونه وکړي او دا هغه معاملات دي چې دواړه پکې قانون جوړونه کولی شي. په پاکستان کې دوه فهرستونه دي. يو وفاقي او بل ګډ فهرست. ياني په وفاقي فهرست کې هغه چارې ليکل شوي وي چې په هغو کې قانون جوړونه يوازې وفاق کولی شي، او په ګډ فهرست کې هغه چارې ليکل شوي وي چې په هغو کې وفاق او ولايتونه دواړه قانون جوړونه کولی شي. له دې پرته چې کومې چارې دي په هغو ټولو کې د قانون جوړونې واک له ولايتونو سره وي. اوس چې د کومو ولايتونو له خوا د ولايتونو د خپلواکۍ غوښتنه کېږي د هغوی غوښتنه داده چې دا ګډ فهرست دې ختم شي او په دې معاملاتو کې دې هم ټول اختيار ولايتونو ته ورکړل شي او په هغو کې دې وفاق هيڅ لاس نه وهي.(١)

## د دستور بنسټيزې برخې

مخکې وويل شول چې دوه ډوله دستور وي، يو وحداني او بل وفاقي، هر هيواد خپل حالاتو ته په کتو سره د دستور ترتيب او تدوين په بېلا بېلو ډولونو سره کوي؛ خو په بنسټيزه توګه چې په دستور کې کومې خبرې دي هغه يو څو برخې لري:

## د دستور سريزه

په عامه توګه په دستور کې تر ټولو وړاندې يوه سريزه وي، او دېته په انګريزي ژبه کې (**preamble** ) وايي او دا د قانون يوه ځانګړې اصطلاح ده، ياني څوک چې د کتاب سريزه ليکي هغې ته "**preamble** " نه وايي؛ خو د يو قانون سريزې ته " **preamble** " وايي. او دستور هم چې د حکومت قانون دی؛ نوځکه په هغه کې هم " **preamble** " وي. که تاسو کوم قانون يا دستور

١ او اوس په اتلسم ترميم کې دا ګډ فهرست ختم شوی دی.



لوستلی وي، د هغه پيل په دې ټکو کېږي: "کله چې دا خبره د قانون جوړونې وړ ده يا حکومت غواړي چې داسې وکړي؛ نو په دې اړه لاندې قانون نافذېږي. " دېته "**preamble** " وايي.

د دې سريزې په اړه عام اصول داسې دي چې دا د قانون د اصلي متن برخه نه وي، بلکې دلته يوازې هغه لاملونه په ګوته کېږي چې د هغو له امله د قانون نافذولو اړتيا رامنځته کېږي. د دې قانوني حيثيت کټ مټ داسې وي لکه زموږ په اصول فقه کې چې د حکمت يا مصلحت وي. مانا دا چې د احکامو دار و مدار پر دې نه وي دا د يو حکمت يا مصلحت د پاره وي. له همدې امله څوک نشي کولای چې د حکومت پر کوم اقدام په عدالت کې پر دې بنسټ ګواښنه وکړي چې دا د پلاني قانون له سريزې سره ټکر لري. خو **preamble** د قانون د تشريح د پاره کارول کېږي. که چېرې په يو قانون کې اجمال وي يا کوم ابهام وي د هغو د لري کولو د پاره په **preamble** کې ليکل شوي خبرې بنسټ ګرځول کېدلا شي ځکه چې **preamble** دا وايي چې دا قانون د پلانۍ موخې د پاره نافذ شوی و. نو د کوم قانون د مجملې مادې که چېرې دوه بېلا بېل تشريحات شوني و ؛ نو هغې تشريح ته ترجيح ور کول کېږي چې د قانون د اصلي هدف سره زيات ورته والی ولري. د دې درته زه يو مثال داسې بيانوم:

دلته په پاکستان کې چې کله حدود آرډيننس (د حدودو قانون) نافذ شو په هغه کې يې د زنا تعريف داسې وکړ چې که سړي او مېرمنې د روا نکاح پرته په خپلو کې جنسي اړيکې و نيولې؛ نو دا زنا ده. په ستره محکمه کې دا مسئله زموږ مخ ته راغله چې د حدودو په قانون کې دا نشته چې روا نکاح څخه څه مراد دی؟ په داسې وخت کې په عامه توګه دا کتل کېږي چې د نورو قوانينو سره سم کومې نکاح ته روا او کومې ته ناروا وايي. نو د دې غوښتنه دا وه چې په هيواد کې کوم نور قوانين نافذ دي، د هغو له مخې چې کومه نکاح روا ده هغه روا شمېرل کېږي او چې کومه نا روا وي هغه به ناروا بلل

کیږي. اوس چې په هیواد کې کوم قانون نافذ دی هغه عائلي قانون دی. د دې قانون یوه غیرشرعي غوښتنه داده چې که چېرې یو سړی مېرمنې ته طلاق ورکړي؛ نو هغه طلاق تر هغه وخته قانونا مؤثر نه دی تر څو چې د یونین کونسل چرمین ته خبر ور نه کړي؛ نو که چا مېرمنې ته طلاق ورکړ او د طلاق ورکولو روسته هغه چېرمین ته خبر ور نه کړ؛ نو هغه طلاق به قانونا د اعتبار وړ نه وي، له همدې امله د دې نکاح له مخکښني خاوند سره پر خپل حال پاتې ده، اوس چې د پخواني خاوند سره نکاح پر خپل حال ده؛ نو هغه مېرمن بله نکاح نشي کولی. اوس که دا مېرمن چېرمین ته د خبر ورکولو پرته دوهمه نکاح وکړي؛ نو د دې مانا به دا وي چې هغې مېرمنې دا نکاح روا نه کړه او نا روا یې کړه، په همدې توګه د دې عائلي قانون له مخې چې دلته په پاکستان کې نافذ دی که هغه وغواړي دوهمه نکاح وکړي؛ نو هغه نکاح یې قانونا روا نه ده. او له بلې خوا په زنا ارډیننس (دزناقانون) کې دا خبره لیکل شوې ده چې که یوه مېرمن له روا نکاح پرته له چا سره جنسي اړیکې و نیسي؛ نو دا زنا ده. له همدې امله دا سې ښځې په محکمو کې وړاندې شوي دي چې یوې مېرمنې ته خاوند طلاق ورکړی وي؛ خو چېرمین صیب ته یې نه وي ویلي، او مېرمنې پر لیکل شوي طلاق باور کړی وي او له بل خاوند سره یې نکاح کړې وي چې د شریعت له مخې دا کار روا دی؛ خو د عائلي قانون له مخې دا نکاح قانونا ناروا ده؛ نو د دې غوښتنه دا وه چې دې مېرمنې ته دې د زنا جزا ورکړل شي، او ځینې محکمو دا سې سزاوې ورکړي هم دي چې له امله یې ډېرې مېرمنې د ظلم ښکار شوي دي. خو کله چې دا د سیه مورډ ته را وړاندې شوه؛ نو هغه مهال ما دا پرېکړه و لیکله چې د زنا قانون سریزه دا سې وايي چې د زنا په اړه قوانین د شریعت سره سم چلولو د پاره نافذیږي چې د دې په پیل کې دا عبارت لیکل شوی دي چې: "هرکله چې دا خبره د مصلحت غوښتنه ده چې د زنا په اړه دې قوانین د شریعت سره سم پر مخ یووړل شي؛ نو د همدې د پاره دا قانون وضع شو"، په دې قانون کې دا ویل شوي دي چې د دې قانون اصلي



موخه دې د شریعت سره سم پلي کړل شي، او ورسره په څنګ کې دا هم شته چې دا قانون به پر نورو ټولو دودیزو قوانینو فوقیت لري؛ نو په دې قانون کې چې د "روانکاح" کوم لفظ کارول کیږي، د دې تشریح دې په بل قانون سره نه کیږي بلکې په شریعت سره دې وشي او د شریعت له مخې دا نکاح روا ده، که څه هم عائلي قانون یې ناروا بولي؛ نو پر همدې بنسټ دې هغې ته سزا نه ورکول کیږي. دا راز د قانون سریزه یا تمهید د یو قانون د تشریح د پاره د کوم ابهام د لرې کولو د پاره کارول کیږي، چې د دې په مټ دې ته کتنه کیږي چې د دې قانون بنسټیزې موخې څه وې؛ خو دا پخپله د قانون برخه نه وي.

همدا لامل دی چې د دستور په سریزه کې په عامه توګه دا بیان کیږي چې د دې هیواد بنسټیز هدف او موخې څه دي؟ او د کومو موخو لپاره دا دستور جوړیږي؟. د پاکستان په دستور کې به تاسو "قرارداد مقاصد" ډېر اورېدلی وي، دا په حقیقت کې د دستورسریزه وه، دا "قرار داد مقاصد" په (۱۹۴۸ز) کې شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثماني رحمه الله او د هغه د ملګرو د هڅو له برکته هغه دستور جوړونکې جرګې منظور کړ چې د پاکستان له جوړېدو وروسته دلته دا بحث پکې کېدی چې په هیواد کې څه ډول دستور باید جوړ کړل شي. هغه مهال بې دینه جمهوریت پلویانو دا هڅې کولې چې پاکستان هم یو سیکولر یا پر مذهب نه ولاړ هیواد کړي. علامه شبیر احمد عثماني رحمه الله او د هغه ملګرو د یوې اوږدې لفظي شخړې وروسته دا قرارداد په اسمبلۍ کې وړاندې کړ چې بالاخره د هغه وخت لومړي وزیر مرحوم لیاقت علي خان دا قرارداد په اسمبلۍ کې منظور کړ. دا قرارداد په ټولیزه توګه د هیواد اصلي لید لوری و ټاکل شو. د قرارداد متن دادی:

## قرارداد مقاصد ۱۹۴۹

بسم الله الرحمن الرحیم

بې شکه یوازې الله تبارک وتعالی پرته له شریکه د ټولو کائناتو مطلق حاکم دی، او د پاکستان چارواکو ته چې په خپلو ټاکلو حدودوکې د واک او اختیار کارولو کوم حق ورکړل شوی دی، هغه یو سپېڅلی امانت دی.

دستور جوړونکی مجلس، چې د پاکستان جمهوري دولت نماینده دی، د ازاد او خپلواکه هیواد پاکستان دپاره د یو دستور جوړولو پرېکړه کړې ده.

چې د هغه له مخې به د جمهوریت، ازادي، مساوات، اړیکو او اجتماعي عدل هغه اصول چې اسلام یې تشریح کړې ده په پوره ډول په پام کې نېول کیږي.

چې د هغه له مخې مسلمانان ددې وړ وګرځول شي چې خپل ژوند په انفرادي او اجتماعي توګه د اسلامي لارښوونو او غوښتنو سره سم چې قرآن کریم او حدیثو ټاکلي، دې ترتیب کړای شي.

چې د هغه له مخې د دې کار ړښتونې چاره وکړل شي چې اقلیتونه د ازادي ترڅنګ کولای شي پر خپلو مذهبونو عقیده وساتي او پر هغو عمل وکړای شي، او خپل دود او کلتور ته پرمختګ ورکړای شي.

چې د هغه له مخې هغه سیمې چې تر ننه په پاکستان کې داخل کړل شوي دي، او نورې سیمې چې په راتلونکي کې په پاکستان کې شاملیږي، د هغو د پاره دې یوه وفاقي اداره جوړه کړل شي چې په هغې کې ولایتونو ته ټاکلي اختیارات او ترخپله حده خپلواکي ور په برخه وي.

او چې په هغه کې د بنیادي حقوقو ضمانت وکړل شي، او په دې حقوقو کې دې ترکومه بریده چې قانون او اخلاق اجازه ورکوي، د قانون له مخې برابري،



ټولنیز اقتصادي او سیاسي انصاف، د عقېدې د څرګندولو حق ، او د عبادت او شرکت ازادي هم شامله وي.

چې د هغه له مخې به اقلیتونو او وروسته پاتي طبقو د روا حقوقو د ساتنې په ړښتونې توګه چاره وکړل شي.

چې د هغه له مخې عدل او آزادي په پوره توګه وساتل شي.

د هغه له مخې به د وفاقي سېمو ساتنه، د هغوی ازادي او ټول هغه حقوق چې په هغو کې د سېمې وچې او لندې برخې او پر فضا د واک حقوق هم راځي د ټولو ساتنه کیږي.

ترڅو د پاکستان ولس سوکالي او پرمختګ ترلاسه کړي، او وکولای شي د نړۍ د ولسونو په صف کې خپل روا او غوره ځای ترلاسه کړای شي، او د نړۍ د امن ساتلو او د انسان د پرمختک او خوښي د پاره پوره هڅې وکړای شي.

له دې وروسته به دلته نور ډېر دستورونو جوړ او رامنځته شي ؛ خو دا قرارداد به د هر دستور برخه وي. "قرارداد مقاصد " په حقیقت کې د دستور **preamble** (سریزه ) ده او له دې امله چې **preamble** د دستور یوه برخه نه ده؛ نو ځکه محکمو دا پرېکړه وکړه چې " قرارداد مقاصد "زموږ د پاره د دستورې ډانچې ځای لري؛ خو دا په سریزه کې لیکل شوی دی؛ نو موږ کولی شو د دستور د تشریح د پاره یې وکاروو ، خو که د دستور کومه ماده یا کوم قانون له دې سره ښکاره ټکر ولري؛ نو موږ د دې قرارداد پر بنسټ هغه کالعدم نشو شمېرلی. د همدې پرېکړو له امله دین پلوه خلکو دا غوښتنه وکړه چې دا قرارداد ، د دې پرځای چې یوازې یو (**preamble** ) وي باید د دستور د متن یوه لازمي برخه و ګرځول شي. چې بیا وروسته مرحوم ضیاء الحق د اتم ترمیم په ذریعه په دستور کې **A.۲** ماده زیات کړه چې په هغه کې دا خبره وشوه چې "قرارداد مقاصد "یوازې یوه سریزه نه بلکې د دستور د متن

یوه برخه ده او د دې به هم دوه مره اغیز وي څو مره چې د دستور د نورو برخو وي. د دې مادې زیاتولو پایله دا سې شوه چې د "قرارداد مقاصد" هغه حیثیت پاتي نه شو چې د سریزې په بڼه و، او د دې غوښتنه دا وه چې کوم حکومت د دې قرارداد څخه سرغړونه کوي؛ نو همدا سرغړونه به په محکمه کې تر نیوکې لاندې را تلای شي. د A-۲ مادې همدا موخه وه.

خو متاسفانه چې وروسته سترې محکمې په یوه پرېکړه کې وویل چې "قرارداد مقاصد" د دستور یوه ضروري برخه ده؛ خو پر نورو برخو لوړه نه ده. دوا ړه یو ډول ځای لري. په دې پرېکړې سره یو ځل بیا د دې قرارداد په قانوني حیثیت کې ابهام را پیدا شو، او بیا هم هر وخت د دې شونتیا شته چې د متن یو ې لازمي برخې ګڼلو په توګه به د دې عملي پایله د قضا په کومه پرېکړه کې څرګنده شي، او زه هیله لرم که ستره محکمه پر دې مسئلې له سره غور وکړي، او د دې څخه سرغړونه د بیاکتنې محکمې له لارې چیلنج کړل شي؛ نو ان شاء الله یوه لاره به هرومرو را ووځي.

## بنسټیز حقوق

د دستور دوهمه برخه چې په ننني جمهوري دستورونو کې په عمومي توګه موجوده وي، هغې ته د بنسټیزو حقوقو (Fundamental Rights) برخه وایي، او جمهوري دستورونه تر ټولو زیات پر دې خبره ویاړي چې زموږ جمهوري نظام د انسان د بنیادي حقوقو د ساتنې لارې چارې برابروي. په مطلق العنان واکمنیو او حکومتونو کې د افرادو د بنسټیزو حقوقو هیڅ ساتنه نه وه. خو موږ انسانانو ته د دې حقوقو لارې چارې ولټولې او ورته برابر مو کړل. په دستور کې دننه د هغو بنسټیزو حقوقو یادونه کیږي چې ټول افراد ورڅخه برخمن دي. لکه د هرفرد د ځان، مال او عزت ساتنه. په دستور کې د



دې موخه داده چې دا سې قانون به نه جوړیږي او نه به هم حکومت دا سې اقدام کوي چې په هغه کې د فرد پر ځان، مال او عزت تېری شوی وي. دویم دا چې دا اعلان به کیږي چې هر فرد د خپلې رایې څرګندولو پوره اختیار لري. دې چې څه ډول رایه لري هغه دې په ډاګه کړي او پر ده دې هیڅ ډول پابندي نه لګول کیږي، او دریم دا چې هر فرد پر خپل مذهب د عمل کولو پوره ازادي لري چې کوم مذهب دده په عقیده ربښتونی مذهب وي پر هغه دې عمل وکړي. څلورم دا چې هر شخص کولای شي ځان ته ګوند جوړ کړي چې څه ډول غواړي هماغسې ګوند دې جوړ کړي او غونډې دې وکړي. پنځم حق دا دی چې هر شخص په ازاده توګه د خپلو املاکو د ساتنې حق لري او بل څوک نشي کولای د نوموړي پر املاکو تېری وکړي. هر څوک کولی شي ځانته مشروتیاکې او هغه د خپلې خوښې سره سم د واکمن په ټاکلو کې هم ازاد دی او کولای شي د خپلې رایې حق وکاروي. دا هغه حقوق دي چې په بنسټیزو حقوقو کې درج دي.

ویل کیږي چې په لومړي ځل د بنسټیزو حقوقو اسناد د برتانیې پاچا دوهم جان په دیارلسمې پېړۍ کې تیار کړي وو. دې اسنادو ته (Magna Karta) وایي، دوهم جان خپلو وګړو ته یو سند لیکلی و چې هغه خلکوته د حقوقو ورکولو یوه پیمانه ګڼل کیږي، او دا ډېر مشهور سند دی، زیاتره وخت لیکوالان د دې حوالې هم را اخلي، او برتانیه پر دې خبره ویاړي چې په نړۍ کې تر ټولو لومړی د بنسټیزو حقوقو په پېژندلو کې د دوی برخه ده، دوی وایي: "موږ ویاړو چې موږ او زموږ پاچا دوهم جان میګنا کارټا اسناد تیار کړي دي" خو که دا اسناد ولوستل شي؛ نو په هغو کې د انسانانو د بنسټیزو حقوقو په اړه یوازې یوه جمله ده او هغه دا چې هیڅوک دې له قانون پرته نه نیول کیږي او له دوسیې چلولو پرته دې هغه ته جزا نه ورکول کیږي. د دې مانا داده چې په دوی کې له دېنه مخکې دا تصور هم نه و چې د چا د نیولو د پاره د کوم قانون ضرورت شته، او د "میګنا کارټا" چې نورې څومره مادې دي، په

هغو کې کليسا ته ازادي ده چې له حکومت نه ازاده وي، په هغو کې پر خلکو د ماليې لګولو ازادي ده چې حکومت کولای شي هر ډول ماليه وضع کړي، او د ماليې لګولو ځيني اصول پکې په ګوته شوي دي او داسې نور، خو د انسان د بنسټيزو حقوقو په اړه يوازې يوه ماده ده چې مخکې يې موږ يادونه وکړه؛ نو د همدې پر اساس دوی دا غوغا جوړه کړې ده چې موږ انسانانو ته بنيادي حقوق ورکړي دي. او پيغمبر صلی الله عليه وسلم چې په حجة الوداع کې د انسانانو کوم حقونه بيان کړي دي، هغه دومره روښانه او جامع دي چې "ميګناکارټن" او نور قوانين يې ګرد ته هم نشي رسېدلی.

قرآن کريم د انساني حقوقو پوره څېړنه کړې ده او اسلام له لومړي ورځې نه د انسان د بنيادي حقوقو اعلان کړی دی؛ خو دې خلکو په دې هرڅه سترګې پټې کړي. يا يې په لوی لاس ځان بې خبره ښوولی دی او يا په دې هرڅه خبر دي خو يادونه يې نه کوي او وايي چې تر ټولو لومړی د بنيادي حقوقو بنسټ "ميګناکارټن" دی. زه حيران يم چې "ميګناکارټن" اسناد يوازې په ۴۲ مخه کې راټول کړل شوي دي، او يوازې له يوې مادې پرته نور د انساني حقوقو په اړه پکې بله هيڅ خبره نشته. له دې وروسته چې کوم حقوق په ځرګندو ټکو د امريکا د آزادۍ په اعلان کې شامل کړل شول، د هغو پيل له هغې جملې وشو چې څوارلس پېړۍ وړاندې د حضرت عمر رضی الله عنه له مبارکې خولې راوتلې وه، هغه دا چې: "انسان د مور له نسه آزاد پيدا شوی دی، هيڅوک نشي کولی هغه د ځان غلام کړي." دا هغه جمله ده چې حضرت عمر رضی الله عنه د مصر والي عمروبن العاص ته ويلې وه، چې:

"مذکم تعبّتم الناس و قد ولدتهم أمّهاتهم أحرارا." ([1])

[1]) کنزالعمال۱۲: ۶۶۰. شمېره ۳۶۰۱۰، د عبدالحکم په حواله.



تاسو له کوم وخت نه خلک خپل غلامان ګرځولي دي!؟ سره له دې چې خپلو مېندو دوی آزاد زېږولي دي.

او ربعي بن عامر رضی الله عنه چې د رستم په دربار کې کومه وينا کړې وه، په هغې کې د دې پوښتنې په ځواب کې چې ستاسو موخه څه ده، او د څه لپاره دلته راغلي ياست؟ نو موړي ورته وويل: "موږ غواړو خلک د انسانانو له غلامۍ نه ازاد کړو او د الله تعالی غلامي ته يې را وبلو." ([1])

په حقيقت کې انسانانو ته بنسټيز حقوق همدې سپېڅلو انسانانو ورکړي دي؛ خو دا خلک د هغوی هيڅ يادونه نه کوي، د بنسټيزو حقوقو تاريخ بيانولو پروخت دا خلک هغوی ته يوازې اشاره هم نه کوي، او په دې تړاو يوازې د "ميګناکارټن" يادونه کوي، ګواکې په نړۍ کې تر ټولو لومړی د بنسټيزو حقوقو اعتراف په دې اسنادو کې شوی دی او له دې نه مخکې په هرځای کې انسان د بنسټيزو حقوقو څخه بې برخې شمېرل کېږي.

نن د نړۍ ټول سيکولر جمهوريتونو د همدې حقوقو ناري وهي، خو په دې کې چې د انسان د آزادۍ يادونه کېږي هغه هيڅکله نا ټاکلې او نا مشروطه آزادي نه ده. د مثال په توګه په دې کې شک نشته چې انسان ته د خپلې رايې د ځرګندولو حق ورکړل شوی دی؛ خو د دې مانا دا نده چې څوک دې د يو چا پرمال او ځان د تېري تبليغات پيل کړي. اوس پوښتنه دا ده چې کله دا آزادي په عامه او مطلقه مانا نه اخېستل کېږي؛ نو هغه کوم بنديزونه دي چې بايد پر دې آزادۍ باندې ولګول شي؟ او په څه ډول معيار بايد بنديزونه وضع کړل شي؟ او څوک به دا پرېکړه کوي چې پر پلانی ازادي باندې پلانی بنديز سهي دي او پلانی غلط دی؟ ځرګنده ده چې په بې دينه جمهوريتونو کې د دې پوښتنو ښکاره ځواب نشته، کله دا د قانون تابع کوي، کله يې د دولت له

[1]) البدايه والنهايه:۷/ ۴۶

عمومي پالیسیو یا د دولت د سلامتیا تابع گرځوي، او کله بیا وایي چې د ازادۍ د عامه اخلاقو د توازن تابع دي. خو څرګنده ده چې قانون وي، که عمومي پالیسي او یا اخلاقي توازن، په بې دینه ټولنو کې د دې تعین هم همدا انسان کوي؛ نو ځکه دا پوښتنه هر وخت پرخپل ځای پاتي ده چې دا انسان به په کومو بنیادونو او کوم معیار باندې دا سې قوانین یا عمومي پالیسي او اخلاقي توازن ټاکي؟ له همدې امله ازادي د همدې شیانو تابع گرځولو موخه له دې پرته بله نده چې کوم انسان د دې آزادیو د ورکولو دعوه کړې ده، هغه د دې حدود او بندیزونه په خپل لاس کې ساتلو سره دا لار جوړه کړې ده چې نورو ته په کوم لاس ازادي ورکړې ده په بل لاس چې دی څه غواړي هغه بېرته اخېستلای شي.

حقیقت دا دی چې د نړۍ یوه فلسفه هم نشي کولی پر دې ازادیو باندې د قیودو او بندیزونو لګولو سهي معیار وړاندې کړي. د دې یوازنۍ لاره دا ده چې چا انسان پیدا کړی دی، او د انسان په زړه کې یې رایه پیدا کړې ده د هغه څخه دې وپوښتل شي چې کوم ډول ازادي سهي ده او کوم ډول ازادي غلطه؟ نو ازادي د کومې انساني فلسفې یا قانون کار نه دی، بلکې دا کار باید د الهي وحیې او خدایي شریعت تابع وگرځول شي، کومه ازادي چې د وحیې سره سمه وه هغه به سهي وي او کنه نو غلطه به وي.

دا هغو بنسټیزو حقوقو ته یوه لنډه کتنه وه چې په نړۍ کې د دستورونو یوه مهمه برخه گڼل کیږي.

له دې وروسته په دستور کې د اختیاراتو د بېلتون نظریې سره سم د مقنّنې، اجرائیې او قضا دندې او واک او د هغو منځته راتلو لارو چارو یادونه کیږي. د مقنّنې یادونه ما مخکې تاسو ته وکړه؛ نو ځکه یې دوهم ځل یادونې ته اړتیا نشته. خو د اجرائیه قوې پېژندنه اړینه بولم.



## اجرائیه قوه

اجرائیه قوه دوه ډولونه لري: "سیاسي اجرائیه "او "غیر سیاسي اجرائیه"

۱- سیاسي اجرائیه د حکومت هغه چارواکو ته وایي چې د ټاکنو په مټ واک ته رسیږي، او هغه په رسمي توگه مامور نه وي ؛ خو د ټاکنو په مټ واک ته رسیږي او د ټاکنو تر مودې پورې خپله دنده پرمخ بیایي. لکه لومړی وزیر او د وزیرانو کابینه. دېته سیاسي اجرائیه وایي.

۲- غیر سیاسي اجرائیه رسمي چارواکو ته وایي، لکه د وزارتونو سیکرتران، د محکمو مشران، دوی ته د حکومت له خوا معاش ورکول کیږي، له ټاکنو سره د دوی هیڅ تړاو نه وي، هر حکومت چې راځي دوی خپلې دندې پرمخ بیایي. په دستور کې د دې دواړه ډوله اجرائیو په اړه قوانین او اصول لیکل شوي وي چې حکومت به څه ډول جوړیږي؟ او اختیارات به یې څومره وي؟ او رسمي مامورین به پر کوم بنسټ ټاکل کیږي؟ د دوی د ماموریت شرطونو کوم اصول دي؟ دا ټولې خبرې په دستور کې خوندي وي.

په عامه توگه رسمي چارواکو ته دا قانوني ساتنه ورپه برخه کیږي چې هغوی به له کوم معقول عذر پرته له دندې څخه نه گوښه کول کیږي، نو ځکه سیاسي حکومتونه ځي راځي خو دا مامورین پر خپل ځای پاتې وي، او کله ناکله خو پر حکومت باندې د دوی عملي فشار دومره ټینګ وي چې د حکومت پر پرېکړو همدا اغیز کوي. له همدې امله په دې صورت کې د دوی د اغیز او نفوذ له امله په شاهي افسر او شاهي نوکر سره تعبیر کیږي لکه په انگریزي ژبه کې چې ورته بیوروکراسي وایي.

## قضايي قوه

د قضا ازادي هم د جمهوريت له بنسټيزو اصولو څخه ده. له همدې امله په دستور کې دا تصويب کيږي چې د عدليې غړي بايد څه ډول ونومول شي؟ د دوی ټاکنه به څوک کوي؟ د دوی د دندې شرطونه کوم دي؟ او څه ډول بايد دوی له رسمي فشار څخه ازاد وساتل شي؟ په عامه توګه په جمهوري نظامونو کې د دې خبرې هڅه ډېره کيږي چې د قاضيانو په ځانګړې توګه د سترې محکمې د قاضيانو ټاکنې بايد د اجرائيې له فشار څخه ازادې وي. له همدې امله په امريکا کې د سنا مجلس منظوري لازمي ده، هلته د سنا مجلس له منظورۍ پرته د قاضي ټاکنه نشي کېدلی. خو په نورو هيوادونو کې بيا داسې نه وي، بلکې په نورو هيوادونو کې لومړي وزير او يا ولسمشر هم د قاضيانو ټاکنې کولی شي. خو دا خبره منل کيږي چې کوم قاضي ټاکل کيږي د هغه د ګوښه کولو حق د اجرائيې سره نه وي، تر څو کوم قاضي د اجرائيې پرضد پرېکړه کوي چې هغه په خپله پرېکړه کې ازاد وي او دا وېره نه وي چې اجرائيې دی ګوښه کړي.

نو د قاضي د ګوښه کولو بېلې بېلې لارې په دستورونو کې موجودې دي. په امريکا کې قاضي د سنا جرګې له لارې ګوښه کيږي، په پاکستان کې د سترې محکمې له خوا يوه شورا جوړه کړل شوې ده ، د هغې موخه داده چې د قاضي پرضد تورونو ته غوږ کېږدي او د هغو پلټنه وکړي، که تور سهي وي؛ نو دوی د قاضي ګوښه کولو واک لري. او دغه راز د دې خبرې کوښښ هم کيږي چې د دوی د ساتنې لارې چارې ولټوي.

دا رنګه په دستور کې په عامه توګه د پوخ په اړه قوانين او اصول هم خوندي وي، او په هغه کې دا هم وي چې د حکومت لګښتونه بايد پر کوم بنسټ وي؟ او بوديجه څوک جوړولای شي او د دې څه اصول دي؟



# څلورم څپرکی

## په نړۍ کې عملي جمهوري نظامونه

د دستور له پېژندلو وروسته اوس د جمهوريت پېژندنې په لړ کې وروستۍ موضوع داده چې دا نظام څه ډول په مختلفو هېوادونو کې پلی شوی دی؟ غواړم په دې اړه دلته د ځينو هيوادونو نظامونه در وپېژنم.

(۱) برتانيه (۲) امريکا (۳) فرانسه (۴) سويټزرلېنډ

د دې هېوادونو نظامونه پېژندل ځکه اړين دي چې د جمهوري نظام په خپلولو کې د دې څلورو هيوادونو تګلارې نړيوال نوم لري او په همدې څلورو هېوادونو کې جمهوريت ځواکمن ګڼل کيږي.

### د برتانيې پارلماني نظام

له دې امله چې موږ ډېر کلونه د برتانيې غلامان پاتې شوي يو ، او دلته زموږ په هيواد (پاکستان) کې تل په هر شي کې د برتانيا تقليد کيږي ، او زموږ سياسي نظام هم د برتانيا په څېر پر پارلماني بنسټ ولاړ دی ؛ نو لومړی له برتانيې پيل کوو. د برتانيې جمهوري نظام ته پارلماني نظام (Parliamentary System) وايي او زموږ په هيواد کې چې کوم دستور جوړ کړل شوی دی هغه هم د دوی په پيروي کې پارلماني دستور دی.

د پارلماني نظام مطلب دادی چې په هېواد کې اصلي واکمن پارلمان دی؛ خو عجيبه داده چې د جمهوريت نظريه چې بنسټ يې د واک پر بېلتون ولاړ دی، مانا دا چې مقنّنه قوه، اجرائيه قوه او قضا هر يوه بايد بېله بېله وي؛ خو د برتانيا په پارلماني نظام کې مقنّنه او اجرائيه دواړه په يو بل کې ګډ کړل شوي دي، ځکه چې پارلمان مقنّنه ده او اجرائيه قوه هم له پارلمان نه جوړيږي او همدا پارلمان واکمني کوي. دا سهي ده چې هلته قضا بېله ده؛ خو مقنّنه او

اجرائیه له دې امله د یوه بدن غړي دي چې د دواړو سرچینه او اصل پارلمان دی، همدا پارلمان قانون جوړوي او له همدې څخه حکومت او کابینه جوړیږي ، لومړی وزیر د پارلمان مشر وي او کابینه هم له پارلمان څخه ټاکل کیږي، پارلمان چې کله وغواړي کولی شي لومړی وزیر او کابینه گوښه کړي او بله کابینه جوړه کړي.

د دې نظام پر بنسټ د دولت مشر بېل دی او د اجرائیه قوې مشر بېل دی، د برتانیې په قانون کې د دولت مشر پاچا دی چې کله ورته د صدر نوم هم ورکول کیږي؛ خو اوس هلته د دولت مشره ملکه ده او د اجرائیې مشر لومړی وزیر دی.د دولت مشر او د اجرائیه مشر ترمنځ د دوی په فکر دا توپیر له دې امله دی چې د اجرائیه قوې مشر د یو گوند استازی وي، هغه د خپل گوند گټې او کړنلاره نافذوي. د دې برعکس د دولت مشر د گوند له مشر نه هم لوړ وي او د دوی څارنه کوي او د اړتیا پر وخت حکومت ته د مشورې په توگه لارښووني هم کوي. همدا لامل دی چې کله یوه کابینه یا حکومت پای ته رسیږي؛ نو چې بل گوند په پارلمان کې زیاتې رایې ترلاسه کړي، د دولت مشر په توگه پاچا یا ملکه هغه ته بلنه ورکوي چې خپل حکومت جوړ کړي ، د پاچا یا ملکې رول په عملي توگه لږ رسمي وي او زیاتره ټولنیزه او کولتوري بڼه لري، یوازې دومره کولی شي اجرائیې ته مشوره ورکړي چې تاسو کومه پالیسي جوړول غواړئ هغه مناسبه نه ده. په دې اړه د ملکې "ویکټوریا " هغه خبره ډېره مشهوره ده چې لومړي وزیر ته یې په مخامخ وینا کې ویلي و چې: "ته چې هرڅه غواړې زه مجبوره یم پر هغه لاسلیک وکړم، او لاسلیک درته کوم؛ خو زه تاته په زغرده وایم چې دا کار دې سهي نه دی ".

په برتانیه کې شاهي نظام پر میراثي بنسټ ولاړ دی، په دې کې د ټاکنو هیڅ دخل نشته، او زیاتره خلک د شاهي نظام د ساتلو ملاتړ کوي؛ خو یو شمېر کسان بیا د شاهي نظام د ختمېدو غوښتنه کوي او پرځای یې د یوه جمهوریت



د جوړېدو لپاره په مبارزه بوخت دي ؛ خود شاهي نظام ملاتړي دلیل وړاندې کوي چې شاهي کورنۍ د برتانیا یوملي سمبول او ملي اداره ده، او دوی له پخوا نه د خپلو دودیزو کړنو سره مینه لري او تر هغه وخته د خپلو پخوانیو ادارو د ساتلو کوښښ کوي ترڅو ورته کوم خنډ جوړ نه کړي ، همدا لامل دی چې په اروپا کې د امریکا په څېر د لوړو ودانیو دود ډېر نشته؛ نو ترڅو چې د "بگ بین " گړۍ پر خپل حال پاتې وي، ملکه به هم پرخپل حال وي او سلطنت به هم پر خپل حال وي. د دوی بل استدلال دا دی چې موږ ولې پاچا گوښه کړو چې هغه زموږ مخ ته هیڅ ډول خنډونه نه را ولاړوي. هلته تر اوسه داسې لیکل شوی قانون نشته چې ملکه د پارلمان له خوا پر کوم جوړ شوي قانون د لاسلیک کولو څخه د انکار پروخت لاس لیک ته اړباسي، خو د ۳۰۰ کلونو راهیسې همدا دود دی چې ملکه پر قانون په لاسلیک کولو پابنده وي او تر اوسه داسې نه دي شوي چې ملکې له لاسلیکه تېښه کړې وي، او له دې امله چې ملکه د پارلمان په وړاندې بیخي بې اغیزه ده؛ نو هغوی پوهیږي چې ملکه زموږ په وړاندې هیڅ خنډ نه دی. په دې کې شک نشته چې د هغې په پالنه کې لکښتونه کیږي؛ خو دوی وایي چې په دې کې زموږ د بودیجې یوه کمه برخه لگښت کیږي؛ نو که یو دود چلیدی شي، ودې چلول شي. پر همدې بنسټ دوی پاچایي پر خپل حال ساتي او یوازې دا نه چې پر خپل حال یې ساتي بلکې د هغې قدر هم کوي، او د یو مشر په توگه دوی د هغې داسې قدر کوي چې دا زموږ له پاسه یو مشر ناست دی او د ټولو د امیدونو یوه سرچینه ده، وزارت خو بدلیږي را بدلیږي خو دی تل پر خپل ځای وي؛ نو ځکه یې د وزیر په پرتله تجربې هم ډېرې وي او د نومورې د تجربو په رڼا کې کله نا کله د ده له مشورو هم گټه پورته کیږي، او په زړه پورې خو دا ده چې که څه هم دی بې اغیزه پاچا دی؛ خو ټول کارونه د ده په نوم کیږي، که کوم قانون جوړیږي هغه د برتانیې د تاج په نوم جوړیږي او د برتانیا تاج د همدې پاچا د ادارې نوم دی. هر قانون د دوی له خوا منل کیږي. مخکې داسې و چې لږترلږه ملکې به پر قانون لاسلیک کاوه؛ خو

اوس د لاسلیک لړۍ هم ختمه شوې ده، ملکې یو استازی ټاکلی دی چې د برتانیا تاج له خوا لاسلیک کوي او هغه لیکي چې دا قانون د برتانیا تاج په امر جاري کړل شوی دی، دې اداري ته دومره سپیڅلتیا ور په برخه ده چې خلک یې په اړه یو مشهور متل کوي، وایي "د برتانیې پاچا نه مړ کیږي". له پاچا نه مراد د پاچا اداره ده؛ نو چې کله یو پاچا مړ شي، سمدلاسه بل پاچا شي او په دې اړه دا متل هم ډېر یادیږي چې: "پاچا مړ شو، پاچا دې ژوندی وي" په لومړي پاچا سره فرد ته اشاره ده او په دوهم سره اداري ته او ځیني کارونه خو یوازې د پاچا د نوم ساتلو د پاره کیږي، لکه د لمانځنو مشري، د غونډو مشري یا د خپلو ریاستونو مشرانو ته لیکونه لیږل چې دا ټول یو ډول دودیز او رسمي کارونه دي په عملي توګه د پاچا هیڅ اختیارات نشته.

## برتانوي پارلمان

برتانوي پارلمان په دوو جرګو وېشل شوی دی، یوه دارالعوام (د عوامو مجلس) چې په انګریزي ژبه کې ورته هاؤس آف کامنز ( House of Commons ) وایي او دوهمه دارالامراء (د مشرانو مجلس) چې هاؤس آف لارډز (House of Lords ) ورته وایي. دارالعوام داسې دی لکه زموږ په هیواد کې ولسي جرګه، د دې جرګې غړي هم د عامه ټاکنو له لارې ټاکل کیږي او همدا دارالعوام د خپلو غړو څخه د اجرائیه قوې مشر یاني لومړی وزیر ټاکي.

په عامه توګه چې په جرګه کې د کوم ګوند تر ټولو زیات غړي وي د هغه ګوند مشر ته ملکه بلنه ورکوي چې حکومت جوړ کړي، که نوموړی د جرګې دزیاتره غړو باور تر لاسه کړي او په حکومت جوړولو بریالی شي؛ نو بیا لومړی وزیر ټاکل کیږي او بیا هغه د خپلو وزیرانو ټاکنې کوي. وزیران په دوه ډوله دي: یو هغه چې یوازې منسټر یاني وزیر وي او دوهم هغه وزیر چې د کابینې غړی هم وي، لومړی وزیر چې د کومو وزیرانو انتخاب وکړي په هغو



کې شاو خوا ۷۰ وزیران وي او په ۷۰ وزیرانو کې نوموړی یوازې له ۲۰ یا **۲۵** وزیرانو څخه کابینه جوړوي او په حکومتي چارو چلولو کې د همدې کابینې بنسټیز رول وي او پاتې نور وزیران د کابینې غړیتوب نه لري او نه هم په غونډو کې د ګډون حق لري، که څوک په ځانګړي ډول را وغوښتل شي هغه بېله خبره ده. د کابینې غړی د خپل وزارت وزیر هم وي، خو په مجموعي توګه د هیواد چارو په چلولو کې لومړی وزیر تر ټولو زیات برلاسی وي ځکه چې دی د کابینې د غړو په ګډه مشوره د حکومت مهمې پرېکړې کوي، او د کابینې یو غړی که د کوم وزارت وزیر وي په کابینه کې د وړاندې کېدونکو هر ډول مسئلو په اړه د رایې ورکولو حق لري که هغه د نوموړي په وزارت پورې تړاو لري او که نه. او کوم وزیران چې د کابینې څخه بهر وي د هغوی دنده یوازې د خپلو وزارتونو پورې محدوده وي، د حکومت له ټولیزو چارو سره د هغوی هیڅ تړاو نشته. زموږ په حکومتي نظام کې داسې وزیرانو ته د هیواد وزیر ویل کیږي او د کابینې په پرېکړو کې د ده لاس نه وي.

د برتانیې په پارلمان کې د سپیکر (ویاند) تر ټاکلو وروسته، نوموړی د غونډو مشري کوي، او د هغه ښي اړخ ته حکومتي غړي کښېني او ګس اړخ ته یې د اپوزیسیون غړي کښېني. تاسو اوریدلي چې پلانی ګوند ښي اړخی دی او پلانی ګوند کیڼ اړخی دی، دا دواړه اصطلاحات هم د همدې څخه اخیستل شوي دي. مخکې چې به د پانګه وال نظام پلوي ګوندونه ول هغوی به په حکومت کې وو؛ نو ښي اړخ ته به کښېناستل او د سوسیالیزم پلوي ګوندونه به کیڼ اړخ ته کښېناستل، چې له همدې امله به د پانګه وال نظام پلوي ګوندونه ښي اړخي او د سوسیالیزم نظام پلوي ګوندونه ګیڼ اړخي بلل کېدل، که هغوی به حکومت ونیو بیا به هم کیڼ اړخي بلل کېدل، اوس دا اصطلاح هم شته چې کوم ګوندونه زاړه پالي دي او د پخواني طرز حکومت غواړي هغوی ته ښي اړخي وایي او کوم چې په اوسني نظام کې د بدلون غوښتونکي دي هغوی ګیڼ اړخي بلل کیږي.

## قانون جوړونه

په برتانیا کې د قانون جوړولو لپاره "دارالعوام" (د عوامو مجلس) بنسټیز اهمیت لري، د چارواکو له خوا قانون وړاندې کېږي او بیا دا قانون په "دارالعوام" کې درې ځله لوستل کېږي.

۱: په لومړي ځل لوستلو کې یوازې د قانون متن ویل کېږي، تر څو خلک پرې خبر شي، دغه راز په دې لوستلو کې د جرګې غړي د هغه قانون په اړه خپلې عامه تبصرې وړاندې کوي.

۲: په دوهم ځل لوستلو کې همدا قانون کمیسونونو ته سپارل کېږي چې پر دې باندې ماهرانه تبصرې وکړي چې په قانون کې کوم شی سهي دی او کوم یو د بدلون او سموني اړتیا لري. په جرګه کې دننه د معیار جوړولو او انتخابولو او نور بېلا بېل کمېسونونه شته دي، دغه کمېسونونه له سوچ او فکر وروسته جرګې ته خپل راپورونه وړاندې کوي او بیا د همدې راپورونو په رڼا کې خلک د قانوني سموني وړاندیزونه کوي چې په دې کې باید پلانې سمونه وشي. دې ته دوهم ځل لوستل ویل کېږي. کوم غړي چې د سموني وړاندیز وکړي پر هغې باندې د رایو شمېرنه کېږي او د اکثریت غړو په رایه له سموني سره یا پرته له سموني د قانون متن منل کېږي.

۳: په دریم ځل لوستلو کې یوازې د لفظي غلطیو سمونه کېږي. په دې کې کومه بله سمونه نه وړاندې کېږي او له دریم ځل لوستلو وروسته د قانون دا مسوده منل شوې شمېرل کېږي، د یادونې ځای دا دی چې د قانون کومه مسوده په جرګه کې تر څېړنو لاندې وي تر هغه وخت دې ته "بیل" ویل کېږي او چې کله و منل شي؛ نو بیا ورته "نافذ شوی قانون" وایي. لنډه دا چې په "دارالعوام" کې تر درې ځلو لوستلو وروسته د همدې جرګې له خوا دا مسوده منل شوې شمېرل کېږي او بیا "دارالامراء" ته وړاندې کېږي.



## دارالامراء

دارالامراء یوه بله جرګه ده چې په انګریزي ژبه کې ورته "**House of Lords**" (د مشرانو مجلس) وایي، دا یوه عجیبه میراثي جرګه ده چې په برتانیه کې له پېړیو راهیسې روانه ده. د دې جرګې زیات شمېر غړي میراثي دي، مانا دا چې دوی نه ټاکل کېږي بلکې له پېړیو مخکې چې څوک د دې جرګې غړي ټاکل شوي و د هغه تر مړینې وروسته د هغه زوی د دې جرګې غړی دی، بیا چې زوی مړ شي بیا د هغه زوی غړیتوب تر لاسه کړي، لکه څرنګه چې پاچایي میراثي وي دغه راز د "دارالامراء" غړیتوب هم میراثي دی او له دې امله چې په عیسایي مذهب کې مېرمن میراث نشي وړلی؛ نو ځکه مېرمن د دې جرګې غړیتوب نشي تر لاسه کولای.

د دې مجلس یوه برخه هغه ده چې غړي یې د ملکې له خوا نومول کېږي، ملکه دا حق لري چې هر چا ته د "دارالامراء" غړیتوب ورکولای شي او د جرګې غړي ته "**peer**" وایي، او د دوی شمېر هم نا محدود دی. په عامه توګه په دې برخه کې هغه څوک نومول کېږي چې د کوم ځانګړي فن ماهر وي او د دوی په اصطلاح "ټیکنوکریټ" ورته وایي، په دې برخه کې په ځانګړي توګه د قانون پوهانو ته ډېر اهمیت ورکول کېږي ځکه چې همدا جرګه د محکمې وروستی وړاندیز ځای هم ګڼل کېږي، او بیا دواړه ډوله غړي د مرګ تر وروستۍ شېبې د همدې جرګې غړي وي، ځکه خو ویل کېږي چې دا جرګه د راتللو دروازه ده او د تللو نه ده.

په اصل کې قاعده داسې وه چې کوم قانون په "دارالعوام" کې و منل شي هغه به بیا "دارالامراء" ته ځي او له هغه څخه یې هم منل ضروري دي، او که "دارالامراء" یې و نه مني؛ نو هغه قانون نافذ نه دی بلکې د بیا کتنې لپاره به بېرته "دارالعوام" ته لېږدول کېږي. کله خو داسې هم کېږي، ملکه پوهېږي

چې د دارالامراء غړي انکار وکړي چې موږ دا قانون نه منو، او ملکه غواړي چې دا قانون ژر ومنل شي؛ نو بيا د "دارالامراء" غړو ته گواښنه وکړي چې که دا قانون مو ونه مانه؛ نو زه به ستاسو پرځای نور غړي و ټاکم، مانا دا چې تاسو به گوښه کړم او ستاسو پرځای به همدومره نور غړي مقرر کړم او دا قانون به په هغوی و منم، ځکه چې د دې مجلس د غړو شمېر ناټاکلی دی، ملکه چې څومره وغواړي هغومره ټاکلای شي، له همدې امله دا په نړۍ کې يوه عجيبه او بې ساري اداره گڼل کيږي، ويل کيږي چې د "دارالامراء" ځيني داسې غړي هم شته چې تر اوسه يې په غونډو کې گډون نه دی کړی. په پيل کې دې مجلس ډېر اختيارات درلودل، اوس د نه پاملرنې له امله دا اداره ډېره ټيټه پاتې شوې ده او کوم ځانگړي اختيارات نه لري، پخوا دې ادارې کولی شول يوه مسوده وځنډوي؛ خو اوس داسې نوی قانون جوړ شوی چې تر يو کال پورې "دارالامراء" کوم بل ونه منې؛ نو د يو کال تېرېدو وروسته دا بل په خپله منل شوی شمېرل کيږي، په دې سره د مسودې ځنډولو حربه هم د دوی له لاسه ووتله.

په دې مجلس باندې په عامه توگه دا نيوکه کيږي چې دا يوه بې گټې اداره او پر هيواد يو اضافي بار دی، له همدې امله د دې ختمولو وړانديز هم شوی و؛ خو د برتانيې خلک وايي چې موږ د دې ادارې له خبرو خوند اخلو، ځکه چې د برتانيې خلک دود پالي او تاريخ پالي دي. د دې غړو که نور کار نه وي؛ نو مطالعه خو ښه کولی شي او کله چې د مطالعې د پاره "دارالامراء" ته ورځي او بحث کوي؛ نو د دوی بحث ډېر په زړه پورې وي او په دې سره د دوی معلومات او تجربې زياتيږي. د همدې بحثونو له امله ولس دوی پر خپل حال ساتي او په دې کې شک نشته چې د "دارالامراء" خبرې او ويناوې ډېر علمي او ادبي ارزښت لري.



د برتانيې په سياسي نظام کې په زړه پورې داده چې د دوی کوم تحريري دستور نشته. د بېلگې په ډول دا يو دود دی چې ملکه به د "دارالعوام" او "دارالامراء" له خوا پر منظور شوي قانون لاسليک کوي. خو داسې هيڅ قانون نشته چې ملکه لاسليک کولو ته اړباسي يا دا چې هغه د لاسليک کولو څخه انکار نشي کولی. دارنگه دا خبره هم په دوی کې دود ده چې اکثريت لرونکي گوند ته د حکومت جوړولو بلنه ورکول کيږي، په قانون کې د دې کومه تحريري ماده نشته. دا يوازې دود او رواج (Convention) دی، او په برتانويانو کې داسې دود قانوني حيثيت لري. لنډه دا چې په برتانيه کې کومې خبرې له قانون سره اړه لري هغه ټولې د دود او کلتور پر بنسټ راروانې دي او دا دومره ټينګ دود دی چې د جوړ کړل شوي دستور څخه کم نه دی. محکمې د همدې دود پر بنسټ پرېکړې کوي. د دستور په اړه يو کم شمېر قوانين دي چې پارلمان منظور کړي دي. لکه بنيادي حقوق (Bell of rights) خو په مجموعي توگه کوم ډول دستور چې په نورو هيوادونو کې وي هغسې تحريري مدون دستور په برتانيه کې نشته او له دې امله چې دستور مدون نه دی، او د برتانيې پارلمان لوړوالی خپل عروج ته رسيږي؛ نو ځکه د پارلمان جوړ شوی قانون او يا د پارلمان کوم اقدام څوک په محکمه کې نشي چيلنج کولی. که پارلمان دا قانون منظور کړي چې لومړی وزير حق لري پرته له کوم لامله د چا د نيولو امر ورکړي؛ نو څوک يې په محکمه کې نشي چيلنج کولی چې دا قانون د بنيادي حقوقو خلاف دی. نو ځکه قاضي اړ دی چې دا پرېکړه ومني. خو په امريکا کې بيا نظام بل ډول دی، هلته د بنسټيزو حقوقو خلاف قوانين په محکمه کې چيلنج کېدلی شي. خو سره له دې چې هيڅ قانون د بنسټيزو حقوقو سره د ټکر له امله په محکمه کې د چيلنج حق نه لري، ويل کيږي چې د برتانيې په ټول تاريخ کې داسې قانون نه دی راغلی چې د هغه په اړه عام شکايت وشي چې دا د بنسټيزو حقوقو سره ټکر لري او موږ پر دې

نېوکه هم نشو کولی.[۱] او په امریکا کې ډېر داسې قوانین منځ ته راغلي دي چې له چیلنج کولو وروسته ختم شوي دي.

په دې هیواد کې تل د اپوزیسیون او واکمن ګوند ترمنځ ناندریځ بحثونه کیږي. که لیبرال ګوند واکمن شي؛ نو محافظه کار (**Conservative**) ګوند د دوی مخالفت کوي او که محافظه کار ګوند واکمن شي؛ نو لیبرال یې مخالفت کوي. خو دواړه ګوندونه د خپل تاوتریخوالي پروخت د خپلو دودونو پوره ساتنه کوي، دواړه د یوبل قدر کوي او یو له بل سره خپلې دودیزې اړیکې ښې پالي. له همدې امله برتانیه د پارلماني نظام امام ګڼل کیږي. دا د برتانیې د حکومتي نظام لنډه پېژندنه وه.

په نړۍ کې ډېرو هیوادونو پارلماني نظام خپل کړی دی، زموږ په هیواد (پاکستان) کې هم سیاسي ګوندونه دا نظام غوره بولي، او کوښښ کوي دبرتانویانو تقلید وکړي، سره له دې چې په دې نظام کې ډېرې داسې خبرې شته چې یوله بل سره ټکر لري. په دې نظام کې هغه ګوند حکومت جوړوي چې په پارلمان کې د اکثریت غړو باور ترلاسه کړي. او د دې باور ترلاسه کولو دوه صورتونه دي: لومړی دا چې کوم ګوند په جرګه کې قاطع اکثریت، یاني یوپنځوس غړي ولري؛ نو په دې حالت کې د دې ګوند له خوا حکومت جوړول لازمي دي. اوس همدا پارلمان مقنّنه هم ده، او اجرائیه هم د همدې ګوند له افرادو جوړه وي. نو پایله دا شوه چې مقنّنه او اجرائیه دواړه عملا یوه قوه شوه. ځکه چې د دې ګوند اکثریت دی، او اکثریت لرونکی ګوند حکومتي چاري پرمخ بیایي، او کومه جرګه چې د دوی پالیسي ته کتنه کوي هلته د واکمن ګوند اکثریت غړي دي؛ نو ځکه پارلمان عملا د دوی د کارونو ملاتړ

[۱] خو دا پخوانی خبره ده. د ۱۱ ستمبر له پېښې وروسته داسې قوانین راغلل چې په هغو کې حکومت اختیار لري د ترهګرۍ په شک هرڅوک ونیسي.



کوي، او اکثریت لرونکی ګوند چې کومه پالیسي غوره کوي د پارلمان له خوا د هغې دبدلولو هیڅ لاره نشته، ځکه چې هلته هم د دوی اکثریت دی.

دوهم صورت دا دی چې په جرګه کې د یو ګوند قاطع اکثریت نه وي، یاني داسې یو ګوند نه وي چې غړي یې په پارلمان کې یو پنځوس سلنه رایې تر لاسه کړي؛ نو په دې صورت کې به مخلوط حکومت جوړیږي، مانا دا چې ټول ګوندونه به سره یو کیږي او حکومت به جوړوي، چې په اصطلا ایتلافي حکومت (**Coalition Government**) ورته وایي. په دې صورت کې داسې کیږي چې په پارلمان کې د کوم ګوند غړي تر نورو زیات وي، خو یو پنځوس سلنه نه وي؛ نو دوی اړ دي چې د نورو ګوندونو یا خپلواکه کاندیدانو ملاتړ تر لاسه کړي. د مخلوط حکومت جوړولو پروخت کله نا کله ډېرې عجیبه او نادرې پېښې کیږي. د بېلګې په ډول دوه ګوندونه دي چې د دواړو ترمنځ تل تضاد وي او یو له بل سره جګړې کوي او په نظرونو کې یې هم د ختیځ او لویدیځ هومره واټن وي؛ خو دواړو دومره رایې نه دي ترلاسه کړې چې قاطع اکثریت وګټلی شي. نو له دې پرته بله لار نه وي چې دواړه جګړه کونکي او متضاد ګوندونه یو له بل سره مرسته وکړي او حکومت جوړ کړي. اوس یو ګوند ختیځ ته زور وهي او بل لویدیځ ته، او که دواړه یو له بل سره مرسته هم وکړي؛ نو وخت ناوخته د ضدینو اجتماع راشي ځکه چې د دواړو پالیسي یو له بله توپیر لري. نو داسې حالت بیا له دوو صورتونو خالي نه وي، یا به یو د بل له پاره خپله پالیسي پرېږدي، یا به پر دې سلا کیږي چې پلانۍ خبره به ته پرېږدې او پلانۍ به زه پرېږدم. خو لنډه دا چې د خپلو اصلي موخو څخه تېرېدو پرته ایتلافي حکومت نشي جوړېدلی.

همدا لامل دی چې په ایتلافي حکومت جوړولو باندې ډېر وخت وځي، کېدای شي حکومت جوړ شي؛ خو هره شېبه یې د ماتېدو شونتیا وي. او د همدې لپاره د محلي سازشونو یوه لړۍ پیل شي. په دې تړاو د اټالیا مثال

ټولو ته معلوم دی چې هلته له (**۱۹۴۵**ز) کال څخه نېولې تر اوسه درې سوه (**۳۰۰**) حکومتونه بدل شوي دي ځکه چې په هرو څو ورځو کې په جرگه کې د ملاتړ بڼه بدلیږي او هیڅ گوند قاطع اکثریت نشي ترلاسه کولی او بیا چې کله حکومت جوړ شي؛ نو داسې به ووایو چې د لومړي وزیر د گوښه کولو د پاره یوازې د نه باور غږ هم کافي دی، په دې اړه کومه بده وبڼا یا تور لگول ضروري نه دی چې لومړي وزیر پلانی کار غلط کړی دی؛ نو هغه دې گوښه کړل شي، بلکې د دې غږ مانا دا ده چې نور زموږ خوښه نه ده او موږ تا نه غواړو. په برتانیه کې رښتیا هم چې دا نظام په ډېر استحکام سره وچلید ځکه چې هلته د خلکو سیاسي شعور ډېر پیاوړی دی او اټکل یې له دې هم کېدلی شي چې د دوی مدون دستور نشته، یوازې د دود او کلتور له مخې هغوی کار کوي او هلته د دې دود د ماتولو هیڅ تصور نشته.

## د امریکا ریاستي نظام

برتانوي حکومتي نظام ته پارلماني نظام وایي. د دې په مقابل کې دوهم لوی نظام ته ریاستي نظام وایي، او دا نظام په امریکا کې چلیږي، د دې نظام ځانگړتیاوې له پارلماني نظام څخه ډېرې بېلې دي. لومړی دا خبره زده کړئ چې د امریکا قانون وفاقي دی او د برتانیې نظام بیا وحداني دی، او دوهم لوی توپیر یې دا دی چې په برتانیه کې د واک بېلتون نظریه چې د جمهوریت بنسټ گڼل کیږي په بشپړه توگه عملي نده. لکه مخکې مو چې یادونه وکړه هلته مقنّنه او اجرائیه قوې یو له بل سره څومره تړلې دي؛ خو په امریکایي نظام کې بیا مقنّنه قوه، اجرایي قوه او قضایي قوه بېلې بېلې دي او درې واړه خپلواکه هم دي. د اجرائي قوې مشري ولسمشر کوي او مقنّنه چې کانگریس هم ورته وایي له دوو جرگو څخه تشکل شوې ده: (۱) د استازو جرگه (**House of Representatives**). (۲) د سنا جرگه (**Senate**). دریمه اداره بیا قضا ده



چې له دې درې واړو څخه بېله ده. ولسمشر د اجرائیه قوې مشري په غاړه لري او د ولسمشر ټاکل د مقنّنې، یا اسامبلۍ یا پارلمان او یا کانگریس له خوا نه کیږي، بلکې د نوموړي ټاکنه مخامخ کیږي او هلته د ټاکلو نظام هم ډېر پېچلی دی. د ولسمشر ټاکل دوه ځله کیږي، یو ډول ټاکنه د عامو رایو له لارې کیږي چې د مخامخ ټاکنو یوه بڼه ده، او دوهم ډول ټاکنه داسې کیږي چې د بېلابېلو ایالتونو د افرادو یوه گډه انتخاباتي اداره (**Electoral college**) جوړیږي او هغه د ولسمشر ټاکنه کوي. په دواړو ټاکنو کې له بریالیتوب پرته ولسمشر نه شي ټاکل کېدلی. لامل یې دا دی چې امریکا یو وفاقي دولت دی چې دوه پنځوس آیالتونه لري، له همدې امله ورته متحده ایالات وایي. نو له هر ایالت څخه دومره کسان په انتخاباتي اداره کې شاملیږي څومره چې یې همدا ایالت په کانگریس کې لري. بیا دا اداره ولسمشر ټاکي. د ولسمشر د ټاکلو د دې اهتمام لامل دا بیانیږي چې د امریکا ولسمشر د لویې واکمنۍ څښتن دی؛ نو باید هرڅوک ونه ټاکل شي بلکې داسې څوک وټاکل شي چې له ډېرو صلاحیتونو څخه برخمن وي او د ټولو آیالتونو استازیتوب وکړای شي. له همدې امله د دوو ټاکنو کړنلاره غوره کړل شوې ده.

په امریکا کې د ولسمشر لپاره اړینه ده چې نوموړی به امریکایي وي، **۳۵** کاله عمر به لري او لږ تر لږه **۱۴** کاله ژوند به یې په امریکا کې تېر کړی وي، دا درې بنسټیز شرطونه دي. کله چې له دې شرطونو سره سم ولسمشر وټاکل شي؛ نو د اجرائیه ټول واک ورته و سپارل شي. بیا دا ولسمشر خپله کابینه پخپله ټاکي. تاسو د برتانیې په نظام کې ولوستل چې کابینه د عوامي مجلس څخه ټاکل کیږي او هغه گوند حکومت جوړوي چې په مجلس کې د اکثریت رایې ترلاسه کړي، او لومړی وزیر هم له همدې غړو څخه کابینه جوړوي. خو په امریکا کې په ریاستي نظام کې د کابینې د غړي لپاره دا ضروري نده چې د کانگریس غړی دې هم وي، پخپله ولسمشر د کابینې غړو ټاکنه کوي، او

هغه هر يو د خپلې دندې مشري په غاړه لري، هلته دې غړو ته وزيران نه وايي بلکې سيکرټران ورته وايي، لکه د داخله چارو سيکرټر او د خارجه چارو سيکرټر، د خزانې سيکرټر، او داسې نور. د سيکرټر رتبه داسې ده لکه په نورو هېوادونو کې چې د وزير وي، يوازې په نوم کې توپير وي امريکايان ورته سيکرټر او نور ورته وزير وايي. او د دوی مجموعې ته کابينه وايي. خو په دې نظام او پارلماني نظام کې د کابينې په مقام کې هم توپير وي. په پارلماني نظام کې يو حاکم هيئت وي، او هغه هر ډول ستونزه په خپلو کې په مشوره حل کوي. خو دلته بيا د کابينې مقام بل ډول دی، د دوی مقام د ولسمشر د شورا په څېر دی چې په هغې کې ولسمشر د يو اړخيزې پرېکړې د ويتو کولو حق لري. يانې که ټوله کابينه يوه پرېکړه وکړي او د ولسمشر رايه بل ډول وي؛ نو دی کولای شي په اجرايي چارو کې د هغوی پرېکړه رد کړي او خپله پرېکړه نافذه کړي. دغه راز ټولې اجرايي چارې د ولسمشر په لاربښوونو تر سره کېږي، او ملکي او پوځي جنرالان هم دی ټاکي؛ خو قانون جوړونه او بنسټيزې پاليسۍ جوړول کانګريس ته وړانديز کول ضروري دي او له کانګريسه يې منظوري کول اړين دي.

د امريکا ولسمشر د پارلماني نظام برعکس د دولت او اجرائيه دواړو قوو مشر وي. په پارلماني نظام کې بيا د دولت مشر بېل وي چې هغه ته هم ولسمشر وايي او د اجرائيه قوې مشر بېل وي چې لومړی وزير ورته وايي.

په رياستي نظام کې ولسمشر او په پارلماني نظام کې د لومړي وزير د ګوښه کولو تګلارې هم يو له بل سره توپير لري، په پارلماني نظام کې که د اجرايي ځواک مشر يانې لومړي وزير پرضد د نه باور تحريک و چلول شي او هغه په جرګه کې ومنل شي؛ نو نوموړی پخپله ګوښه کېږي. بلکې په برتانيه کې خو داسې نظام دی چې که لومړي وزير يوه مسوده وړاندې کړه او د جرګې له خوا هغه رد کړل شوه يانې د جرګې زياتره غړو هغه رد کړه؛ نو لومړی وزير



او د هغه کابينه پخپله ګوښه ګڼل کېږي، که د نه باور تحريک و چلول شي او که نه ، که لومړي وزير د يو قانون د وړاندې کولو وړانديز وکړ او هغه رد کړل شو؛ نو د دوی دوديز قانون له مخې دی پخپله له دندې ګوښه ګڼل کېږي. او که نوموړی استفا ورنکړي؛ نو د دې قانون رد کول په خپل ذات کې د ده د ګوښه کولو حکم دی. نو هلته د لومړي وزير لپاره دا اړينه نه ده چې نوموړي دې کوم جرم کړی وي چې د هغه پر اساس دی له دندې ګوښه کړل شي بلکې د نوموړي د ګوښه کولو د پاره يوازې دا بس ده چې د ده د پارلمان باور تر لاسه نه کړی شو. د نه باور تحريک که په ښکاره وي او که په پټه او يا ضمني وي په دواړو صورتونو کې دا يو اجمالي زيان دی چې پر نوموړي راغلی دی، مانا يې دا ده چې موږ نور تا نه خوښوو نو ته ګوښه کړل شوې. د دې برعکس په رياستي نظام کې د اجرايي مشر يوازې په نه باور له دندې نه ګوښه کېږي. داسې نشي کېدلای چې په کانګريس کې د ولسمشر پرضد د نه باور کوم وړانديز وشي او هغه ومنل شي او په دې سره نوموړی ګوښه کړل شي، ځکه چې ولسمشر د کانګريس له خوا نه دی راغلی بلکې هغه مخامخ د ولس په رايه ټاکل شوی دی، نو د ده د ګوښه کولو يوازې يوه لاره ده چې هغې ته **impeachment** (مؤاخذه) وايي، د دې مانا دا ده چې د ده پرضد به کوم جرم ثابتيږي. د بېلګې په ډول ولسمشر يو خيانت کړی وي يا يې د هېواد د ګټو پرضد کوم باغيانه اقدام کړی وي، يا يې قانون تر پښو لاندې کړی وي؛ نو پر داسې مهال د ده پرضد د مؤاخذې تحريک وړاندې کېږي، او د هغې کړنلاره داده چې په ولسي جرګه کې به دا تحريک پيلېږي او د سنا مجلس به د قضا په حيث د ده پر ګوښه کولو بحث کوي، د سنا مجلس به کښېني او پر ولسمشر لګېدلي تورونه به تر غور لاندې نيسي او د هغو څېړنه به کوي ، او بيا به د ولسمشر دريځ اوري او د نوموړي له دريځ او ګواهانو له ګواهي اورېدو وروسته به دا پرېکړه کوي چې رښتيا هم نوموړی مجرم دی که څنګه؟ که

مجرم وي؛ نو احضار به کړل شي او که مجرم نه وي؛ نو اعلان به کوي چې پر ولسمشر لېګېدلي تورونه سهي ندي.

د امریکا په تاریخ کې یوازې یوځل د مؤاخذې تحریک چلول شوی دی، هغه هم چې کله د سنا مجلس ته وړاندې کړل شو؛ نو هغوی له د سیې څېړلو وروسته اعلان وکړ چې ولسمشر بې ګناه دی. د مرستیال ولسمشر او قاضیانو پرضد دغه ډول تحریکونه چلول شوي دي؛ خو تر اوسه یو ولسمشر هم پر دې بنسټ له دندې نه دی ګوښه کړل شوی. "نکسن" نږدې و چې د دې قضیې ښکار شي؛ خو نوموړي له وخت نه مخکې پخپله استفا ورکړه او ځان یې ترې بچ کړ.

لنډه دا چې د حکومتي چارو هرډول بهرنۍ پالیسي، د جګړې اعلان او نور ځومره حکومتي چاري چې دي هغه ټولي د ولسمشر پر غاړه دي، او د امریکا ولسمشر په نړۍ کې ډېر ځواکمن ولسمشر ګڼل کیږي. هو! خو دی په خپلو ټولو پالیسیو او قانون جوړونه کې کانګریس ته ځواب ورکونکی دی؛ نو هر ډول پالیسي چې جوړیږي له کانګریس څخه یې منظوري اړینه ده.

مقنّنه چې کانګریس هم ورته وایي، پر دوو مجلسونو وېشل کیږي، یو د ولس د نمایندګانو مجلس(**House Of Representatives**) چې ۴۳۲ غړي لري او دوی د وګړو د شمېر پر بنسټ له بېلابېلو ایالتونو ټاکل کیږي، د دوی ټاکل یوازې د ۲ کلونو لپاره وي او دوی ټول هغه اختیارات په لاس کې لري چې ولسي جرګه یې لري، لکه قانون جوړونه، بودجه منظورول او داسې نور. دوهم د سنا مجلس دی چې د مشرانو جرګه هم ورته وایي، د دوی ټاکنې له کانګریس سره توپیر لري، دلته له هر ایالت نه دوه کسان ټاکل کیږي، د سنا مجلس ټاکنې د ۶ کلونو لپاره وي او د دې مجلس غړي د رایو پر بنسټ واک ته رسیږي. په دې معامله کې د امریکا نظام د برتانیي له نظام سره ستر توپیر لري، د هغه ځای د دارالامراء نظام تاسو ولوست او ومو لیدل چې هغه یوه بې ارزښته اداره ده چې په اړه یې آن ځیني خلک دا هم وایي چې دا یوازې د بحثونو یو کلب دی نور



هیڅ ګټه نه لري. د دې برعکس د امریکا سنا مجلس یوه ځواکمنه اداره ده چې په نړۍ کې تر ټولو ځواکمن مجلس بلل کیږي، او د دې اداري په غړو ټاکلو کې هم په عامه توګه خلک دا خبره په پام کې نیسي چې په دې کې یوازې ښه صلاحیت لرونکي او پوه خلک و ټاکي. د ولسي جرګې په ټاکنو کې خلک ورته دومره نه ګوري ځومره چې د سنا په مجلس کې دې ته پام کیږي، او په قانون جوړونه کې د دې مجلس واک د ولسي جرګې برابر دی، یوازې د بودېجې جوړولو او مالیې نافذولو اختیار نه لري، دا واک ټول له ولسي جرګې سره دی، او په ټوله نړۍ کې دا قانون دی چې دا اختیار یوازې له ولسي جرګې سره وي، د سنامجلس دا اختیار نه لري. بلکې په ډېری هیوادونو کې په مشرانو جرګه کې له سره بودیجه وړاندې کیږي نه، د دې تر څنګ د سنامجلس رتبه په قانون جوړونه کې تقریبا له ولسي جرګې سره برابره ده. دغه راز کومې ټاکنې چې ولسمشر کوي که هغه د ملکي جنرالانو وي او که پوځي وي یا د قاضیانو وي دا ټولي ټاکنې په پای کې د سنا مجلس له خوا منظوریږي، د سنا مجلس له منظورولو پرته دا ټاکنې نافذ العمل نه دي. ولسمشر چې له نورو هیوادونو سره کوم تړونونه کوي د هغو منظوري هم سنامجلس ورکوي د دوی له منظورۍ پرته هیڅ بهرنی تړون نشي کېدلای.

د امریکایي نظام بله مهمه ځانګړتیا دا ده چې په برتانیه کې پارلمان تر ټولو زیات واکمن دی، هلته دا تصور دی چې د پارلمان له خوا هر ډول تصویب شوی قانون په یوه محکمه کې هم نشي چیلنج کېدلی. خو په امریکایي نظام کې له دې امله چې مقنّنه او قضا دواړه بېل بېل مقام لري؛ نو که چېرې مقنّنه یو قانون تصویب کړي او هغه د دستور سره ټکر ولري؛ نو په قضا کې پرې نیوکه کېدلی شي. د قضا دې اختیار ته "**Judicial Review**" (د قضا بیاکتنه) وایي. دا ولسي خلکو ته ورکړل شوی یو زیاتي حق دی چې هغه کولی شي د مقنّنې له خوا کوم تصویب کړل شوی قانون په قضا کې چیلنج کړي.

له برتانوي نظام سره د امریکایي نظام یو بل توپیر د سیاسي ګوندونو په اړه دی. تاسو ولوستل چې د برتانیې په پارلماني نظام کې مهم رول د سیاسي ګوندونو دی، په پارلمان کې چې د کوم ګوند اکثریت وي یوازې هغه به حکومت جوړوي، خو په ریاستي نظام کې له دې امله چې د اجرائیه قوې مشر مخامخ د ولس له خوا ټاکل کیږي؛ نو ځکه دلته د سیاسي ګوندونو هغه اهمیت نشته کوم چې په پارلماني نظام کې دی. دلته هم ګوندونه شته؛ خو هغوی یوازې دومره صلاحیت لري چې کاندیدان راجستر کړي او په ټاکنو کې ټولنیزې چارې پرمخ یوسي، په حکومت جوړولو کې د دوی هیڅ لاس نه وي. کانګریس ته چې کوم ګوندونه ورسیږي، ضروري نه ده چې په هغوی کې دې یوازې هغه ګوند حکومت سمبال کړي چې په کانګریس کې اکثریت ولري. او همداسې شوي دي چې ولسمشر د یو ګوند وي او په ګانګریس کې اکثریت د بل ګوند وي. د دې ترځنګ ولسمشر د کانګریس غړی هم نه وي او نه هم د کانګریس په غونډو کې د هغه د ګډون اړتیا وي. د ولسمشر او کانګریس ترمنځ معاملات د پیغام رسولو په مټ ترسره کیږي. نو ډېره شونې ده چې په کانګریس کې د یوه ګوند اکثریت وي او حکومت بل ګوند کوي؛ خو د دې هرڅه سره سره د دوی ترمنځ د ټکر فضا نه رامنځ ته کیږي چې د حکومت چلولو په مخ کې خنډونه را ولاړ کړي.

د دې لامل دا دی چې هلته د پارلمان کوم غړي دي، د هغوی مزاج د پارلماني نظام څخه بېخي بېل دی. په پارلماني نظام کې چې کوم شخص د یو ګوند غړی وي، هغه چې کله اسامبلۍ ته ځي یا حکومت جوړوي؛ نو د ګوند له خوا جوړ شوي پروګرام او منشور سره سم به خپله رایه کاروي ، له دې پرته رایه نشي ورکولی. د دې بر عکس په امریکا کې که څوک د ګوند سره تړاو لري که هغه کانګریس ته ولاړ شي، نو د ګوند له منشور پرته د خپل ضمیر او خوښي سره سم هر ډول رایه ورکولی شي. بلکې هر استازی خپل ځان د خپلې



حلقې سره تړلی بولي، او خپلې حلقې ته په کتنې سره خپله رایه کاروي، او په ټولیزه توګه چې کومه خبره د هیواد په ګټه وي هغه غوره بلل کیږي او د همدې خبرې سره سم رایه ورکول غوره ګڼل کیږي. نو داسې نده چې په کانګریس کې اکثریت د یوه ګوند وي، او ولسمشر د بل ګوند راشي؛ نو نوموړی به له ستونزو سره مخ وي، هلته د اپوزیسیون تصور له پارلماني نظام نه بېخي بېل دی. دا د امریکا ریاستي نظام لنډه پېژندنه وه !

## د فرانسې پارلماني نظام

دریم حکومتي نظام چې دلته یې لنډ تعارف کوو ، هغه د فرانسې پارلماني نظام دی: لکه مخکې مو چې ولوستل په اروپا کې د جمهوریت په راتلو کې د فرانسې انقلاب (پاڅون) ډېر رول درلود. خو عجیبه دا ده چې له فرانسې پاڅون پورته شو ، چې پر بنسټ یې د جمهوریت تحریک زور واخیست، او د همدې پاڅون له کبله په نورو هیوادونو کې ځواکمن جمهوري نظامونه رامنځ ته شول؛ خو پخپله فرانسه د اوږدې مودې لپاره د یو ستر دستوري شخړې او تاوتریخوالي ښکار وه او له وړو وړو وقفو وروسته به په دستور کې بدلونونه راتلل. د دې لامل دا و چې په پیل کې خو لومړی د خلکو ترمنځ د دې په اړه څه نا څه فکري اختلافات و ، چې څه ډول دستور باید جوړ کړل شي چې له امله یې تر ډېره وخته دستور بدلېدی، خو په پای کې دوی د پارلماني نظام پر بنسټ یو دستور غوره کړ، لکه په برتانیه کې چې و. له (۱۹۵۸ز) کال څخه لږ مخکې همغه نظام و چې لومړي وزیر ډېر واک درلود او ولسمشر کوم د پام وړ اختیار نه درلود. د برتانیې ولسمشر پاچا دی؛ خو د "تاش" د پاچا په څېر یوازې په نوم پاچا دی. دغه راز د فرانسې ولسمشر هم یوازې په نوم د هیواد مشر و ، تر دې چې هغه به د خپلې خوښې کارونه هم د لومړي وزیر یا بل کوم وزیر له لاسلیک پرته نشو تر سره کولای، آن چې خلکو به د نوموړي په اړه دا

وينا هم کوله چې د ولسمشر له استفا پرته پر هره پانه د لومړي وزير لاسليک ضروري دی. يوازې د ده استفا به داسې وه چې د لومړي وزير له امر پرته ده خپله دنده پرېښودلی شوه. له دې ورهاخوا به ولسمشر بل هيڅ ډول پرېکړه د لومړي وزير له امر پرته نشوه کولی. په دې تړاو يو بل متل هم ډېر مشهور دی چې: "په برتانيه کې ملکه لږ ترلږه پاچايي کوي؛ خو حکومت نشي کولی او د امريکا ولسمشر حکومت کولی شي؛ خو پاچايي نشي کولی او د فرانسې پاچا نه پاچايي کولی شي او نه هم حکومت کولی شي". مانا دا چې په برتانيه کې پاچا که څه هم اختيار نه لري؛ خو له خپلې پاچايي خوند اخېستلی شي او د فرانسې پاچا غريب خو د پاچايي له لوريني هم بې برخې و.

دا پارلماني نظام په فرانسه کې تر اوږدې مودې و چلېدی، خو پارلماني نظام هغه مهال کامياب دی چې کله ولسمشر او لومړی وزير يا پاچا او لومړی وزير دواړه جوړې يو ځای ښه سره وچليږي، او د دواړو ترمنځ کوم تاوتريخوالی رامنځ ته نشي، خو دا دوه گونې واکمنې چې يو شخص ته د دولت مشر وايي او بل ته د حکومت مشر او دواړه مشران وي، له دې سره سره د يوه واک زيات وي او د بل واک د نشت برابر وي، دغه دوه گونې واکمني په طبعي توگه تاوتريخوالی او جگړې رامنځ ته کولی شي. پايله دا شوه چې په فرانسه کې به تل د دواړو واکمنانو ترمنځ شخړې او جگړې کېدلې.

په (۱۹۵۸ز) کال کې چې جنرل "ډيگال" ولسمشر شو؛ نو هغه وليدل چې په فرانسه کې د بې ثباتي او جگړو اصلي لامل دا دی چې د ولسمشر واک د نيشت برابر دی او لومړی وزير هرڅه کولی شي، ولسمشر يوازې سمبوليک حيثيت لري او د لومړي وزير پر پرېکړه هيڅ نشي ويلی؛ نو په همدې کال "ډيگال" يو نوی دستور وضع کړ چې په هغه کې نوموړي د ولسمشر او لومړي وزير د واک توازن برابرولو هڅه وکړه، او بيا "ډيگال" دا دستور



اسامبلۍ ته د وړاندې کولو پرځای په ولس کې ټولپوښتنې ته وړاندې کړ چې په پايله کې يو لوی اکثريت د دې دستور ملاتړ وکړ او دا دستور کامياب شو.

د (**۱۹۵۸**ز) کال نه را وروسته هلته اوس دا دستور نافذ دی چې په هغه کې د پارلماني او رياستي دواړو نظامونو د ځانگړتياوو يوځای کولو هڅه شوې ده، او هغه ته د "چيک" او "بيلنس" دستور وايي، ياني د لومړي وزير او ولسمشر د اختياراتو ترمنځ د توازن برابرولو دستور، د بنسټ له پلوه دا نظام اصلا پارلماني دی، مانا دا چې په پارلمان کې کوم گوند اکثريت ترلاسه کړي هغه به حکومت جوړوي؛ خو د ولسمشر اختيارات ډېر محدود نه دي، هغه ته هم څه ناڅه اختيارات ورکړل شوي دي. هلته د ولسمشر په اړه ويل کيږي چې هغه د هيواد مشر هم دی او تر ولکې لاندې دولتونو مشري هم د ده پر غاړه ده، فرانسې د افريقا ځيني دولتونه لاندې کړي ول، لومړی داسې دولتونه ډېر وو؛ خو بيا يې ځيني هيوادونه له لاسه وتل او ځيني اوس هم شته؛ نو ولسمشر د هيواد مشر هم دی او د اړوندو دولتونو مشري هم د ده پر غاړه ده، او د نوموړي تاکنه د پارلمان له خوا کيږي او ده ته دا اختيار هم ورکړل شوی دی چې کله کابينه جوړيږي؛ نو د غونډو مشري به هم د ده پر غاړه وي، چې له همدې لارې په اجرايي قوه کې هم دی لاس لري.

دوهم دا چې که ولسمشر د مقنّنې له خوا د کوم جوړ کړل شوي قانون په اړه دا محسوسه کړي چې هغه د هيواد د پاره وړ قانون نه دی، بلکې څه سمونې ته اړتيا لري؛ نو نه يوازې دا چې نوموړی دا قانون ردولی شي بلکې دی صلاحيت لري دا قانون يو بل کميسون ته چې د دستور کميسون په نوم دی ور وسپاري ترڅو هغوی وگوري دا قانون د دستور د اصل سره برابر دی که څنگه؟. دغه راز ولسمشر د پوځ مشر ټاکلو واک هم لري او په دې کار کې دی د لومړي وزير مشورې ته اړتيا نه لري، د دې ترڅنگ د اجرائيه قوې ځيني غړي هم دی پر دندو گوماري. او که چېرې د جرگو چارې د قانون سره سمې پر

مخ نه ببول کیږي ؛ نو نوموړی دا حق هم لري چې د لومړي وزیر سره تر مشورې وروسته اسامبلۍ ماته کړي او په اسامبلۍ ماتولو کې به هرومرو د لومړي وزیر سره مشوره کوي؛ خو د دې مشورې پابند به نه وي. له دې سره سره نوموړي ته یو بل تر ټولو لوړ واک دا ورکړل شوی دی چې که په هیواد کې بېړنی حالت رامنځ ته شي چې له امله یې د هیواد ثبات او استحکام له ګواښ سره مخ شي؛ نو دی کولی شي هر ډول وړ اقدام وکړي.

د فرانسې او برتانیې پاچاینو یا د نورو ریاستي نظامونو ترمنځ بنسټیز توپیر دا دی چې په فرانسه کې د اجرائیه چارو یوه لویه برخه ولسمشر ته ور سپارل شوې ده او په نورو چارو کې ټول هیوادونه یو ډول دي ، په فرانسه کې هم دوه جرګې دي او د دې جرګو ترمنځ داسې اړیکې دي لکه څنګه چې په نورو هیوادونو کې وي.

## د سویټزرلینډ حکومتي نظام

دریم هیواد چې موږ یې تعارف کول غواړو هغه سویټزرلینډ دی. د دې هیواد حکومتي نظام له نورو هېوادونو بېخي جلا دی. سیاستوال او روښان اندي په دې باور دي چې په بشپړه مانا سهي جمهوریت یوازې په سویټزرلینډ کې دی. دا هیواد د مساحت له پلوه ډېر کم دی او د وګړو شمېر یې هم تر پنځوس یا شپېته لکه زیات نه دی او هوا ره یې زیاته غرونو لاندې کړې ده. دا کوچنی هیواد خو او شا (۲۲) ولایتونه لري چې هر ولایت یې د "**Canton**" په نوم یادیږي. هر ولایت په اجرایي چارو کې خپلواک دی، بېل حکومت، بېله اسامبلۍ او بېله کابینه لري، عجیبه خو لا داده چې په دومره کوچني هیواد کې درې مختلف قومونه ژوند کوي. ۷۱ سلنه وګړي یې جرمن نژاده دي، ۲۱ سلنه فرانسوي نژاده ، او ۲ سلنه وګړي بیا اټالوي نژاده دي، او د مذهب له پلوه هم د دوی ترمنځ ډېر توپیر دی. **۵۷** سلنه پروټیسټنټ عیسایان دي، ۴۱



سلنه کاتولیک عیسایان دي او اعشاریه پنځه سلنه (۰،۵٪) یهودان دي. په ظاهره خلک د مذهب، نژاد او ژبې له پلوه یو له بل نه ډېر مختلف دي ؛ خو دوی خپل ولایتونه د ژبې پر بنسټ نه دي وېشلي ، دوی خپل هېواد له اجرایي پلوه پر (۲۲) ولایتونو وېشلی دی او دا ټول ولایتونه یو وفاق لري ، نو هلته وفاقي حکومت دی او اجرائیه، مقنّنه او قضا درې واړه قوې بېلې بېلې دي. وفاقي اسامبلۍ په خپل منځ کې اووه کسیزه کمېسون ټاکي، دې کمېسون ته "فیډرل کونسل" وایي او همدا کمېسون د حکومت چارې پرمخ بیایي. دا اووه کسان د څلورو کلونو لپاره ټاکل کیږي او د اجرائیه قوې مشران هم دوی وي، بیا دوی په خپل منځ کې یو تن مشر وټاکي چې دا مشر د یو کال د پاره ټاکل کیږي، نوموړی د فیډرل کونسل غونډو جوړولو مشري په غاړه لري او په نورو ټولو اختیاراتو کې دی له نورو غړو سره برابر وي. له همدې امله هلته د اجرائیه قوې یو مشر نه وي بلکې د دې څواک مشري د اوو مختلفو کسانو په غاړه وي. د دې افرادو په ټاکنه کې تر خپله وسه هڅه کیږي چې د مختلفو ولایتونو ، توکمونو ، ژبو او بېلابېلو مذهبونو خلک ورګډ کړل شي. دا اووه کسان د ټول هیواد د وفاق نظام پرمخ بیایي ؛ خو له دې امله چې هلته (۲۲) ولایتونه دي او دا ولایتونه پراخه اختیارات لري؛ نو ځکه وفاقي معاملات ډېر کم وي. که څه هم دا اووه افراد د مقنّنې غړیتوب هم کولای شي؛ خو کله چې څوک د فیډرل کونسل غړی وټاکل شي؛ نو په مقنّنه کې یې غړیتوب منسوخ کړل شي، له دې وروسته دی د اجرائیه قوې یو غړی شي او نوموړی نور د اسامبلۍ غړیتوب نشي کولی؛ خو د دوی ټولي پالیسۍ د اسامبلۍ له خوا منظوریږي. نو دوی د اسامبلۍ په غونډو کې ګډون کوي؛ خو د رایه ورکولو حق نه لري. له نن نه څو کاله دمخه په دې هیواد کې مېرمنو د رایه ورکولو حق نه درلود اوس له څه مودې راهیسې مېرمنو ته هم د رایه ورکولو حق ورکړل شوی دی.

د دې نظام یوه مهمه ځانګړتیا داده چې هلته د ډېرو قوانینو او حکومتي پالیسیو د منظورولو د پاره ټولپوښتنه ضروري وي. نو په دې هیواد کې ټولپوښتنې ډېرې کیږي. په ځینو چارو کې ټولپوښتنه لازمي وي، لکه د دستور بدلون ،د دې هیواد په دستور کې د ټولپوښتنې پرته بدلون نشي راتلی او په ځینو چارو کې بیا ټولپوښتنه اختیاري وي. خو که چېرې یو لک کسان پر یوه ځانګړې خبره د ټولپوښتنې وړاندیز وکړي؛ نو هغه مهال بیا ټولپوښتنه لازمي ګرځي.

دا د دې هیواد قانوني حالت دی. او دودیز یا عملي حالت یې داسې دی چې هلته د فیډرل کونسل مشر د یو کال د پاره ټاکل کیږي، او هر کال بدلیږي، له همدې کبله کله نا کله ولس ته هم مالومه نه وي چې زموږ د اجرایي قوې مشر څوک دی؟ او څوک چې یو ځل مشر شي دوهم ځل ځکه د مشرۍ خواهش نه لري چې په دې دنده کې مسؤلیتونه ډېر دي او مالي او مادي ګټې یې کمې دي. په عامه توګه چې د حکومتي چارواکو کومې دبدبې وي له هغو څخه هم دوی بې برخې دي، تر دې چې د دې هیواد وزیر یا بل کوم چارواکی پر خپل موټر یا کور بېرغ هم نه لګوي. او هلته د استقبالیې لپاره هم کوم ځانګړی پروتوکول یا دودیز مراسم نه تر سره کیږي. څو میاشتې مخکې زه هلته وم؛ نو یو تن ماته وویل دلته دا تصور نشته چې کوم مشر، وزیر او یا امیر روان وي او له هغه سره ساتونکي وي، نه کوم پیلوټ ورسره وي او نه هم بل کوم رسمي مامور ، بلکې هغوی د ولسي خلکو په څېر عام ژوند کوي. یو ځل موږ هلته و، یاسر عرفات راغی او غوښتل یې له موږ سره ووینې، له هغه سره یوه ډله ساتونکي وو، خلکو چې دوی ولیدل؛ نو حیران شول چې دا څه پېښه ده؟

په حقیقت کې دا د اسلام لارښوونې دي چې واکمن باید له خپل ولس سره یو ځای ژوند وکړي، له هغوی سره نرمي وکړي او د شفقت وزرې ورته وغوړوي او پخپلو دبدبو ولس پرېشانه نه کړي؛ خو نن همدا لارښوونې هغوی خپلې کړې دي او ډېر افسوس دی چې پخپله اسلامي هیوادونو دا هرڅه له پامه غورځولي دي.



## د جمهوریت په اړه یوه تبصره

تر دې دمه د مختلفو سیاسي اندونو او دننني نړۍ بېلابېلو دودیزو نظامونو بحث روان و ، چې په پای کې د جمهوریت بنسټیز افکار، فلسفه او د هغه پر بنسټ جوړې کړل شوې ادارې او د دې تر قوانینو لاندې جوړ شویو مختلف دوله حکومتونو ته مو هم کتنه وکړه. له دې امله چې نن د نورو سیاسي افکارو ټغر په عملي توګه له نړۍ د ټولېدو په حال کې دی ، او اوس په نړۍ کې تر ټولو زیات د سیکولر جمهوري نظریې بازار ډېر ګرم دی؛ نو ځکه غواړو پر دې یوه تبصره وکړو. نن په نړۍ کې دا خبره ډېره کیږي چې د مختلفو سیاسي نظامونو تر ازموینو وروسته په پای کې تر ټولو غوره نظام سیکولر جمهوریت دی. تر دې چې د خلکو په نظر تر دې بل غوره حکومت منځ ته نشي راتلی. دا اوس اوس د امریکا د خارجه وزارت یو جګپوړي چارواکي له خوا "The End of the History and the last Man "(د تاریخ پای او وروستی انسان) په نوم یو کتاب خپور شو، د دې کتاب خلاصه داده چې د تاریخ ارتقاء نوره پای ته رسېدلې او له سیکولر او لبرل جمهوریت موندلو وروسته اوس تاریخ ته د پای ټکی کېښودل شو او نور په نړۍ کې تر دې غوره بل نظام منځ ته نشي راتلی.

دا وړاندوینه کټ مټ د هغې وړاندوینې په څېر ده چې "کارل مارکس" په خپل وخت کې کړې وه، نو موړې ویلې و چې اشتراکي نظام د نړۍ وروستی نظام دی، له دې وروسته بل داسې غوره نظام نشي راتلی. اوس د سیکولر جمهوریت او پانګه وال نظام په اړه هم همداسې وړاندوینې کیږي. په ځانګړې ډول د شوروي اتحاد تر ماتې وروسته دا دعوه ډېره کیږي چې سیاست کې سیکولر او په اقتصاد کې پانګه وال نظام په عملي ډګر کې داسې بری ترلاسه کړ چې اوس ورسره کوم بل نظام سیالي نشي کولی؛ خو پوښتنه داده چې جمهوري نظام څومره پوخ او څومره معقول دی ؟

په دې کې شک نشته چې د جمهوریت پر بنسټ په نړۍ کې ځیني داسې اصول پلي شول چې په ټولیزه توګه یې د فرد ازادي ته ګټه ورسوله، له دې نه وړاندې په نړۍ کې مطلق العنان ،یا شاهي حکومتونه وو او یا به هم دیکتاتوري نظام و، په دغو نظامونو کې چې کومه سخت دریځي او ظلمونه وو، یا پر فرد باندې ناروا بندیزونه وو، هغه په جمهوري نظام کې تر ډېره بریده له منځه یووړل شول، او دا هم سهي ده چې مخکې به خلک د خپلې رایې څرګندولو له امله له کومو ستونزو سره مخ کېدل، هغه ستونزې هم دې نظام حل کړې ، او په مطلق العنان واکمنیو کې چې کوم تنګ ژوند و هغه یې تر ډېره ځایه په سوکاله او پراخه ژوند بدل کړ. خو که د جمهوریت بنسټیز تصور ته وکتل شي؛ نو دا نظام په حقیقت کې پر کوم غوره فکري بنسټ نه دی ولاړ، بلکې دا د هغو ځوپېړیو اوږدو کړغېړنو نظامونو په غبرګون کې منځ ته راغلی چې له ځان نه جوړ شویو خیالاتو او تصوراتو پر بنسټ یې پر خلکو بې رحمه او ظالمه واکمني کوله.

تاسو ولوستل چې د اروپا تاریخ په زیاتو برخو کې مطلق العنان واکمني شوې ده، او که چېرې د دې تاریخ په منځ کې د مذهب یادونه شوې وي او یا کومه مذهبي واکمني منځ ته راغلې وي؛ نو هغه هم له ټولو هغو نېمګړتیاوو خالي نه دي چې مخکې مادرته وړاندې کړې، د رومي سلطنت تیوکراسي په حقیقت کې هیڅ روحاني بنسټ نه درلود ، یوازې د پاپ ذاتي خیالات او تصورات به پاک ګڼل کېدل او هغه به د مذهبي حکم په توګه نافذېدل او په همدې سره به د خلکو حقوق تر پښو لاندې کېدل. د دې غبرګون دا شو چې جمهوریت غوښتونکو خلکو مذهب بېخي له بېخه ویوست او دا تصور منځ ته راغی چې اصلي واکمني پخپله د ولس ده. جمهوریت د انګریزي ژبې له دیموکراسي (**Democracy**) څخه اخېستل شوی دی چې مانا یې ولسواکي ده. بیا ولس د خپل حاکمیت تصور په سیکولریزم پورې و تاړه ، موخه یې



داوه چې په سیاسي چارو کې به د دین یا مذهب پابند نه وي. مذهب د هر انسان خپله ذاتي معامله ده چې د هغه له انفرادي ژوند سره تړاو لري او له سیاسي چارو سره یې هیڅ تړاو نشته. چې کله ولس خپله حاکم شو او د بل چا د واکمني پابند نه دي؛ نو د دې په مانا کې دا هم شته چې دوی به په دولتي چارو کې د کوم الهي قانون هم پابند نه وي، بلکې دوی به پخپله پرېکړه کوي چې کوم شی سم او کوم بد دی؟ همدا لامل دی چې ازاد جمهوریت یا لیبرل دیموکراسي له سیکولریزم پرته نشي چلېدلی.

د دې نظریې د معقولې څېړنې په لړ کې تر ټولو لومړنی پوښتنه دا ده چې کله ټول ولس حاکم شي؛ نو محکوم به څوک وي؟ آیا محکوم څمکه ده او که د هیواد ودانۍ دي؟ او که جمادات او یا نباتات دي؟ که دا شیان محکوم نشي کېدلی؛ نو بیا محکوم څوک دی؟ که ولس حاکم دی؛ نو دوی به پر چا واکمني کوي؟ څوک چې حاکم وګڼل شي هغه به هرومرو پر چا واکمن وي، اوس چې ولس اصلي حاکم دی؛ نو د دې مانا دا ده چې محکوم بېخي وجود نه لري، ټول خلک حاکمان دي او چې کله ټول حاکمان شي؛ نو بیا محکوم چېرې ولاړ؟. د جمهوریت په تعریف کې دا جمله مشهوره ده چې: " **Government of the people by the people for the people** " د خلکو واکمني د خلکو له خوا او د خلکو د پاره. د دې مانا داده چې ولس خپله حاکم هم دی او محکوم هم دی. دا خبره هیڅ منطق نه مني چې یو تن دې حاکم هم وي او هغه دې محکوم هم وي او د همده له خوا دې حکومت هم کیږي. که داسې وي؛ نو بیا خو د ولس د حاکمیت بنسټیز تصور بېخي له منځه ولاړ.

د دې پوښتنې ځواب داسې کیږي چې ولسواکي مانا د ولس له خوا د دوی په خوښه خپل استازي ټاکل ، د استازو تر ټاکلو وروسته دوی حاکم شمېرل کیږي او پاتې نور خلک به محکوم وي. لومړۍ خبره د ولس د استازو ده پر دې به ان شاء الله وروسته رڼا وا چوو ، دوهمه دا چې کله ولس خپل استازي

وټاکل؛ نو د دې مانا خو دا شوه چې د خپل استازو له ټاکلو وروسته د ولس اکثریت بې لاس و پښو شول، د دوی ټول واک یو څو ټاکل شویو استازو ته وسپارل شو، چې په دې سره د دوی زیاته برخه بې واکه شوه او یو څو استازي حاکمان شول او د اکثریت حاکمیت له منځه ولاړ.

سیاستوال د حاکمیت مانا داسې کوي چې د بل چا له پابندي پرته پخپله خوښه حاکمانه اختیارات کارول یا پر نورو خپل احکام جاري کول. د حاکمیت همدا مانا پخپله د سیاست علم له مخې کېږي. نو که ولس حاکم وګڼل شي د دې مانا دا شوه چې دوی به د بل چا د واکمني پابند نه وي سره له دې چې په داسې وخت کې د خلکو اکثریت د خپلو ټاکلو استازو تر ولکې لاندې وي ؛ نو بیا د دوی حاکمیت څه شو؟

که ولس په ازاده توګه حاکم ومنل شي ؛ نو بله دا پوښتنه را ولاړېږي چې د جمهوري حکومت موخه څه ده؟ جمهوریت د کومې موخې لپاره منځ ته راغلی دی؟ د دې پوښتنې ډاډه ځواب تر اوسه چا نه دی موندلی، سیاستوالو پر دې څېرنه کړې چې د جمهوریت موخه څه ده؟ په دې لړ کې بېلا بېل ځوابونه شوي دي، او سیاستوالو هڅه کړې چې ځواب یې ومومي؛ خو تر اوسه یې چا ډاډمن ځواب نه دی موندلی او چې کله له دوی نه نورې خواوې ورکې شي؛ نو بیا وایي چې حکومت پخپل ذات کې مقصود دی. خو دا یوه تیوري ده او ځیني خلکو بیا ویلي دي چې دحکومت موخه زیات نه زیات خلکو ته خوښ او سوکاله ژوند برابرول دي، او ولس چې کوم حکمونه صادروي دا ټول خلکو ته د خوښۍ پیدا کولو د پاره کوي. خو دا خوښي هسې یوه زیاتي خبره ده، یو تن به په یو کار کې خوښ وي او بل به په بل کې خوښ وي؛ نو بیا به کومه خوښي غوره ګڼل کېږي؟ د دې په ځواب کې له دې پرته چې په کوم شي کې د اکثریت خلکو خوښي وي هغه خوښي به په حقه وي، بل ځواب چا نه دی موندلی، اوس که د خلکو اکثریت په کومې بد اخلاقۍ خوښ وي؛ نو د دې پایله دا شوه چې همدا بد اخلاقي خپرول هم د جمهوریت له موخو څخه شمېرل کېږي.



په دې اړه وروستۍ تیوري چې تر ټولو غوره ګڼل کېږي دا ده چې د جمهوري حکومت موخه د خلکو د حقوقو ساتنه ده.

اوس پوښتنه دا ده چې د خلکو کوم حقوق مقصود دي او د دې حقوقو تعین به څوک کوي؟ د دې پوښتنې په ځواب کې ویل کېږي چې دا پرېکړه به هم پخپله ولس کوي. خو اوس د ولس حال دادی چې نن یو شی حق وګڼي سبا بیا له هغه انکار کوي ځکه چې نن د حقوقو کوم مطلق او دائمي تصور نشته، بلکې ټول حقوق اضافي دي.

لنډه دا چې د جمهوریت په اصلي موخو کې به کله هم تاسو و نه وینئ چې خیر خپور کړي، او د شر مخنیوی وکړي، نېکیو ته وده ورکړي او له بدیو خلک را وګرځوي. او دا کار ځکه نه کوي چې یو خو په دوی کې د نېکیو او بدیو کوم دائمي معیار نشته چې پلانی شی ښه دی او پلانی بد. او د جمهوریت وروستۍ فلسفه خو لا داده چې په نړۍ کې خیر او شر بیخي نشته ټول شیان اضافي دي. په یوه زمانه کې به یو شی خیر وي او په بله کې به هغه شر وي. په یو وخت کې به یو شی شر وي او په بل وخت کې به بل شی شر وي، په یوه هیواد کې به یو شی خیر وي او په بل کې به هغه شر وي، په یو چاپیریال کې به یو شی خیر ګڼل کېږي او په بل کې به شر. دا ټول شیان اضافي دي بلکې د دوی کوم حقیقي وجود نشته، د خیر او شر تله پخپله د چاپېریال او دودیزو کړنو تر اغېز لاندې ټاکل کېږي. نو له کوم وخت نه چې په لویدیځ کې سیکولر نظام منځ ته راغلی ، له هغه وخت نه د بد اخلاقۍ او جنسي ناروغیو طوفان پر څپو راغلی. تر کومه چې جمهوریت نه و تر هغه وخته دا ناروغۍ نه وې، هغه مهال په اروپا کې شاهي نظامونه یا عیسایي تیوکراسي وه، دومره اخلاقي نېمګړتیاوې نه وې څومره چې نن له جمهوریت راتلو وروسته هلته راپېدا شوې دي. هلته اوس د عیاشۍ او بد کارۍ بازار اوج ته رسېدلی، داسې بد کار به نه وي چې څوک یې د ازادۍ په نوم اجازه لیک ونه لري او یا لړ

تر لږه د هغه غوښتنه نه کیږي. جمهوریت نه د کوم اخلاقي ارزښت پابند دی او نه هم د اسماني لارښوونو څخه برخمن دی بلکې ټول دار ومدار یې د خلکو د خوښې او خواهشاتو پر بنسټ ولاړ دی، که څوک بد کوي او که ښه کوي دا هرڅه د انسان یو روا حق بولي. د همدې دیموکراسۍ په نتیجه کې د برتانیې پارلمان د نجونو او هلکانو ترمنځ دجنسي اړیکو ساتلو اجازه لیک منظور کړ ، او دا یې د قانوني جواز په توګه و مانه، د برتانیې له دې اقدام وروسته په ځینو نورو اروپایي هیوادونو کې هم همجنس پرستي د قانون په توګه منل کیږي. کله چې د برتانیې په پارلمان کې دا قانون وړاندې شو ؛ نو هغه مهال یې د پارلمان ټولو غړو ملاتړ ونه کړ، په دې اړه یو څه اختلاف موجود و. بیا د دې اختلاف د لرې کولو په موخه د "Wolfendern Committee" په نوم یو کمېسون وټاکل شو. دا کمېسون د دې د پاره جوړ کړل شو چې په دې تړاو د ولس عامه رایه مالومه کړي، او دا خبره له پوهانو او روښان اندو سره شریکه کړي او په پای کې د عامه رایې مالومولو او اړوندو ټولګیو سره تر لیدنې کتنې وروسته کومې نتیجې ته ورسیږي. د دې کمېسون راپور ډېر د عبرت وړ دی، په دې راپور کې چې کمېسون کومې خبرې کړې وې د هغو خلاصه دا وه چې زموږ په فکر جنس پرستي یو بد کار دی؛ خو ستونزه داده چې موږ خپل پروګرامونه د نېکۍ او بدۍ پر بنسټ نه دي تعمیر کړي بلکې موږ پر دې بنسټ تعمیر کړي دي چې افراد د ځان د پاره په قانون جوړولو کې ازاد دي او کله چې موږ دا اصول و منل؛ نو د قانون د کار دائره د اخلاقو له دائرې بېله شوه، قانون بېل شی دی او اخلاق بېل شی دی. اخلاق د هر انسان ذاتي معامله ده او قانون عامه رایه او ازادي څرګندول دي. نو تر څو چې په یوه ټولنه کې د دې هڅه ونه شي چې بد اخلاقي یا ګناه د جرم مساوي وشمېرل شي تر هغو به د اخلاقو او قانون دائره بېله وي او دا د قانون کار نه دی چې د خیر او شر پرېکړه وکړي چې کوم شی بد او کوم ښه دی؛ نو ځکه موږ مجبوره یو چې د دې قانون په ملاتړ رایه ورکړو او چې کله عامه رایه د همجنس



پرستۍ د جواز ملاتړ کوي؛ نو موږ په دې اړه دا رایه ورکوو چې د جنسي اړیکو ساتلو جواز دې قانون وګرځول شي. د همدې راپور پر بنسټ د برتانیې "دارالعوام" (د عوامو مجلس) دا پرېکړه صادره کړه چې همجنس پرستي قانونا جواز لري، او کله چې برتانیې دا قانون تصویب کړ؛ نو امریکا هم همداسې قانون جوړ کړ، او اوس په اروپا او امریکا کې د دې کار ځانګړي ډلې جوړې شوې دي چې همجنس پرست ورته وایي، دا خلک څرګند دي او ځانونه "Gay" (ښاد) بولي. د دې لفظي مانا ښادي ده یاني پخپل ژوند خوښ. په همدې هېوادونو کې اوس ځانګړې ډلې او تنظیمونه دي چې د دې کار د عاملو لپاره کار کوي او سړي ته "gay" (ښاد) او ښځې ته "lesbian" (همجنس بازه ښځه) وایي.

د "Swap Union" په نوم یو بل تنظیم دی، "Swap" د تبادلې په مانا دی او له دې څخه د دوی موخه د مېرمنو تبادله ده. دا تنظیم ځانګړي کلبونه لري، تر اوسه دا قانون نافذ دی چې نا واده کړې مېرمن هرڅه غواړي هغه کولی شي؛ خو واده کړې مېرمن نشي کولی د خپل خاوند پرته له بل چا سره زنا وکړي ځکه چې په دې سره یې د خاوند حق تر پښو لاندې کیږي؛ خو اوس د "Swap Union" له خوا دا غږ پورته کیږي چې دا بندیزونه باید لرې کړل شي، واده کړې مېرمنې ته دې هم اجازه ورکړل شي چې پخپله خوښه له هر چا سره زنا وکړي ، همدا لامل دی چې اوس د امریکا او اروپا په زیاتره هیوادونو کې ګڼ شمېر هلکان غیر ثابت النسب (حرامیان) دي. په دې تړاو د ځینو دولتونو شمېرې نشر شوي دي او د ځینو نه دي نشر شوي. څه موده وړاندې په "Time" مجله کې یو مضمون خپور شو، په هغه کې و چې په امریکا کې د غیرثابت النسل خلکو شمېر په ډېرېدو دی. په دې راپور کې راغلي و چې دا خبره له اخلاقي پلوه د اندېښنې وړ نه ده چې یو غیري ثابت النسل قوم پېدا کیږي ، یوازینۍ اندېښنه دا وه چې د دې کار په نتیجه کې

کوم خلک پېدا کېږي د هغو د اقصادي ستونزو حل کولو څوک نشته او په دې سره اقتصادي ستونزې منځ ته راځي. د اقتصادي مسائلو له پلوه دا یوه د پام وړ اند ښنه بلل شوې وه؛ خو د اخلاقي نېمگړتیا له پلوه یې پر دې خبره هیڅ اند ښنه نه وه ښکاره کړې ، او اوس مېرمني دا غوښتنه کوي چې په ځیني ایالتونو کې منل شوې هم ده چې باید د ماشوم د زیان قانوني اجازه دې ورکړل شي او د دې کار د جواز د پاره ډېرې هلې ځلې کیږي. اوس چې په کومه کچه دا خبره روانه ده له هغې داسې څرگندیږي چې د ماشوم د زیان قانوني اجازه به هم ورکړل شي.

یو وخت لوڅ گرځېدل منع و؛ خو اوس په دې تړاو ټول بندیزونه له منځه وړل شوي دي. او نن د لوڅو فلمونو او انځورونو سېلاب زموږ تر هېوادونو هم راورسېد ، پېل یې له اروپا شوی دی او اوس همدا تیاره زموږ پر چاپېریال هم د خپرېدو په حال کې ده او تر اوسه د دې د مخنیوي لپاره هیڅ گام نه دی پورته شوی. او دا چې ولې د دې کار مخنیوی نه کیږي د دې ستر لامل دا دی چې په اوسنیو نظامونو کې داسې بنیاد نشته چې د هغه پر بنسټ د دې کار مخنیوی وشي، ځکه چې د عوامو واکمني شي او هغوی دا بې دیني خوښوي؛ نو بیا دې کار ته ناروا ویل هیڅ معقول دلیل نه لري.

لنډه دا چې داسې بدکار نشته چې په جمهوریت کې روا لار ونه لري. د دې په نتیجه کې یوه دا ستونزه هم را ولاړه شوې ده چې کورنی نظام د تباهي پر لور روان دی ، ما نا دا چې کورنۍ خپلولي چې دا خاوند دی او دا مېرمن ، دا پلار دی او دا اولاد ، د دوی تر منځ خپلوي له منځه تلونکې ده. د دې جزا دا شوه چې الله تعالی د عذاب په توگه د ایډز ناروغي رانازله کړه، دا ناروغي څنگه پېدا شوه؟ په دې اړه ټول خلک یوه خوله دي چې دا ناروغي له دوو شیانو را پېدا کیږي، لومړی د همجنس پرستې له لارې او دوهم دا چې یوه مېرمن له ډېرو خاوندانو سره جنسي اړیکې ساتي او یا یو خاوند له ډېرو مېرمنو سره جنسي



اړیکې ساتي. خو د دې پر ځای چې د دې ناروغۍ له امله په فحاشي کې کمی راوستل شي او خلک د برم او پاکوالي لور ته پام ور وگرځوي فحاشي نوره هم زیاته شوه ځکه چې د ایډز ناروغي د مخنیوي د پاره داسې ونه شول چې پر ناروا جنسي اړیکو بندیز ولگول شي. د جنسي اړیکو ساتلو د پاره ځیني حفاظتي تدابیر ونېول شول ، او د دې تدابیرو لپاره ځانگړي تعلیمي کورسونه جوړ کړل شول، د تلویزونونو له لارې عملي تربیت ورکول کیږي او داسې تعلیمي اداره نشته چې په هغې کې دې د جنسي ښوونو انتظام نه وي شوی. که څه هم دا خبره د دې ځای سره مناسبه نه ده؛ خو زه د حقیقت څرگندولو د پاره تاسو ته دا خبره په ډاگه کوم چې په پوهنتونو نو یا نورو تعلیمي ادارو کې چې چېرې ناواده کړي هلکان او نجونې ژوند کوي هلته د ایډز ناروغۍ د مخنیوي د پاره داسې انتظام شوی دی چې د هر پوهنتون په غسل خانه کې اتوماتیک ماشینونه لگول شوي دي چې روپۍ پکې ور واچول شي؛ نو پخپله کونډوم راوځي تر څو د اړتیا پروخت هر څوک له دې څخه کار واخلي. نو کومې ناروغۍ چې د ناروا جنسي اړیکو ساتلو له امله منځ ته راغلې وې د هغو د مخنیوي داسې ډول لارو چارو لټولو سره دې ناروغۍ نور پرمختگ هم وکړ. لنډه دا چې اخلاقي چارې ټولې له منځ ولاړې ، او د حیرانتیا وړ خو لا دا ده چې په کومو هېوادونو کې زنا او بدکاري ډېره ارزانه او اسانه ده، چې مېرمنو سره د ناروا جنسي اړېکو په ساتلو کې هیڅ ډول خنډ نشته، په ښکاره په ډله ییزه توگه دا کارونه کیږي، په ځیني هیوادونو کې خو لا آن قانونا د خپل عفت پېرودلو اجازه هم ورکړل شوې ده، د دې تجارت د پاره ځانگړي کمپونه جوړ کړل شوي دي، خو له دې هر څه سره سره بیا هم چې په امریکا کې د زنا بالجبر (په زوره تېری کول) کومې پېښې کیږي په نړۍ کې یې ساری نه لېدل کیږي، چېرې چې په خپله خوښه زنا کیږي او جنسي اړېکې ساتل کیږي هلته د زنا بالجبر پېښې تر ټولو زیاتې کیږي. له یوې نه تر زیاتو مېرمنو سره نکاح کول بند دي چې دا یو ناوړه کار گڼل کیږي، څوک چې له دوهمې مېرمنې سره واده کوي؛ نو هغه ته د

بند سزا ورکول کیږي؛ خو که له لسو رنډیو سره جنسي اړیکې وساتل شي؛ نو اجازه ده او پر دې هیڅ ډول بندیزونه نشته. دا ټولې ناخوالې او بدې پایلې د ولس د هغه بې واکې حاکمیت په نتیجه کې منځ ته راغلې چې سیکولر جمهوریت را پیدا کړي دي.

د ولس د حاکمیت دوهم اړخ دا دی چې په حقیقت کې دا یوه لویه تېر ایستنه ده. د دې کلمې په کارولو سره خلکو ته دا فکر ورکول کیږي چې تاسو حاکم یاست، خو په عملي ډګر کې بیا خبره بل ډول وي ، په حکومت کې د ولس ګډون یوازې یو تخیلاتي او تصوراتي بڼه لري. په زیاتره ځایونو کې ولس ته دا هم نه وي مالومه چې حکومت څه کوي؟ له همدې امله هغه خلک چې د جمهوریت پلوي کوي، ټول پر دې متفق دي چې جمهوریت هغه مهال برلاسه کېدای شي چې په ولس کې د پوهې کچه زیاته شي، دوی سیاسي شعور ولري، او د ځان د پاره د غوره واکمنانو او غوره نظام ټاکلو صلاحیت ولري. او که چېرې د پوهې کچه ټیټه وي؛ نو هلته په حقیقت کې په نظام کې د ولس ګډون نه وي بلکې مشران هغوی ببلاري کوي، مشران یې چې کومه ناره پورته کوي دوی پر هغې ورسره روان وي او ملا تړ یې کوي. همدا لامل دی چې په کومو هیوادونو کې د پوهې کچه لوړه وي هلته نسبتا جمهوریت تر نورو مستحکم وي، او په کومو هېوادونو کې چې د پوهې کچه ټیټه وي هلته جمهوریت د تېرایستلو پرته بل هیڅ نه وي. د بېلګې په ډول زموږ په هیواد (پاکستان) کې پارلماني نظام دود دی او د پارلماني نظام اصل تصور داسې دی چې لومړی دې د منشور پر بنسټ ګوندونه جوړ کړل شي او بیا دې د ګوندونو د منشور پر بنسټ خلک رایه ورکړي او د رایه ورکولو په پایله کې چې کوم ګوند اکثریت رایې وګټلې هغه دې حکومت جوړ کړي. زموږ په هېواد کې به پوهه تر **۲۲** سلنه زیاته نه وي، او د وګړو د زیاتېدو له امله د دې پرځای چې پرمختګ وکړي په ټیټه روانه ده. د هیواد زیاتره وګړي نا پوه او په



لري پر تو سبمو کې ژوند کوي. اوس له هغوی نه دا هیله کیږي چې لومړی دې د خپل سیاسي ګوندونو د منشور تقابلي مطالعه وکړي چې د پیپل ګوند منشور څه دی، د مسلم لیګ منشور څه دی؟ او د منشور د تقابلي مطالعې وروسته دې پرېکړه وکړي چې کوم منشور زموږ د هیواد د حالاتو په ګټه دی؟ او بیا دې پر همدې بنسټ پیپل یا مسلم لیګ ګوند ته رایه ورکړي. څرګنده ده چې له ناپوهه خلکو څخه د دې غوښتنه کول حماقت ګڼل کیږي. نو څرګنده ده چې په داسې حالت کې له تېرایستنې پرته بل څه نشته، مشر یوه ناره پورته کړي چې په هغې کې په زرګونو تېرایستني وي، او د دې نارو پر بنسټ د ولس احساسات را وپاروي او د هغوی رایه په خپل حق کې وکاروي.

او د ولسي حاکمیت بل اړخ دا چې داسې خلک به ډېر کم وي چې په سهي مانا له سیاست سره مینه ولري، او د سیاسي ذوق سره سم له سوچ او فکر وروسته پرېکړه وکړي. همدا لامل دی چې هرځای کې ټاکنې وشي، په هغو کې چې منځنۍ پایلې وشمېرل شي؛ نو تر **۴۵** سلنه زیات خلکو رایه نه وي ورکړې. زما مخ ته د (**Introduction To Political Science**) "سیاسي پوهې ته کتنه " په نوم یو کتاب پروت دی، دا کتاب څلورو امریکایي لیکوالانو لیکلی دی، او د امریکا له "**New Jersey** " ایالت نه خپور شوی دی. په دې کتاب کې دا ویل شوي چې په سیاسي او نورو ټولنیزو کارونو کې د خلکو د لیوالتیا او برخه اخیستني منځنۍ فیصدي څومره ده؟ او په کومو کومو کارونو کې ولس څومره برخه اخېستې ده؟ نو د دوی له شمېرنې سره سم په امریکا کې خلکو تر ټولو زیاته لیوالتیا د ریاستي ټاکنو سره ښودلې ده. په دې ټاکنو کې د وګړو **۷۲** سلنې رایه اچولې دي. د وکیلانو په ټاکنو کې **۴۷** سلنه خلکو برخه اخېستې ده. په ټولنیزو ګوندونو کې که هغه سیاسي ګوندونه دي، او که د فشار اچولو ډلې دي یا د ګډو همکاریو ګوندونه دي او یا هم نور د پرمختګ غوښتنو ګوندونه یا تنظیمونه دي، په دوی هر یوه کې د

عملي برخه اخیستونکو شمېر په ټول هیواد کې ۳۲ سلنه دی. په ټولنیزو کارونو کې د برخه اخېستونکو شمېر ۳۰ سلنه دی، او ټاکنو ته د هڅونکو خلکو شمېر ۲۲ سلنه دی. دارنګه هغه خلک چې په اقتصادي کارونو کې یې کومې حکومتي ادارې ته رجوع کړې وي، مثلاً زموږ په سېمه کې لار خرابه ده ، یا زموږ کوهی خراب دی دا دې جوړ کړل شي، دا او د بېته ورته مسئلو کې کومې رسمې ادارې ته د خلکو رجوع کونکو شمېر ۲۰ سلنه دی. په یوه سیاسي غونډه کې د درې کلونو په اوږدو کې د ګډون کونکو شمېر ۱۹ سلنه دی. په ټاکنو کې د لګښت کونکو شمېر ۱۳ سلنه دی. د یو سیاسي ګوند ځانګړي غړیتوب لرونکو شمېر په ټول هیواد کې ۸ سلنه دی.

**(Introduction To Political Science: John K. Ganbe etc. New Jersey ۱۹۸۷, P.۱۰۲)**

اوس تاسو پخپله فکر وکړئ! په داسې ټولنه کې چې هلته د پوهې منځنۍ کچه (۱۰۰) فیصده ته نږدې ده، هلته د سیاسي لیوالتیا دا حال دی..؛ له همدې امله په حکومت کې د ولس یا د دوی د اکثریت په رښتونې مانا ګډون دعوه یو خیالي تصور دی چې په عمل کې هیڅ وجود نه لري.



## ملت پالنه

په بېلا بېلو سیاسي نظریو کې یوه هم ملت پالنه ده، د دې نظریې موخه داده چې د ملت یووالی باید د نژاد، وطن او ژبې پر بنسټ وي. د دې نظریې له مخې که د ملت یووالی د مذهب او دین پر بنسټ وي؛ نو دا به رجعت پالې او یا "دقیانوسیت" وي. دا نظریه د نوې نړۍ له نظریاتو سره هیڅ تړاو نه لري. او وطن پالنه او قوم پالنه داسې نسخه ده که چېرې پر دې بنیاد یووالی جوړ کړل شي، او پر همدې بنسټ انسانان ووېشل شي؛ نو مطلب به یې دا وي چې هر ښار، بلکې هره کوڅه باید د ځان د پاره د خپلواکه یووالي یو بنسټ جوړ کړي. که فرض کړه داسې وویل شي چې پاکستان د یو هیواد په توګه یو ملت دی، او پر همدې بنسټ دې دولت جوړ کړل شي؛ نو بیا ولې سیندیان، پنجابیان، پښتون او بلوچ مستقل قومونه نه دي؟ ولې سیندیان، پنجابیان، پښتانه او بلوچیان ټول په ګډه یو هیواد جوړوي؟ پښتانه ولې ځان ته بېل دولت نه جوړوي؟ سیندیان، پنجابیان او بلوچیان ولې ځان ته بېل بېل دولتونه نه جوړوي؟ او که چېرې سیندیان د بېل قوم جوړولو حق ولري؛ نو د کراچۍ او حیدرآباد خلک ولې جلا قومونه نه شمېرل کېږي؟ ځکه چې د دواړو ښارونو خلک یو له بل سره په دود، ګړدود او ناسته پاسته کې ډېر توپیر لري؛ نو ولې کراچۍ یو بېل دولت نه جوړېږي؟ ولې حیدرآباد یو بېل دولت نه ګڼل کېږي؟ په ځینو سېمو کې خو لا داسې هم شته چې د یوې کوڅې له بلې سره په دودونو او لهجو کې توپیر دی. نو بیا هره کوڅه ولې بېل دولت نه شمېرل کېږي؟ لنډه دا چې ملت پالنه داسې شی دی چې د انسانانو په وېشلو او ټوټه کولو کې یې ستر رول لوبولی. او عجیبه خو لا داده چې کله پاکستان نه و جوړ شوی؛ نو د ملت پالنې پلویانو به ویل چې ټول هندوستان یو قوم دی؛ خو چې کله پاکستان منځ ته راغی؛ نو دوی وایي چې په پاکستان کې څلور قومونه اباد دي. اوس خو لا د څلورو پر ځای پنځه شول، د مهاجر قوم هم ورسره زیات شو. د دې ټولو ستر

لاملدادی چې یوځل دا اصول ومنل شي چې دولتي نظام دې د قوم، وطن او ژبې پر بنسټ جوړ شي؛ نو بیا د دې هیڅ حد نه وي.

دا سهې ده چې د لغوي مانا له پلوه قوم د وطن په مانا، د نژاد په مانا او د ژبې په مانا کارول کیږي، او په قرآن کریم کې هم په دې مانا راغلی دی. پیغمبرانو علیهم السلام خپلو خلکو ته په یا قوم ! یا قوم !(اې قومه) کلمې سره وینا کړې ده، سره له دې چې هغوی کافران ول. له دې مالومیږي چې د لغوي مانا له پلوه ملت د یو نژاد یا هېواد پر بنسټ جوړېدلی شي، چې په هغه کې مسلمانان او کافران دواړه شمېرل کېدلی شي. خو د اسلامي سیاست له پلوه دا قوم د سیاسي یووالي بنسټ ګرځېدلی شي او که نه؟ په دې اړه قرآن کریم وایي: هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّ مِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ. (۱)

ژباړه: (الله) هماغه دی چې تاسې یې پیدا کړئ؛ نو له تاسې ځیني کافر او ځیني مؤمنان دي.

دغه راز الله تعالی مسلمانانو ته امر کړی چې د ابراهیم علیه السلام په هغه سنت عمل وکړي چې نوموړي له خپل قوم نه بې زارۍ ښرګنده کړې وه. الله تعالی فرمایي: قَدْ كَانَتْ لَكُمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَ الَّذِيْنَ مَعَهٗ١ اِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَ مِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَ بَدَا بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَ الْبَغْضَآءُ اَبَدًا حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗٓ.(۲)

ژباړه: یقینا ستاسو د پاره په ابراهیم او د هغه ملګرو کې غوره نمونه شته، کله چې خپل قوم ته یې وویل بې شکه موږ له تاسې او له هغو شیانو چې تاسې یې الله نه پرته لمانځئ، بېزار یو، ستاسې له عقیدې منکر یو او زموږ او تاسې ترمنځ د همېشه د پاره دښمني او کینه ښرګنده شوې تر هغو چې یوازې په یو الله ایمان راوړئ.

[1]) سورة التغابن:۲
[2]) سورة الممتحنه:۴



په دې ایت کې دواړه خبرې په ښرګند ډول بیان شوي: له یوې خوا په دې کې د ابراهیم علیه السلام کافرو خلکو ته په قوم سره یادونه شوې ، او له بلې خوا یې دا په ډاګه کړې چې سره له دې چې ابراهیم علیه السلام د دوی له قوم څخه و ؛ خو یوازې د دوی د قومیت پر بنسټ سیاسي یووالی نشی راتلی، ځکه د دواړو د ژوند موخو ترمنځ د ځمکې او اسمان هومره توپیر دی.

د لته دا خبره د یادولو وړ ده چې د خپلو هېوادوالو، هم ژبو او هم نژاده خلکو سره د زړه تړاو او مینه یوه فطري جذبه ده، که دا په خپل چوکاټ کې وي؛ نو اسلام په دې اړه هیڅ بندیز نه لګوي. نو د دښمنۍ او کینې ساتلو مانا دا نشوه چې له کافرانو سره دې هیڅ ډول اړیکې نه ساتل کیږي، یا دې له هغوی سره انساني همدردي او ښه چلند نه کیږي، ځکه چې د قرآن کریم په همدې سورت کې چې په کوم ایت کې دا براهیم علیه السلام وینا یاده شوې هلته الله تعالی دا هم فرمایلي ، چې: لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَ لَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَ تُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ.( ۱)

ژباړه: چا چې په دین کې تاسو سره جګړه نه ده کړې او له خپلو کورو یې بهر نه یئ وېستلي نو الله مو هغوی سره له ښېګنې او انصافه نه ایساروي، یقینا انصاف داره خلک د الله ښه ایسي.

دغه راز د دې خبرې بندیز هم نشته چې د اړتیا پروخت دې له کافرانو سره د تړکاو ساتلو په موخه د سولې تړون نه کیږي، الله تعالی فرمایي: وَ اِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَ تَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ١ .(۲)

ژباړه: او که هغوی سولې ته مېلان ولري نو ته هم ورته تیار شه او پر الله بروسه وکړه.

[1]) سورة الممنحنه:۸
[2]) سورة الانفال:۶۱

له همدې امله پیغمبر صلي الله علیه وسلم د حدیبیې سولې پروخت له کافرانو سره د امن لوزنامه وکړه، او له بنو خزاعه سره چې کوم تړون شوی و، کله چې بنوبکر له هغه تړونه سر غړونه وکړه؛ نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم د بنو خزاعه مرسته وکړه، او د همدې په پایله کې مکه مکرمه فتح شوه. دارنګه پیغمبر صلی الله علیه وسلم د مدینې له یهودو سره هم د سولې تړون کړی دی، او ترڅو چې هغوی د تړون څخه سرغړاوی نه و کړی تر هغو پیغمبر صلی الله علیه وسلم له دوی سره ښې اړیکې ساتلې؛ خو وروسته چې کله د دوی له خوا په ډاګه د تړون سرغړونه وشوه؛ نو بیا پیغمبر صلی الله علیه وسلم د دوی پرضد د جنګ اقدام وکړ. نو پرته له شکه له هغو کافرانو سره چې له مسلمانانو سره دښمني نه کوي امنیتي اړیکې ساتل او یا ورسره ښه چلند او تړونونه کول روا دي، او په اسلامي تاریخ کې کې شمېر داسې تړونونه شوي دي ، خو له دې امله چې د مسلمانانو او کافرانو د ژوند موخو ترمنځ توپیر دی، نو مسلمانان چې کله پخپله خوښه د اسلامي دولت بنسټ اېږدي هغه د ملت پالنې پر بنیاد نه وي بلکې د دین پر بنیاد وي. نو که له مسلمان سره دوه لارې وي یوه دا چې دولت د دین پر بنسټ جوړ کړي ، او بله دا چې حکومت د ملت، نژاد او وطن پر بنسټ جوړ کړي؛ نو بې شکه پر هغه شرعا واجب دي چې لومړی لاره غوره کړي.

که څه هم د لغوي مانا له پلوه د قومیت اطلاق پر وطن پالو ، نژادپالو ، او ژبپالو خلکو باندې هم کیږي، خو اسلام له دې منع کړې چې قومیت د سیاسي وحدت بنسټ وګرځول شي. پیغمبر صلي الله علیه وسلم په څرګندو ټکو مسلمانان له دې کاره منع کړي. یوځل د یو انصاري او مهاجر صحابي ترمنځ شخړه رامنځ ته شوه، نو په دې وخت کې مهاجر صحابي مهاجر، او انصاري انصار را وپارول، او د یاللمهاجرین !او یا للانصار ! نارې پورته شوې. پیغمبر صلي الله علیه وسلم چې له دې پېښې خبر شو ؛ نو ویې ویل: "دا ډېره



بد بویه ناره ده ". هغه صلی الله علیه وسلم د هغه چا په اړه دا خبره وکړه چې مهاجر یې د مهاجرو او انصار یې د انصارو مرستې ته رابلل؛ نو ویې ویل چې دا ډېره بد بویه ناره ده، ځکه چې مرسته باید تل د حق په پلوي وي که څه هم هغه د خپل قوم له کوم شخص نه خلاف وي.

د ملت پالنې بنیاد په حقیقت کې د سیکولر پر بنسټ ایښودل شوی دی چې له دین سره یې هیڅ تړاو نشته، د سیاسي یووالي د پاره له دوی سره کوم بل بنیاد نشته؛ نو ځکه یې قوم پالنه او وطن پالنه خپل بنسټ ګرځولی دی او دا هغه بت دی چې ټول اسلامی امت یې ټوټه ټوټه کړ، په تاریخ کې چې کله مسلمانان له کومې ستونزې سره مخ شوي دي یا یې ماتې خوړلې ده؛ نو د داسې پېښو ترشا تل د ملت پالنې ناره تر غوږو شوې وي. په دې نږدې زمانه کې د مسلمانانو اجتماعي غمېزې پیل د عثماني خلافت له منځه تلو وروسته شوی دی. عثماني خلافت د خپلو ټولو نېمګړتیاو سره سره بیا هم د مسلمانانو د یووالي لپاره کار کاوه، خو انګریزانو د لومړی نړیوالې جګړې پرمهال عربان د ترکانو پر خلاف را پورته کړل او عربي اتحادیه جوړه شوه. له بلې خوا په ترکیه کې "مصطفی کمال پاشا " او د هغه پلویانو اجنډا ټوله پر نګه قومیت پالنې ولاړه وه او په پایله کې یې د مسلمانانو یووالی پر ګڼ شمېر برخو ووېشل شو.

د لومړی نړیوالې جګړې پرمهال اتحادیانو له عربو سره ژمنه وکړه چې موږ به تاسو د ترکانو له غلامۍ خلاصوو ؛ نو تاسو د دوی پر ضد و درېږئ او دوی له خپلو هېوادو وباسئ، موږ به ستاسو مرسته کوو ، او چې کله تاسو ازاد شوی؛ نو خپلواکه حکومتونه به جوړ کړئ. دا ناپوهان په دې تېروتل او د ترکانو پرضد یې بغاوت پیل کړ، او اتحادیانو هم ورسره مرسته وکړه؛ خو چې کله دوی له ترکانو ازاد شول؛ نو له دې کامیابۍ سمدستي وروسته د انګریزانو او فرانسویانو پوځ بغداد ته ورداخل شو ، او پر دې ټولو سېمو یې

خپله ولکه ټینګه کړه او ټولې کړي ژمنې او تړونونه یې تر پښو لاندې کړل. وروسته چې کله عربان په هوښ کې راغلل چې په موږ څه وشول چې د ترکانو پرځای اوس دوی رابانديې مسلط شول، او سره ټوټه ټوټه یې کړو ؛ نو هغه مهال د دوی پرضد بیا جګړې او خوځښتونه را وټوکېدل، تردې چې دوی له انګریزانو ازاد شول. نو ملت پالنه هغه نظریه ده چې اسلامي امت ته یې له کچې وتلی زیان ور اړولی، څکه خو مرحوم اقبال وایي:

ان تازه خداؤں میں بڑا سب سے وطن ہے

جو پیرہن اس کا ہے، وہ ملّت کا کفن ہے

په دې نویو بادارانو کې تر ټولو ستر وطن وي، چې د هغه پرتوګ وي هغه د ملت کفن وي.

په دې اوږه موده کې له اسلام پرته دوه نورې نظریې هم منځ ته راغلې چې د ملت پالنې مخالفت یې کړی ، یا یې د نظریې پر بنسټ د ملت پالنې تصور وړاندې کړی ، یوه د کمونیزم او دویم اسرائیلي صهیونیزم. کمونستي او صهیونستي دولتونه هم د نظریې پر بنسټ منځ ته راغلي دي، هغوی د ملت پالنې تردید کړی دی او ویل یې چې دولت باید د ملت پالنې پر بنسټ نه وي بلکې د نظریې پر بنسټ جوړ کړل شي.

په تېره برخه کې موږ د نړۍ بېلابېلو سیاسي اندونو او نظامونو ته کتنه وکړه. اوس به زموږ راتلونکې موضوع دا وي چې اسلام د سیاست په اړه څه لارښوونې کوي؟ او د همدې لارښوونو په رڼا کې په اوس وخت کې کوم ډول سیاسي نظام په عملي توګه منځ ته راتلی شي؟

### د لومړۍ برخې پای





# دویمه برخه

## د اسلام سیاسي اصول

د نړۍ د مختلفو سیاسي اندونو او سیاسي نظامونو تر څېړنې وروسته اوس په دې لړ کې د سیاست په اړه د اسلام لارښوونو ته کتنه کوو ، دا برخه مو پر شپږو بېلابېلو څپرکیو وېشلې ده. لومړی څپرکی د اسلام او سیاست ترمنځ د تړاو پر موضوع دی، په دې کې به ان شاء الله هڅه کوو دا په ډاګه کړو چې د قرآن او حدیثو له مخې په اسلام کې د سیاست او سیاسي هلوځلو مقام څه دی؟ او اسلام چې د سیاست په اړه کومې لارښوونې کړي دي هغه څه ډول دي؟ دوهم څپرکی به د حکومت په اړه د اسلام پر بنسټیز تصور او موخو راڅرخي. دریم څپرکي به ان شاء الله د حکومت جوړونې په اړه د اسلامي تګلارې تشریح کوي. څلورم څپرکی به د حکومت چلولو په اړه د اسلام تګلاره یا ټاکلي اصول روښانه کوي. پنځم څپرکی به د دفاع او خارجه چارو په اړه پر اسلامي لارښوونو راڅرخي. او په شپږم څپرکي کې به ان شاء الله د حکومت له واکه غورځولو یا ګوښه کولو پر لارو چارو خبرې کیږي.

# لومړی څپرکی

## د اسلام او سیاست ترمنځ تړاو

### ۱. په اسلام کې د سیاست ځای

نن په نړۍ کې د اسلام او سیاست ترمنځ د تړاو په اړه دوه داسې نظریې شته دي چې دواړه د افراط او تفریط تر وروستۍ پولې رسېدلي دي. یوه د سیکولریزم (بې دیني) نظریه ده چې د دې نظریې له مخې اسلام هم د نورو مذهبونو په څېر د انسان ذاتي او انفرادي معامله ده چې یوازې د هغه له ذات سره اړه لري، سیاست او حکومت له دې سره هیڅ تړاو نه لري. تاسو ولیدل چې دا تیوري په عیسایي تیوکراسي کې د نېمګړتیاوو را پیدا کېدو وروسته د یوه غبرګون په نتیجه کې منځ ته راغلې ده، او دا نظریه هغه مهال په نړۍ کې ومنل شوه چې کله سیکولر ډیموکراسي دود شوه. دې نظریې د ځینو هغو دیني کړیو تګلارو له امله نور تقویت هم وموند چې هغوی د خپلو هلوځلو ټول محور عقائد او عبادات وګرځول، او زیات نه زیات د اخلاقو د سمون تر بریده یې یو څو محدود اصول و ټاکل، او کوم خلک چې به له دې دائرې څخه ووتل او په سیاسي هلوځلو به بوخت شول؛ نو پر هغوی به یې هم نېوکې کولې چې یو دیندار سړی ولې په سیاست کې برخه اخلي؟ دا نظر له دې امله راپیدا شو چې دوی اسلام ته هم د نورو مذهبونو په سترګه ګوري او پر هغو نورو یې ورقیاس کوي، سره له دې چې دا قیاس بېخي غلط دی. د اسلام لارښوونې او احکام یوازې تر عقائدو، عباداتو او اخلاقو پورې محدود نه دي، په اسلام کې د اقتصادي چارو او سیاست او حکومت په اړه هم ډېرې څرګندې لارښوونې شته چې له هغو نه پرته د اسلام کلي تصور بشپړ نه دی. او د همدې احکامو څه ناڅه تفصیل به ان شاء الله په راتلونکي کې درته وړاندې شي.



دویمه سخت دریځي ځینو هغو افرادو غوره کړه چې د سېکولریزم تردید یې په دومره ټینګه وکړ چې یوازې سیاست یې د اسلام اصلي موخه وګرځوله، د دوی په اند د اسلام اصلي موخه په نړۍ کې یو عادلانه سیاسي نظام نافذول دي، او پاتې نور احکام د دې اصلي موخې تابع دي. نو څوک چې د سیاست په ډګر کې د دین د سرلوړي د پاره کار کوي، یوازې همدوی د دین اصلي پالونکي دي، او هغه خلک چې د نفس په اصلاح، ښوونه، تبلیغ او یا د ټولنې په اصلاحي کارونو بوخت دي او په سیاست کې یې هیڅ رول نشته، ګواکې هغوی سختدریځه دي او د دین له اصلي موخې ناخبره دي.

دا دواړه د افراط او تفریط نظرونه دي چې د رامنځ ته کېدو اصلي لامل یې په اسلام کې د سیاست له اصلي مقامه ناخبري ده. حقیقت دادی چې د اسلام لارښوونې، پوهه او حکمونه د ژوند له هرې برخې سره تړاو لري چې په هغو کې سیاست هم داخل دی، خو سیاست اصلي موخه ګرځول او پاتې نور حکومونه د هغه تابع کول هم سهي نه دي. د دې مثال داسې دی لکه چې اسلام د تجارت په اړه ډېر تفصیلي حکمونه ذکر کړي دي؛ خو که څوک دا ووایي چې یوازې تجارت د اسلام اصلي موخه ده؛ نو دا به بېخي غلطه خبره ده، یا دا چې اسلام د نکاح په اړه ډېر حکومونه ذکر کړې دي؛ نو د دې حکومونو له امله هیڅکله داسې نشي ویل کېدلی چې د اسلام اصلي موخه نکاح ده. همدارانګه اسلام د سیاست په اړه هم څرګند حکمونه او اصولي لارښوونې کړې دي؛ خو په دې سره دا نشي ویل کېدلای چې سیاست د اسلام اصلي موخه ده.

الله تعالی د انسان د ژوند اصلي موخه داسې بیانوي ، چې: وَ مَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَ الْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ (۱)

ژباړه: او موږ پېریان او انسانان بل څه ته نه دي پیدا کړي پرته له دې چې ما ولمانځي.

---

(۱) سورة الذاریات: **۵۶**.

عبادت د الله تعالی لمانځنې ته وایي، او په لمانځنه کې د عبادت ټولې شرعي کړنلارې او د ژوند په هره معامله کې د الله اطاعت هم رانغښتی دی. دا زده کړئ چې د عبادت کلمه د "عبد" څخه اخېستل شوې ده چې لفظي معنی یې غلام ده. څوک چې د چا غلام شي؛ نو د خپل بادار ټولو خبرو ته به غاړه ږدي؛ خو د هغه لمانځنه نه کوي، ځکه نو د هغه اطاعت ته عبادت نه ویل کیږي، او د الله تعالی بندګان له خپل رب سره د اطاعت او لمانځنې دواړه اړیکې لري چې له همدې امله د ده عمل ته عبادت وایي.

بیا عبادتونه هم په دوه ډوله دي. یو هغه عبادتونه دي چې موخه یې یوازې د الله تعالی لمانځنه وي ، لکه لمونځ، روژه، زکات، حج، قرباني او نور. دا بې واسطې عبادتونه دي. او دوهم ډول هغه عبادتونه دي چې په هغو کې یو کار د دنیاوي ګټو د پاره کیږي؛ خو کله چې دا کار د الله تعالی له لارښوونو سره سم و شي ، او نیت پکې یوازې د الله تعالی خوښي وګرځول شي؛ نو هغه باواسطه عبادت شي. د بېلګې په ډول، که څوک تجارت د الله تعالی له لارښوونو سره سم کوي او په دې سره یې موخه یوازې د الله تعالی خوښي تر لاسه کول وي؛ نو هغه هم عبادت ګرځي چې په دې سره ثواب ورکول کیږي. خو دا باواسطه عبادت دی، ځکه چې تجارت پخپل ذات کې عبادت نه و ؛ خو هغه په اطاعت او د ښه نیت په واسطه عبادت وګرځېدی. همداسې سیاست او حکومت هم دی ، که چېرې حکومتي یا سیاسي چارې د الله تعالی له حکمونو سره سم د هغه د خوښي ترلاسه کولو په موخه پرمخ یوړل شي؛ نو هغه هم باواسطه عبادت دی ، ځکه چې دا چارې هم د تجارت په څېر پخپل ذات کې عبادت نه و ؛ خو د اطاعت او ښه نیت په واسطه عبادت وګرځېده. چې کله الله تعالی د انسان د راپیدا کولو موخه عبادت وګرځاوه؛ نو په دې کې دواړه ډوله عبادتونه شامل دي او د دې دواړو مجموعه د انسان د خلقت اصلي موخه ده. څرګنده ده چې د بې واسطه عبادتونو رتبه تر باواسطه عبادتونو ډېره لوړه ده.



او باواسطه عبادتونه هم ډېر ډولونه لري، په دې عبادتونو کې یوه ته د انسان د خلقت اصلي موخه نه ویل کیږي، بلکې د دواړه ډوله عبادتونو مجموعه د انسان د پنځولو اصلي موخه ده. دا خبره هم باید له پامه و نه غورځول شي چې باواسطه عبادتونه هم د اهمیت له پلوه بېلا بېلې درجې لري، او کوم باواسطه عبادت چې څومره عام او زیات اغېز ولري هغومره به د اهمیت وړ وي. که چېرې د سیاست نظام د شریعت سره سم په سهي معنی اسلامي نظام وي ؛نو له دې لارې به ټول باواسطه او بې واسطه عبادتونه نه یوازې اسانېږي بلکې د دې د عمل دائره به نوره هم پراخه شي، له همدې کبله د نورو باواسطه عبادتونو په پرتله دا ډېر د اهمیت وړ دی. نو که په همدې موخه د دې پر اهمیت زور راوړل شي؛ نو غلطه نده، خو یوازې سیاست د دین اصلي موخه ګرځولو سره به د ترجیحاتو ترتیب له منځه ولاړ شي. ځکه که سیاست د دین اصلي موخه وګرځول شي؛ نو په دې سره به ګڼ شمېر نېمګړتیاوې رامنځ ته شي.لومړی نېمګړتیا به دا وي چې کله سیاست د دین اصلي موخه وګرځول شي؛ نو پاتې نور ټول شیان به د ده تابع وګرځي. کوم عبادتونه چې بې واسطه عبادتونه دي هغه اصلي موخه پاتې نه شول بلکې د اصلي موخې تابع وګرځېدل، چې په دې سره د هغو اهمیت هم له منځه ولاړ، سره له دې چې د قرآن کریم د لارښوونو له مخې سیاسي واک یوه ذریعه ده، او بې واسطه عبادتونه د هغه اصلي موخه ده، الله تعالی فرمایي: اَلَّذِیْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَ اَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَ نَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ.(۱)

ژباړه: دوی هغه خلک دي چې که موږ په ځمکه کې قدرت ورکړو ، لمونځ تر سره کوي، زکات ورکوي، د نیکي امر کوي او له بدي نه اپسارول کوي.

[۱]) سورة الحج: ۴۱.

تاسو وینئ چې دلته د واک موخه دا گرځول شوې چې دوی دې لمونځ کوي، زکات او نور عبادتونه دې کوي، له دې په څرگندو ټکو معلومېږي چې اصلي موخه دغه عبادتونه دي، او واک د همدې اصلي موخې د ترلاسه کولو د پاره یوه ذریعه ده.

ځیني خلک د واک اصلي موخې گرځولو د پاره د سورت نور له دې ایت نه استدلال کوي، چې په هغه کې الله تعالی فرمایلي دي: وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مِنْکُمْ وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَیَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ کَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ۱ وَ لَیُمَکِّنَنَّ لَهُمْ دِیْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰی لَهُمْ وَ لَیُبَدِّلَنَّهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا، یَعْبُدُوْنَنِيْ لَا یُشْرِکُوْنَ بِيْ شَیْئًا. (۱)

ژباړه: له تاسونه چې کومو کسانو ایمان راوړی او سم کارونه یې کړي، الله وعده ورسره کړې ده چې خامخا به یې په ځمکه کې هماغه شان خلیفه گان وگرځوي لکه هغه خلک چې له دوی مخکې یې خلیفه گان کړي وو او حتما به یې هغه دین ورته محکم کړي چې دوی ته یې خوښ کړی او له وېرې وروسته به یې حالت په بدل کړي، یوازې ما به لمانځئ، هیڅ شی به نه راسره شریکوئ.

خو د دې دلیل په اړه مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله بشپړه څېړنه کړېده، دلته موږ د هغه د خولې الفاظ رانقل کوو، نوموړی وایي: "الله تعالی فرمایي: اَلَّذِیْنَ اِنْ مَّکَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّکٰوةَ وَ اَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَ نَهَوْا عَنِ الْمُنْکَرِ وَ لِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ.

ژباړه: دوی هغه خلک دي چې که موږ په ځمکه کې قدرت ورکړو، لمونځ تر سره کوي، زکات ورکوي، د نیکي امر کوي او له بدي نه ایسارول کوي.

له دې ایت څخه څرگندېږي چې یوازې دیانات (دینداري) د انسان د ژوند اصلي موخه ده، او سیاست او جهاد اصلي موخه نده، بلکې د دیانت پلي کولو یوه ذریعه ده. همدا لامل دی چې دیانت او د دیانت احکام ټولو

(۱) سورة النور:۵۵.



پیغمبرانو ته ورکړل شوي و، او سیاست او جهاد ټولو ته نه و ورکړل شوی، بلکې چېرې چې به اړتیا او مصلحت و؛ نو د دې امر به ورته کېده؛ کنه نو نه به و او همدا غوښتنه دوسائلو هم ده چې د اړتیا د پاره ورکول کیږي.

ښایي ځیني خلک گومان وکړي چې په نورو آیاتونو کې د دې پر خلاف یادونه شوې ده، له هغو آیاتونو داسې برېښي چې دیانت یوه وسیله او سیاست اصلي موخه ده، او هغه دا دي: وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مِنْکُمْ وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَیَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ کَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ۱ وَ لَیُمَکِّنَنَّ لَهُمْ دِیْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰی لَهُمْ.

ژباړه: له تاسونه چې کومو کسانو ایمان راوړی او سم کارونه یې کړي، الله وعده ورسره کړې ده چې خامخا به یې په ځمکه کې هماغه شان خلیفه گان وگرځوي لکه هغه خلک چې له دوی مخکې یې خلیفه گان کړي وو او حتما به یې هغه دین ورته محکم کړي چې دوی ته یې خوښ کړی.

دلته ایمان او نیک عمل د دین محکموالي د پاره شرط گرځول شوی، له دې څرگندېږي چې سیاست او محکموالی اصلي موخه ده. د دې ځواب دا دی چې دلته په ایمان او نیک عمل سره د محکموالي او عزت وعده شوې ده، او په ځانگړې توگه سرلوړي په دې پوري تړلې یاده شوې؛ نو سیاست او ځواک هغه څه دي چې ژمنه یې شوې؛ خو ژمنه اصلي موخه گرځول ضروري ندي، کنه نو په بل ایت کې الله تعلی فرمایي: وَ لَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَ الْاِنْجِیْلَ وَ مَاۤ اُنْزِلَ اِلَیْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَکَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ (۱)

ژباړه: او که چېرې هغوی تورات، انجیل، او نور هغه (کتابونه او صحفې) چې له ربه یې ورته نازل شوي، جاري کړي وای؛ نو خامخا به یې هم له پاسه او هم له پښو لاندې پریمانه روزي خوړله.

په دې ایت کې د تورات، انجیل او قرآن په عملي کولو سره د روزۍ د پراخوالي ژمنه شوې ده؛ نو آیا څوک ویلی شي چې د دین موخه همدا ده؟

(۱) سورة المائده:۶۶.

بلکې په دين کې ژمنه شوې ده چې ديندار سړی د لوړې سره نه مخ کيږي؛ نو د کوم شي چې ژمنه شوې ده ضروري نده چې همغه دې اصلي موخه وي. دلته هم په ايمان او نيک عمل سره د سرلوړي، سياست او ځواک ژمنه شوې ده چې په ځانګړي ډول په دې باندې مرتب شوي دي ، په دې سره اصلي موخه مقصود نه ده چې د دې غايه ورته ويل کيږي.

نو څرګنده شوه چې په سياست او ديانت کې سياست وسيله ده او ديانت اصلي موخه ده؛ خو د دې معنا دانده چې سياست په يوه درجه کې هم مطلوب ندی، بلکې د سياست درجه څرګندول هم ضروري ده چې دی پخپله اصلي موخه نده اصلي موخه ديانت دی "(۱)

لنډه دا چې که سياست د ديانت اصلي موخه او نور عبادتونه يې تابع و ګرځول شي ؛ نو په نتيجه کې به دافکر را پيدا شي چې دا ټول عبادتونه د هغې لوړې موخې يعني سياست او حکومت ترلاسه کولو ذريعې دي. په جمع د لمونځ کولو اصلي موخه به داوي چې د سياسي موخو د ترلاسه کولو د پاره اجتماعي فکر پيدا شي، د نظم او پيوستون عادت عام شي، په مسلمانانو کې يو له بل سره ناسته پاسته وشي، دوی يو له بل سره د مرستي لارې چارې و پېژني، او ټول سره يو شي او د همدې لوړې موخې د پاره کار وکړي. د زکات اصلي موخه به داوي چې د دې لوړې موخې د ترلاسه کولو د پاره د مالي قرباني ورکولو جذبه را پيدا شي. د روژې موخه به دا وي چې د دې لوړې موخې د ترلاسه کولو د پاره خلک د لوږې او تندې او نورو ستونزو سره عادت شي. د حج فرضيت موخه به دا شي چې د ټولو مسلمانانو د نړيوالې غونډې موخې پوره کړي او له دې څخه د مختلفو خلکو په منځ کې يووالی او هماهنګي پيدا شي. لنډه دا چې په دې سره به ټول عبادتونه د دې اصلي موخې

(۱) اشرف السوانح:۴ ټوک، خاتمة السوانح:۲۹،۲۸ مخ، چاپ: ملتان



د دنياوي ګټو ترلاسه کولو د پاره وګرځي. په دې کې شک نشته چې له عبادتونو دا ګټې هم ترلاسه کيږي، خو دا د هغو وروستۍ ګټې دي، د عبادتونو اصلي روح ندی. د عبادتونو اصلي روح له الله تعالی سره اړيکي ټينګول، هغه ته سر ټيټول او عاجزي کول او د هغه اطاعت ته پر هر کار ترجيح ورکول دي. سياست اصلي موخه ګرځولو سره د عبادت په دې روح کې کمزوري رامنځ ته کيږي.

بل تاوان يې دا دی چې کله دا ټول عبادتونه د دې لوړې موخې د ترلاسه کولو ذريعه وګرځيده؛ نو پخپله به دا نتيجه ترې را ووځي چې که د دې لوړې موخې د پاره په ځينې ديني حکمونو کې سستي وشي بايد دا کوم حرج و نه ګرځول شي. نو که د سياسي هلو ځلو يا سياسي غونډو د پاره د جمع لمونځ پرېښودل شي، يا په جومات کې حاضري و نه شي هيڅ پروا نشته، آن که لمونځ قضا هم شي کومه بده خبر نده، د دې د پاره دې ځينې مکروهات هم وکړل شي او دا هر څه د دې د پاره چې لوړه موخه ترلاسه کړل شي.

بله نېمګړتيا به دا رامنځ ته شي چې کوم خلک په بې واسطه عبادتونو کې بوخت وي، او خلک د دې عبادتونو فضائلو ته هڅوي هغوی به د دين د اصلي موخې څخه ناخبره شمېرل کيږي، بلکې وخت ناوخته خو به له دوی سره سپک چلند کيږي او ملنډې به ورپورې وهل کيږي. هغه کتابونه چې په هغو کې د اعمالو فضائل وي هغه به د اهميت وړ نه بلل کيږي او د هغو لوستل به د اړتيا وړ هم نه بولي بلکې ځينې خلک خو به لا دا هم وايي چې دې شيانو ته هيڅ اړتيا نشته يا دا هغه څه دي چې سړی د دين له اصلي موخې ناخبره کوي. له همدې امله به هغه تصوف ته هم په دې سترګه کتل کيږي چې له شريعت سره برابر وي. کوم خلک چې د دين په ترلاسه کولو او خدمت بوخت دي هغوی به د دين له اصلي موخې بې برخې ګڼل کيږي.

بله نیمګړتیا یې دا چې د دې حتمي نتیجه به دا راووځي چې دنیا ته څومره پیغمبران رالیږل شوي، د هغوی زیاته برخه د دین په اصلي موخه کې ندي بریالي شوي، ځکه چې په یولک او څلورویشت زره پیغمبرانو کې یوازې یو څو پیغمبرانو حکومت کړی. د پیغمبر صلی الله علیه وسلم نه پرته یوسف علیه السلام، موسی علیه السلام، یوشع علیه السلام، سمویيل علیه السلام، داود علیه السلام او سلیمان علیه السلام هم حکومت کړی دی؛ خو له دوی پرته د نورو پیغمبرانو حکومت کول نه دي ثابت شوي. نو آیا د دې معنا دا شوه چې هغه نور پیغمبران په خپلو اصلي موخو کې ناکام شوي؟ کوم خلک چې سیاسي غلبه د دین اصلي موخه ګڼي دوی په دې کې هم فکر نه کوي چې له دوی نه یو هم د دین په اصلي موخو کې ندی بریالی شوی.

نو په دین کې د سیاست ارزښت پرخپل ځای دی، خو که سیاست د دین اصلي موخه وګرځول شي، په عباداتو کې به د غوره او ناغوره عبادتونو پر نظام بدې اغېزې ولري.

له بلې خوا دین یوازې د لمانځه تر بریده محدود شمېرل او له نورو څانګو یې ناخبره کېدل هم ستره تېروتنه ده. حقیقت دا دی چې د دین ګڼې څانګې دي چې په هغو کې سیاست هم یوه مهمه څانګه ده، او له دې ناخبرې او له دین نه بهر شمېرل یې هم لویه ګمراهي ده. پر دین د عمل کولو د پاره د اسلام په ټولو حکمونو عمل کول ضروري دي، که هغه د هرې څانګې سره تړاو لري. هو ! دا خبره سهي ده چې د دین په کارونو کې په طبعي توګه یو شخص په ټولو څانګو کې برخه نشي اخیستلی، ځکه نو د دې د پاره د کارویش ضروري دی چې ځیني خلک دې د دین په یوه څانګه کې کار کوي، او ځیني دې په نورو څانګو کې کار کوي. او څوک چې د دیني کار د پاره یوه څانګه غوره کړي، په هغې کې خپل ډېر وخت تېروي او تر خپله وسه زیار باسي او خپل ټول پام همدې ته ور اړوي، او که څوک بله څانګه غوره کړې هغه بیا په هغې کې خپل



زیات وخت تېروي او خپل ټول پام یې همدې یوې څانګې ته ځانګړی کړی وي. په دې کې هیڅ ستونزه نشته، ستونزه دا ده چې څوک د دین یوه څانګه د ځان د پاره غوره کړي او بیا هغه د دین اصلي موخه بولي سره له دې چې هغه اصلي موخه نه وي بلکې لکه څنګه چې د دین ډېر کارونه دي همداسې هغه هم یو کار دی. مثلا یو کس د سیاست څانګه په دې باور د ځان د پاره غوره کړې چې کولی شي په ښه توګه د حالاتو سره سم په دې څانګه کې ښه خدمت وکړای شي، او خپل ځان دې کار ته وقف کوي؛ نو بې شکه و دې کړي؛ خو که دا ووایي چې سیاست د دین اصلي موخه ده؛ نو دا ډېره ستره تېروتنه ده، سره له دې چې د سیاست لار غوره کول او د دې د پاره هلې ځلې کول دا په خپله د دین یوه برخه ده.



## ۲. د سیاست په اړه اسلام څه لارښوونې کوي؟

دوهمه خبره داده چې بې شکه اسلام د سیاست په اړه ډېرې لارښوونې کړې دي؛ خو د حکومت کومه تفصیلي نقشه یې نده ټاکلې. اسلام اصول او قوانین ټاکلي دي؛ خو دا اصول به څه ډول نافذیږي؟ او د دې عملي بڼه څنګه ده؟ د دې تفصلي جزئیات اسلام ندي ټاکلي بلکې دا یې د هرې زمانې پوهانو او د بصیرت څښتنانو ته پرې ایښي دي. کوم اصول چې الله تعالی د شریعت له لارې موږ ته ښوولي دي هغه نه بدلیدونکي دي. په دې کې هیڅ ډول بدلون نشي راتلی، هغه لارښوونې څرګندې دي؛ خو که د همدې لارښوونو او اصولو په رڼا او پاملرنه کې مسلمان پوهان په خپل منځ کې له مشورې کولو وروسته یوه تفصیلي تګلاره جوړه کړي دا روا ده.

د بېلګې په ډول قرآن کریم وایي: "وَ اَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ" او ترخپلې وسې د هغوی د مقابلې د پاره ښه ځواک چمتو کړئ. دا اصول قرآن بیان کړي دي او د دې څه مثالونه یې هم روښانه کړي دي؛ خو دا تفصیل یې ندی بیان کړی چې پلانی او پلانی ډول وسله جوړه کړئ، دا خبره یې د هر دور پوهانو ته پرې ایښې ده چې د خپلو خپلو حالاتو، پوهې، تجربو او اړتیاوو سره سم د ځواک ترلاسه کولو هڅې وکړي.

دا رنګه د سیاست په اړه هم اسلام اصولي لارښوونې کړې دي؛ له تېرو تفصیلاتو سره سم حکومت څومره محکمې جوړې کړي؟ اجرائیه واک باید څه ډول وویشل شي؟ وزیران دې وي او که نه وي؟ که وي نو څومره به وي؟ په دې د مشورې تګلاره باید څه ډول وي؟ دا تفصیلات اسلام ندي ټاکلي، ځکه چې داد مباحاتو دائره ده، په دې دائره کې د هر وخت پوهان حالاتو ته په کتنې سره کار کولی شي، نو چې کله موږ د اسلامي سیاست اصول بیانوو؛ نو دا هیله دې نه کیږي چې د اسلامي امت په فقهاوو کې به دا تفصیلات شوي وي چې



مقننه یوه جرګه وي او که دوه، یا د کابینې شمېر څومره دی؟ دا تفصیلات نه په شریعت کې شته او نه هم د دې اړتیا شته.

د شریعت احکام په هغه ځای کې وي چېرې چې شریعت دا محسوسوي چې که دا خبره د خلکو عقل او فکر ته پرېښودل شي؛ نو خلک بې لارې کیږي. په مباح کارونو کې زیاتره معاملات د انسان عقل او پوهې ته پرېښودل شوي دي. دا رنګه د اسلام سیاسي اصول که له یوې خوا یې بدلون ناشونی دی له بلې خوا دومره روښانه دي چې پدې باندې د عمل کولو تګلاره د وخت او ځای له غوښتنو او مصلحتونو سره سم ټاکل کیدلی شي، او همدې اصولو ته په پام سره په دې کې په بېلا بېلو زمانو کې بدلون هم راتلی شي. نو موږ چې کله د اسلامي سیاست خبره کوو له هغې نه مراد داسې تړلې او کړکېچنه حکومتي تګلاره نده چې ټول جزئي تفصیلات یې د تل د پاره جوړ کړل شوي وي، بلکې له دې نه مراد هغه بنسټیز تصورات، سیاسي اصول او قوانین دي چې قرآن او سنت ټاکلي دي.

په راتلونکو څپرکو کې به ان شاء الله د هغو اصولو او بنسټونو د څېړلو کوښښ کوو چې شریعت ټاکلي دي.

# دویم څپرکی

## د حکومت اسلامي تصور

د سیاست او حکومت په اړه چې اسلام کوم اصول بیان کړي دي، پر هغو تر هغه څوک سهي نشي پوهېدلی څو د حکومت سهي تصور ونه پېژني. په لومړۍ برخه کې مو ډېر بېلا بېلو سیاسي اندونو ته کتنه وکړه چې د حکومت پیل او د هغه د موخو په اړه مختلفو فیلسوفانو د خپلو افکارو او گومان سره سم بیان کړي دي. د دې برعکس اسلام چې د حکومت کوم تصور وړاندې کړی دی، هغه تر دې ټولو جلا دی، او ترڅو چې دا تصور په بشپړه توگه ونه پېژندل شي تر هغو د اسلام سیاسي احکامو شالید پېژندل گران دي.

### لومړی بنسټ، د الله تعالی حاکمیت

د اسلامي تصور تر ټولو مهم بنسټ چې د بنسټونو بنسټ ورته وایي دادی چې پر دې کائناتو اصلي حاکمیت یوازې د الله تعالی دی، او د دنیا واکمنان یوازې د دې حاکمیت په منلو کې حکومت کولی شي.

دا هغه اصولي بنسټ دی، چې نه پکې د اختلاف ځای شته، نه د اجتهاد او نه هم څوک کولی شي په کوم پړاو کې یې هېر کړي، او نه پر دې باندې کوم جوړ جاړی کېدلی شي. دا د اسلامي دستور تر ټولو لومړنی او بنسټیزه ماده ده چې قرآن کریم په مختلفو الفاظو سره په دوه ټوکړو کې بیان کړې ده: اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ.

واکمني له الله پرته د بل چا نه ده.

اَلَا لَهُ الْحُكْمُ(۱)

یاد ساتئ ! واکمني یوازې د هغه ده.

۱) سورة الانعام:۶۲



اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَ الْاَمْرُ(۱)

یاد ساتئ ! خلقت هم هغه لره دی او حکم هم د هغه دی.

وَ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ(۲)

او د اسمانونو او ځمکې واکمني یوازې د الله ده.

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ(۳)

ووایه، اې الله ! د واکمنۍ څښتنه ! ته چې هرچاته وغواړې واکمني ورکوې.

دا ټول ایاتونه دا حقیقت څرگندوي چې په دې کائناتو کې حاکمیت یوازې د الله تعالی دی، او په سیکولر جمهوریت کې بیا د حاکمیت حق ولس ته ورکړل شوی دی. حاکمیت د بل چا د پابندۍ کولو پرته د حکم جاري کولو او پرېکړې کولو کلي حق ته وایي. دا حق له الله تعالی پرته د بل چا نه دی، او که څوک په دې معنی بل څوک حاکم وگڼي؛ نو هغه په حقیقت کې شرک وکړ.

که څه هم د تیوکراسي اصلي مانا هم داده چې حاکمیت یوازې د الله تعالی دی، خو لکه مخکې مو چې وویل په عیسائیت، یهودیت او هندو مذهبونو کې د دې تصور د سهي پلي کولو هیڅ لار نه وه، له همدې امله دوی دا سهي تصور گډوډ کړ او د مذهبي مشرانو په حاکمیت یې بدل کړ، پایله یې دا شوه چې نن هم څوک د تیوکراسي غږ پورته کړي ؛نو هیڅوک ترې د الله تعالی د حاکمیت مفهوم نه اخلي، بلکې د همغه مذهبي مشرانو واکمني ترې فهموي. او د سیاست په نورو کتابونو کې هم له دې څخه د مذهبي مشرانو واکمني اخیستل شوې ده، او څرگنده ده چې د الله تعالی پر ځای مذهبي مشرانو ته د

۱) سورة الاعراف:۵۴
۲) سورة آل عمران:۱۸۹
۳) سورة آل عمران:۲۶

حاكميت رتبه وركول تر ټولو بد شرک دی چې قرآن کريم يې بدي په دې الفاظو بيان کړې ده: اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَ رُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ(۱)

ژباړه: هغوی الله پرېښود او خپل ملايان او درويشان يې په خدايي و نيول.

نو چې کله مونږ د اسلامي سياست د بنسټونو بنسټ په توګه د الله تعالی ستر حاكميت يادونه کوو بايد دا خبره روښانه وي چې د دې د مذهبي مشرانو له هغې واكمنۍ سره هيڅ ډول تړاو نشته چې عيسايان او نور مذهبونه يې د تيوكراسي په نوم يادوي، او هغه تيوكراسي دومره بدنامه شوه چې اوس يې خلک يوازې نوم اورېدل هم نه خوښوي. د دې برعکس په اسلام کې د الله تعالی حاكميت په خپل سهي مفهوم سره اخيستل شوی دی، او د دې څرګنده معنا داده چې الله تعالی د وحي له لارې کومې لارښوونې تر هر انسان پورې رسولي دي، که د "وحي متلو" له لارې وي او که د "غيري متلو" هغه د اسلامي حکومت لومړنی مأخذ دی، او د دې پرضد حکومت نه کوم قانون جوړولی شي او نه هم کوم اقدام کولی شي.

لنډه دا چې د الله تعالی حاكميت منل يوازېنی هغه بنسټ دی چې د اسلام سياسي تصور د سيكولر جمهوريت څخه بېلوی. په سيكولر جمهوريت کې پارلمان د ولس د نماينده په توګه دومره مطلق خپلواکه دی چې څه ډول قانون غواړي منظورولی يې شي. که چېرې د يو هيواد دستور د پارلمان پر قانون جوړونې کوم بنديز ولګوي؛ نو دوی کولی شي دا بنديز هم په دستور کې ترميم کړي او چې څه غواړي هغه وکړي. د دې برعکس د اسلام نه بدلېدونکی دستور قرآن او حديث دی، چې له دې پرته نه کوم قانون جوړېدلی شي او نه د دستور داسې ماده منظورېدلی شي چې د قرآن او حديث له حکم سره ټکر ولري.

(۱) سورة التوبة:۳۱



لويديځوال د ډېر تعصب له امله د مسلمانانو هيڅ يادونه نه کوي، کله چې دوی د يوې موضوع په اړه د بېلا بېلو نظرونو تاريخ بيانوي؛ نو په هغې کې د اسلامي لارښوونو او يا د مسلمانو فيلسوفانو د خدمتونو هيڅ يادونه نه کوي. په سياسي اندونو کې هم همداسې ده، هغوی د سياسي اندونو تاريخ له ارسطو او افلاطون څخه پېلوي بيا عيسايي دور ته تر رسېدو وروسته ټوپ وهي او "والټير"، "مونټيسكو" او "روسو" ته ورسيږي، او د دې خبرې هيڅ يادونه نه کوي چې په دې منځ کې يو اوږده اسلامي واكمني تېره شوې ده چې په هغې کې د سياست يو بېل تصور وړاندې شوی دی. هغوی چې کله د خدايي اصل نظريه بيانوي، تر هغې لاندې يوازې د هغې تيوكراسي خبرې کوي چې د يهودو، عيسايانو او هندوانو له تيوكراسي سره تړاو لري، خو د دې خبرې هيڅ يادونه نه کوي چې په اسلام کې د الله تعالی حاكميت څه ډول د سياست بنسټ ګرځول شوی دی؟ او تر دې بنسټ لاندې چې راشده خلافت جوړ شوی دی او دا رنګه تر هغو وروسته چې مسلمانانو کوم حکومتونه جوړ کړي دي د هغوی بنسټ څه و؟ په حقيقت کې دا د هغه تعصب نتيجه ده چې دا خلک يې له اسلام او مسلمانانو سره ساتي، کنه نو که يوازې پر مؤرخانه ديانت باندې عمل وشي؛ نو زيات نه زيات د يوې نظريې په توګه خو دې دا خبره ياده شي چې د اسلام سياسي تصور څه دی، او تر دې تصور لاندې څه ډول حکومتونه منځ ته راغلي دي؟

په هر صورت، د الله تعالی پر حاكميت ايمان لرل تر ټولو مهم بنسټ دی چې د دې ترمنلو وروسته پخپله ډېر حقائق را څرګندېږي. اوس که تاسو د حکومت د پيل په اړه عمراني معاهده را واخلئ چې د حکومت د پيل تر ټولو غوره نظريه ګڼل کېږي. د الله تعالی د حاكميت په اصولو باندې دا بېخي له منځه ځي، او له دې څخه مالومېږي چې په حقيقت کې عمراني معاهده هيڅ شی نه دی، او حقيقت دا دی چې دا نظريه يوازې داسې يوه ذهني اختراع ده چې هيڅ

عملي ثبوت نه لري. پوښتنه داده چې د عمراني معاهدې پر وخت څوک موجود و؟ دا معاهده کله شوې ده؟ د کومو قومونو تر منځ شوې ده؟ د دې تړون غړي څوک وو؟ دا پوښتنې هيڅوک په ډاډه زړه نشي ځوابولی. دا يوازې يو تصور دی چې شايد داسې شوي وي. او دا هغه خبره ده چې په اړه يې قرآن کريم وايي: مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۖ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُوْنَ(۱)

ژباړه: دا خلک په دې اړه هيڅ علم نه لري، د دوی کار داد ی چې اټکلونه وکړي.

د دې برعکس په اسلام کې د الله تعالی د حاکميت اصول په څرګندو ټکو داسې بيانيږي چې کله الله تعالی انسان پيدا کړ؛ نو هغه وخت يې دا اعلان وکړ چې: إِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيْفَةً(۲)

ژباړه: زه په ځمکه کې د يو نائب راپيدا کونکی يم.

د دې څرګند مطلب دادی چې اعلی حاکميت يوازې د الله تعالی دی، هغه لومړنی انسان "آدم عليه السلام" ځمکې ته د خليفه او نائب په توګه راليږلی دی، تر څو د حکومت چارې يوازې د الله تعالی له لارښوونو سره سم پرمخ بوزي او خپل اختيارات د هغه د احکامانو په چوکاټ کې وکاروي. نو آدم عليه السلام لومړنی حاکم او نور خلک محکوم وو، په همدې توګه له لومړني انسان سره يو ځای حکومت هم منځ ته راغلی دی؛ خو د دې حکومت بنسټيز اصل دا دی چې حاکميت يوازې د الله تعالی دی او کوم حکومت چې د هغه له لارښوونو سره سم نه وي د منلو وړ نه دی، په دنيا کې چې څوک حاکم شي، هغه په حقيقت کې د الله تعالی د ستر حاکميت لاندې دی او د هغه نائب دی چې خليفه هم ورته وايي. همدا لامل دی چې په اسلام کې د اميرالمؤمنين حکومت ته خلافت او خپله ده ته خليفه ويل کيږي.

۱) سورة الزخرف:۲۰

۲) سورة البقره:۳۰



# د خلافت معنا

په قرآن کريم کې د خلافت يا خليفه کلمې په ډېرو ځايونو کې راغلي دي. مفسرين وايي چې د خدايي خلافت دوه معناوې دي. يوه معنا يې داده چې کوم انسان پر يو الله ايمان لري هغه د الله تعالی خليفه دی، د انسان د ژوند اصلي موخه داده چې د الله تعالی حکمونه ومني او په هر کار کې د هغه اطاعت وکړي او د هغه جل جلاله له اخلاقو سره تشبيه غوره کړي چې دېته "تخلق باخلاق الله" وايي. د دې معنا له مخې هر مسلمان د الله تعالی خليفه دی، او دا غوښتنه ترې کيږي چې په همدې معنا د الله تعالی خلافت غوره کړي. د ډېرو مفسرينو رايه داده چې په قرآن کريم کې د "إِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيْفَةً " څخه همدا معنی اخيستل شوې ده، دا انفرادي خلافت دی او په دې معنی هر انسان د الله جل جلاله خليفه دی چې په خپل ټول ژوند کې به د هغه د حکم پابند او په "تخلق باخلاق الله" باندې مأمور وي.

د خلافت دويمه معنا داده چې د الله تعالی د حاکميت کومې غوښتنې او لارښوونې دي، د هغو د عملي کولو د پاره په دنيا کې د الله تعالی يو نائب وي، او د هغه په نيابت او خلافت کې پر خلکو واکمني کوي چې قرآن کريم يې د داود عليه السلام په اړه داسې بيانوي: إِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْأَرْضِ (ته موږ په ځمکه کې خليفه کړې)(۱).

کله چې موږ خلافت د سياست په توګه يادوو؛ نو زموږ موخه همدا دويمه معناوې. د دې معنا له مخې په اسلام کې چې څوک حاکم دی، د هغه په اړه بنسټيز اصول دادي چې دی بالذات حاکم نه دی، بلکې د الله تعالی خليفه دی، اوس چې دی خليفه دی؛ نو د دې لازمي پايله دا شوه چې دی به پخپل حکومت کې د الهي احکامو تابع وي. له همدې ځايه د اسلامي سياست تصور او د نورو

۱) سورة ص:۲۶

نظرونو ترمنځ یو څرګند حد ټاکل کیږي چې په بې دینه نظامونو کې واکمن خپل ځان د الهي احکامو پابند نه بولي، خو د خلیفه لپاره ضروري ده چې د خپل اصلي حاکم د لارښوونو په رڼا کې احکام جاري کړي.

دلته دا خبره د یادولو وړ ده چې د الله تعالی اصلي خلیفه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم و، تر هغه وروسته چې راشدین خلفاء راغلل هغوی د ده په واسطه خلفاء وګرځېدل، له همدې امله به هغوی ځانونو ته د "خلیفة الله" پرځای "خلیفة رسول الله" ویل. یو ځل ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته چا وویل: یاخلیفة الله! هغه ورته وویل: "لست خلیفة الله، ولکنی خلیفة رسول الله صلی الله علیه وسلم".(۱) زه د الله خلیفه نه یم؛ بلکې د رسول الله خلیفه یم.

ابن خلدون رحمه الله ته خدای پاک عجیب استعداد ورکړی و، دې د الله بنده چې په مقدمه کې پر کومه موضوع بحثونه کړي، هغه د کمال نه ډک بحثونه دي، مقدمه په یو ټوک کې ده خو د ژوند داسې برخه نشته چې په هغې کې پرې بحث نه وي شوی. پر دې موضوع باندې هم ابن خلدون پخپله مقدمه کې لیکي چې حکومت درې ډوله دی:

(۱) طبعي واکمني (۲) سیاسي واکمني (۳) خلافت

ابن خلدون رحمه الله د طبعي واکمني تعریف داسې کوي: "حمل الکافة علی مقتضی الغرض والشهوات" یعني د خپلې موخې او خواهشاتو له غوښتنو سره سم پر نورو واکمني کول چې د مطلق العنان پاچایانو همدا تګلاره وه.

دویم ډول سیاسي واکمني ده چې د هغې تعریف داسې کوي: "حمل الکافة علی مقتضي النظر العقلي فی جلب المصالح الدنیویة ودفع المضار" ټول خلک له خپلو عقلي فکرونو سره سم د دنیاوي مصلحتونو د ترلاسه کولو او

(۱) تحریر الاحکام في تدبیر اهل الاسلام، د بدرالدین بن جماعة، مخ:۵۷ چاپ: قطر



زیانونو څخه پر ځان ساتلو مجبوره کول. په دې کې سیکولر ډیموکراسي هم داخله ده، ځکه چې له دوی سره کوم تل پاتي ارزښت نشته کوم کار چې عقل غوره و ګڼي هغه اختیاروي.

دریم ډول خلافت دی، چې ابن خلدون یې داسې تعریفوي: "حمل الکافة علی مقتضی النّظر الشرعيّ فی مصالحهم الاخرویة والدنیویة الراجعة الیها"

خلک د شریعت له غوښتنو سره سم برابرول چې په دې سره د دوی د دنیا او اخرت دواړه مصلحتونه پوره شي او هغه دنیوي مصلحتونه پوره شي چې د هغو وروستی پایله هم د آخرت ګټه وي. "(۱)

که په سهي توګه وکتل شي؛ نو د حکومت ټولې بڼې په دې درې ډولونو کې رانغښتي دي. په یو روایت کې راځي چې حضرت عمر رضی الله عنه خلکو ته وویل: "زه نه پوهیږم چې زه پاچا یم او که خلیفه یم؟" یو تن چې له ده سره په مجلس کې ناست و ورته وویل: اې امیر المؤمنین! د دواړو ترمنځ توپیر شته. عمر رضی الله عنه وپوښتل: څه توپیر دی؟ هغه په ځواب کې ورته وویل: خلیفه هغه دی چې څه اخلي په حقه یې اخلي، او بیا هغه پر حق ځای ایږدي، او پاچا هغه دی چې پر خلکو ظلم کوي، له یوه یې اخلي او بل ته یې ورکوي. په دې سره حضرت عمر رضی الله عنه چوپ شو. (۲)

څرګنده ده چې په حقه اخېستلو او په حقه ورکولو کې حقوق الله او حقوق العباد دواړه راځي؛ نو د ټولو حقوقو پر خپلو خپلو ځایونو اداکونکی هغه څوک وي چې د الله تعالی د احکامو منونکی وي او ده ته خلیفه وایي.

(۱) مقدمة ابن خلدون، الباب الثالث، الفصل الخامس والعشرون ص:۱۸۹
(۲) طبقات ابن سعد ټوک ۳ مخ ۲۸۵ ذکر استخلاف عمر

## د حکومت موخې

په ننني نړۍ کې چې د حکومت موخې بیانیږي، په هغو کې یوازې دومره ویل کیږي چې حکومت معنی دا چې زیات نه زیات خلکو ته خوښي برابرول، او یا د دوی د حقوقو څه ناڅه ساتنه کول. خو تاسو وینئ چې په ننیو دودیزو نظرونو کې یوه سیاسي نظریه هم دا نه وایي چې د حکومت په موخو کې دا خبره هم شته چې د ولس روزنه وکړي، نیکي عامه کړي او د بدیو مخنیوی وکړي. دا خبري په یوه حکومت او یا سیاسي نظام کې هم نشته، او د دې اصلي لامل دا دی چې په دې نظرونو کې د بدیو او نېکیو کوم ځانګړی تصور نشته. په ننیو فیشن جوړونکو فلسفو کې بدي او نیکي محض یوه زیاتي اصطلاح (**relative term**) ده. معنا دا چې ټولنه د خپلو دودونو له مخې دا خبره جوړوي چې کوم شی بد او کوم ښه دی او ضروري نده چې یو شی یو مهال بد ګڼل کېده هغه دې اوس هم بد وي، که په یوه ټولنه کې د بد شي کارول زیات شي او خلک یې ښه وګڼي؛ نو هغه بد شی به ښه ګڼل کیږي. دا رنګه که په یو هیواد کې خلک یو شی ښه وګڼي؛ نو ضروري نه ده چې په بل هیواد کې دې هم هغه ښه وګڼل شي. لنډه دا چې په دې نظام کې د مطلق خیر او مطلق شر هیڅ تصور نشته؛ نو ځکه د حکومت په موخو کې د نیکیو او ښو چارو د خپرولو او له بدیو څخه ځان ساتلو هیڅ یادونه نه کیږي.

د دې برعکس په اسلام کې د نېکي او بدي بشپړ معیار شته دی، د دې کائناتو خالق چې کوم شی بد ګڼلی دی هغه به بد وي او کوم یې چې ښه ګڼلی دی هغه به ښه وي، همدا لامل دی چې د خلافت په نظام کې د حکومت په بنسټیزو موخو کې تر ټولو لومړنی او مهم کار دا دی چې حکومت به د نیکیو عامول او د بدیو مخنیوی کوي. ځکه خو قرآن کریم د حکومت موخې په



ځرګندو ټکو کې بیان کړي دي، الله تعالی فرمایي: اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَ اَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَ نَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ وَ لِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ(۱)

ژباړه: دوی هغه خلک دي چې که موږ په ځمکه کې قدرت ورکړو، لمونځ تر سره کوي، زکات ورکوي، د نیکي امر کوي او له بدي نه ایسارول کوي او د ټولو چارو خاتمه الله لره ده.

قرآن کریم په زغرده ویلي دي چې د حکومت موخې یوازې دا نه دي چې خوښي ترلاسه شي، لکه د حکومت په ځینو نظرونو کې چې بیان شوي دي، ځکه چې خوښي یو مبهم شی دی، د بېلا بېلو طبیعتونو له پلوه په مختلفو شیانو کې خوښي تر لاسه کېدای شي. څوک چې جرم خوښوي هغه به په جرم کولو سره خوښي ترلاسه کوي. نو دا یوه مخلوط شوې کلمه ده چې هر ډول معنا ته کارول کیږي.

قرآن کریم چې د یو غوره حکومت لپاره کومې موخې بیان کړي دي، که پر هغو سوچ وشي همدا د حکومت اصلي موخې پوره کولی شي.

## لمونځ قائمول

په اسلام کې تر ټولو لومړی د لمونځ قائمولو امر شوی دی. ښايي د سیکولر پلویان دا کار له سیاست څخه بیل وګڼي؛ خو حقیقت هغه څه دی چې قرآن کریم بیان کړی دی. پر افرادو باندې د یو حاکم هیئت اړتیا ځکه اړینه ده چې که هر فرد د خپلې خوښې ترلاسه کولو لپاره ازاد پرېښوول شي؛ نو سخته ګډوډي به رامنځ ته شي؛ نو حکومت ځکه ضروري دی چې خلک د نظم او ضبط پابند وګرځوي او ځرګنده ده چې یوازې د قانون د ډنډې په زور دا کار نه کیږي. له همدې امله لومړی د فکري روزنې اړتیا شته چې په دې اړه تر ټولو اغېزناکه

(۱) سورة الحج:۴۱.

تګلاره داده چې خلک د خپل رب مخ ته ودرېږي او په زړونو کې یې الله تعالی ته د هرعمل د ځواب ویلو احساس پېدا کړل شي، دا هغه احساس دی چې د شپې په تیاره او د ورځې په رڼاکې هم باید ورسره مل وي. د دې احساس هر وخت په پام کې ساتلو سره د لمانځه پابندي ډېر مهم رول لوبولی شي.

ځکه خو د نیکانو واکمنو په موخو کې تر ټولو لومړی د لمانځه قائمولو یادونه شوې ده. او پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي چې لمونځ د دین ستن ده، او هغه د صحابه وو په روزنه کې لمونځ تر ټولو لومړی قدم ګڼلی و، تل به یې د لمانځه امامت پخپله کاوه، او د خپل مبارک ژوند په وروستۍ ورځ چې کله یې د ډېرې کمزورتیا له امله امامت نشو ورکولی؛ نو جَمعې ته را ونه وت، د خپلې خونې پرده یې پورته کړه او چې ویې لیدل ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلکو ته لمونځ ورکوي؛ نو پر دې یې ډېره خوښي څرګنده کړه. دغه راز راشدینو خلفاوو چې د دوی خلافت له هر اړخه د اسلامي نظام یوه بېلګه ده، تر ټولو زیاته پاملرنه امامت ته کوله. او امامت به یې هم پخپله ورکاوه، تر دې چې دحکومت له امیر سره د لمانځه امامت دومره وتړل شو چې د حکومت امیر نوم هم په امام سره مشهور شو، او په اسلامي اصطلاحاتو کې امامت ته امامت صغری او د حکومت مشرتابه ته امامت کبری وایي. راشدینو خلفاوو به تر ځان لاندې خلکو ته نه یوازې د لمانځه پر قائمولو ډېر ټینګار کاوه بلکې هغه یې د مسؤلیت له مهمو دندو څخه ګرځولې و. امام مالک رحمه الله پخپل کتاب "موطأ" کې داسې روایت کوي: عن نافع مولى عبدالله بن عمر أن عمر بن الخطاب رضى الله عنه كتب إلى عُمّاله أن أهم أمركم عندى الصلواة، فمن حفظها و حافظ عليها حفظ دينه، ومن ضيّعها فهو لماسواها أضيع.(۱)

[1]) موطا امام مالک، وقوت الصلواة، ص:۲ج۱



ژباړه: د عبدالله بن عمر رضی الله عنه ازاد شوی غلام نافع رحمه الله وايي: "حضرت عمر رضی الله عنه خپلو والیانو ته ولیکل چې زما په فکر ستاسو په ټولو کارونو کې تر ټولو مهم کار لمونځ دی؛ نو څوک چې د لمانځه ساتنه او پابندي وکړي هغه د خپل دین ساتنه وکړه او څوک چې لمونځ ګډوډ کړي د هغه نور کارونه به تر دې هم ډېر ګډوډ وي.

له دې وروسته حضرت عمر رضی ا لله عنه په دې لیک کې خپلو ټولو والیانو ته د لمانځه د وختونو تفصیل ولیکلو چې لمونځونه باید په کومو وختونو کې ادا کړل شي. دا یو عادي لیک نه و بلکې یو رسمي فرمان و چې د ټولې واکمنۍ والیانو ته د امیر المؤمنین د رسمي فرمان په توګه ورلیږل شوی و.

دارنګه د حدیثو په کتانو کې راغلي دي چې د مسلمانانو درېیم خلیفه عثمان بن عفان رضی الله عنه د خپل خلافت په پیل کې د خلکو مخ ته کښېناست او هغوی ته یې د اوداسه ښودنه کوله.

دې ته ورته چلند له حضرت علي رضی الله عنه څخه هم را نقل شوی دی. ([1])

ننني ماده پرسته نظریات چې له داسې ډول نېکمرغیو څخه بې برخې دي وايي چې د لمانځه، اوداسه او نورو د سیاست سره هیڅ تړاو نشته؛ خو په اسلام کې که سیاست وي، که اقتصاد وي او یا د دنیاوي ژوند کومه بله معامله وي، د دې به هرومرو له الله تعالی سره ټینګه اړیکه او د خلکو له روحاني تربیت سره تړاو وي. لمونځ داسې رکن دی چې هر وخت د انسان په زړه کې د دې مسؤلیت جذبات راپیدا کوي چې د ده هر کار د هغه ذات تر څارنې لاندې دی چې اخر هم دی بېرته هغه ته ورتلونکی دی. همدا جذبه ده چې په سهي معنا له انسان نه انسان جوړوي او د هغه د عمل تګلاره د نظم په

[1]) سنن ابوداود ، باب صفة وضوء النبي صلى الله علیه وسلم، حدیث شمېره: ۱۰۲ تر ۱۱۱

حدودو کې ساتي. الله تعلی فرمایي: اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْكَرِ وَ لَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ (۱)

ژباړه: بې شکه لمونځ له بې حیایي او ناوړه کارو څخه اېسارول کوي او د الله یادول ډېر لوی شی دی او الله ته هغه څه معلوم دي چې تاسې يې کوئ.

په دې ایت کې دا په ګوته شوې چې لمونځ د الله تعالی یاد دی، او لمونځ په انسان کې دا احساس راپیدا کوي چې الله تعالی يې ویني او له هر کاره يې خبر دی، ځکه نو لمونځ يې له بدو کارونو راګرځوي. اوس چې کوم خلک له اصولي پلوه د دې خبرو قائل نه دي، هغوی وخت ناوخته دا مثالونه بیانوي چې پلانی سړی د لمانځه پابند و؛ خو دا او دا ناوړه کارونه يې کول.

لومړی خو په داسې مثالونو بیانولو کې په عمومي توګه مبالغې کیږي، دویم دا چې د لمونځ ګزارو او بې نمازه خلکو ترمنځ توپیر په دې اخوا دې خوا خبرو باندې نه دی، د دوی ترمنځ توپیر به د اکثریت پر بنسټ کیږي او دا یو حقیقت دی چې اوس هم ځوک د بې نمازه خلکو په پرتله د لمونځ کونکو حالات وګوري؛ نو ربښتیا هم چې په لمونځ کونکو کې دینداري، امانت او ربښتینولي د نورو په پرتله ډېره زیاته ده. او دا په داسې وخت کې چې د خلکو په ځانګړي ډول د لمونځ کونکو د روزنې د پاره کوم منظم انتظام هم نشته، که چېرې د حکومت په سطحه شریعت پلي شي؛ نو د لمانځه یوه مهمه غوښتنه داده چې د ولس دیني او اخلاقي روزنه وشي.

همدا لامل دی چې قرآن کریم د حکومت په بنسټیزو موخو کې تر ټولو لومړی د لمانځه قائمولو یادونه کړې ده.

## زکات ورکول

۱) سورة العنکبوت:۴۵



قرآن کریم د اسلامي حکومت دویمه مهمه موخه زکات ښوولی دی، له دې څخه دا خبره په ډاګه کیږي چې د حکومت موخه د واکمنو یا د امیرانو ځانګړي طبقې ته ډاډ ورکول نه دی، بلکې موخه يې دا ده چې د الله د حکم په عملي کولو سره د غریب ولس د اقتصادي حالت د ښه کولو کوښښ وکړل شي. له بلې خوا د انسان د بدو عملونو او بد اخلاقیو یو لوی لامل د مال سره مینه ده. زکات دا مینه تر خپلې ولکې لاندې ساتي او د خود غرضي پرځای له نورو سره د مرستې جذبات پیدا کولو یوه لویه ذریعه ده. دریم دا چې لمونځ که د انسان په ذاتي کړنلاره کې اخلاص راپیدا کوي او روحاني روزنه يې کوي، زکات د ده په مالي کړنلاره کې د الله تعالی څخه وېره او روحانیت پیدا کوي.

## امر بالمعروف او نهي عن المنکر

د اسلام دریمه لویه موخه امر بالمعروف (پر نیکي امر کول) او نهي عن المنکر (له بدیو اېسارول) ده، دا کار پخپله درجه کې پر هر مسلمان فرض کړل شوی دی، الله تعالی فرمایي: كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ (۱)

ژباړه: تاسو یو غوره امت یاست (له هغونه) چې خلکو ته رابرسېره شوي دي چې د ښېګړې امر کوئ او له بدیو اېسارول کوئ او په الله ایمان لرئ.

په حدیثونو کې د امر بالمعروف او نهي عن المنکر مختلفې درجې بیان شوي دي، پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي: من رأی منکم منکرا

۱) سورة ال عمران:۱۱۰.

فالیغیرّ بیده، فإن لم یستطع فبلسانه، فإن لم یستطع فبقلبه وذلـک أضـعف الإیمان.(۱)

ژباړه: له تاسو (مؤمنانو) که څوک بد کار ووینې؛ نو په لاس دې منع کړي، که د لاس وسه یې نه وي؛ نو په ژبه دې منع کړي او که د ژبې وسه یې هم نه وه؛ نو په زړه کې خو دې بد وګڼي او دا وروستۍ د ایمان تر ټولو ټیټه درجه ده.

په دې حدیث کې د امربالمعروف او نهي عن المنکر درې درجې بیان شوي چې فقهاء یې داسې تفصیل کوي: "په لاس خلک له بد کاره اړ ایستل د هر مسلمان مسؤلیت دی؛ خو په دې شرط چې په نتیجه کې یې ده ته د یو داسې تکلیف رسولو اندېښنه نه وي چې د ده له وسه بهر وي، ځکه چې په یو بل حدیث کې راغلي دي، عبدالله بن عمر رضی الله عنه وایي: یوځل ما له حجاج بن یوسف نه داسې خبره واورېدله چې هغه ماته ډېره بده ښکاره شوه، زما په زړه کې راوګرځېدل چې ځواب یې ووایم؛ خو بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه وینا رایاده شوه چې ویل یې: "لا ینبغي للمؤمن أن یُذّل نفسه" (مؤمن ته نه ښایي چې ځان ذلیل کړي) ما وپوښتل چې د خپل نفس ذلیل کول څنګه وي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وویل: "یتعرض من البلاء مالا یُطیق" (له داسې بلا سره ځان مخ کړي چې دی یې زور نه لري) (۲)

خو بد کار په زړه کې بد ګڼل د هر چا دنده ده، او دلته ځیني علماء دا ټکی په ګوته کوي چې بد کار په زړه کې بد ګڼل هم د حدیث د دې ټکي لاندې راځي چې "فلیُغیّره"، او د دې مطلب دادی چې دی دې په زړه سره هم هغه منع کړي،

۱) رواه مسلم عن ابی سعید الخدري رضی الله عنه، کتاب الایمان، باب بیان کون النهي عن المنکر من الایمان. حدیث:۱۸۸

۲) رواه البزار والطبراني فی الکبیر والاوسط کما فی مجمع الزواید، فمن خاف فانکر بقلبه ج۷ص۵۳۹، حدیث:۱۲۱۲۹



او په دې کې دا اشاره ده چې بد کار دې داسې بد وګڼل شي چې په زړه کې یې ورسره نفرت پیدا شي او د هغه بدي په ژبه څرګنده کړای شي او بیا د دې پرضد هلي ځلي پیل کړي، تر دې چې بدي له منځه یوسي.

خو هغه بدکارونه چې له منځه وړل یې د لاس سره اړه لري، د دې امر واکمنو ته دی، او په دې اړه فتاواعالمګیري داسې وایي: "ویقـال: الأمـر بالمعروف بالید علی الأمراء، و باللسان علی العلماء، و بالقلب لعوام الناس، وهو اختیار الزندیستي. کذا فی الظهیریة" (۱)

ژباړه: ویل کیږي چې په لاس امر بالمعروف د واکمنو کار دی، او په ژبه د علماوو کار دی، او په زړه کې بد ګڼل د عوامو کار دی.

او له عوامو څخه مراد ټول خلک دي، څوک چې په هرځای کې هر ډول واک ولري هغه دا مسؤلیت لري چې بد کار په لاس منع کړي، مثلا یو تن د کورنۍ مشري په غاړه لري، هغه د خپلې کورنۍ واکمن دی، پر ده لازم دي چې په خپلې کورنۍ کې بد کار ووینې نو هغه دې پخپل واک لرې کړي، څوک چې پر یوه اداره واکمن وي هغه دې د یو واکمن په توګه پخپله اداره کې د بدو کارونو مخنیوی کوي، او په دې کار کې تر ټولو زیات رول د حکومت د مشر دی چې هغه ته کلي اختیار هم ور په برخه دی، له همدې امله د هغه کار تر وعظ او نصیت پورې محدود نه دی، پر نوموړي فرض دي چې د خپل حکومت ټول وسائل په کار واچوي او د هر ډول بدو کارونو مخنیوی وکړي.

له دې امله چې په لاس امربالمعروف او نهي عن المنکر کول تر ټولو لوړه درجه ده او له واکمن پرته بل چاته ګرانه ده؛ نو دا دنده حکومت ته ورسپارل شوې ده، او په دې ایت کې دا کار د حکومت له بنسټیزو موخو شمېرل شوی

۱) فتاوای عالمګیریه، کتاب الکراهیة، باب۱۷ټوک ۵ مخ:۳۵۳

دی؛ نو د دې دوو اصطلاحاتو په مټ دې د قانون جوړونې او اجرائیه احکامو یو څرګند بنسټ جوړ کړل شي.

لکه مخکې مو چې ورته اشاره وکړه، په سیکولر ډیموکراسۍ کې د معروف او منکر او یا نیکۍ او بدۍ کوم بنسټیز معیار نشته. په ډیموکراسۍ کې د ژوند په کارونو کې داسې یو کار نشته چې تل پاتې حرمت ولري، بلکې د هرې زمانې خلک چې د اکثریت پر بنسټ کوم شی ښه وګڼي هغه ښه دی او چې بد یې وګڼي هغه بد دی نو ځکه د دوی په حکومتي موخو کې د بدۍ او نیکۍ کوم ټاکلی تصور نشته. ځینې کارونه یې غوره ګڼلي دي، لکه سخت دریځي نه کول، د انسان درناوی کول، د سړو او میرمنو ترمنځ مساوات او داسې نور، دا هم داسې پېچلې اصطلاحات دي چې تر اوسه یې کوم جامع او مانع تعریف نه دی شوی چې د یوه دین په رڼا کې تشریح شي. د دې برعکس قرآن کریم چې کوم شی معروف یا منکر ګرځولی دی، د هغو دوه برخې دي. یوه د معروف او منکر هغه برخه ده چې وحې ټاکلې ده، که هغه د قرآن کریم د متلو وحې له لارې شوې وي او که د رسول الله د سنتو په ذریعه شوې وي، دا د معروف او منکر هغه احکام دي چې د تل لپاره به حرام وي، د زمانې په بدلون سره یې په حکم کې هیڅ بدلون نه راځي.

د معروف او منکر دویمه برخه د دې پرځای چې الله تعالی یې پخپله وټاکي د مسلمانانو اجتماعي ضمیر ته یې پرېښې ده، لکه چې ویل شوي دي: "مارآه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن، و مارآه المسلمون قبیحا فهو عند الله قبیح."(۱)

(۱) رواه احمد وغیره عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه موقوفا برقم ۳۶۰۰، و قال محمد فی باب قیام شهر رمضان من موطاه: روی عن النبي صلی الله علیه وسلم.



ژباړه: "کوم کار چې ټول مسلمانان غوره وګڼي هغه د الله تعالی په نیز هم غوره دی، او کوم کار چې مسلمانان بد وګڼي هغه د الله په نیز هم بد دی."

که څه هم د دې مقولې په اړه محدثینو ویلي چې دا د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وینا ده. او علامه ابن جوزي رحمه الله چې په "العلل المتناهیه" کې دا روایت له کومې لارې په مرفوع ډول رانقل کړی، د هغه په سند کې د حدیثو یو واضع موجود دی؛ خو له دې سره سره ښایي دا روایت فقهاوو او محدثینو له دې امله د مرفوع په توګه راوړی وي چې که صحابي داسې یوه خبر وکړي چې له قیاس سره برابره وي، یانې د هغې په اړه دا فکر نه کیږي چې ښایي ده به دا خبره د خپلې شخصي رایې پر بنسټ کړې وي؛ نو هغه هم د مرفوع په حکم کې شمېرل کیږي، داسې به شي لکه دا خبره چې صحابي له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اورېدلې او رانقل کوي یې. همدا لامل دی چې ټولو فقهاوو کرامو دا مقوله د یو غوره اصل په توګه منلې دی. خو پر دې هم ټول فقهاء یوه خوله دي چې له دې نه مراد هغه امور دي چې په قرآن او سنت کې په منصوصې توګه نه دي رانقل شوي، او د هغې په اړه قرآن کریم کوم څرګند حکم نه وي بیان کړی، او دا هم څرګنده ده چې کوم شی قرآن او سنت بد ګڼلی دی که ټول امت سره یو شي هغه ښه نشي ګڼلی، همدا رنګه یو شی چې قرآن غوره ګڼلی وي که ټول امت سره یو شي هغه شی بد نشي ګڼلی.

له دې څرګنده شوه چې قرآن او سنت خیر او شر په دوه ډوله وېشلي دي. یو مطلق خیر (**Absolute virtue**) او بل مطلق شر (**Absolute evil**)، چې د دې په حکم او شرعي حیثیت کې کله هم تغیر نشي راتلی، او دا هغه شیان دي چې تل د قرآن او حدیث له لارښوونو سره سم شر او یا خیر دی، او د انسانانو سوچ او فکر یا قانون جوړونه پکې هیڅ ډول بدلون نشي راوستلی، لکه د لمانځه فرضیت او د شرابو، خنزیر او سود حراموالی او نور، او د خیر او شر دویم ډول اسلام د اسلامي امت ټولنیز ضمیر ته پرېښې دی چې دوی کولی

شي د اسلام په چوکاټ کې دننه د خپلو ګډو مشورو له لارې يو کار تر سره کړي او دا په هغو چارو کې چې شريعت ورته مباحات ويلي دي، او هغه يې حرام ، يا مکروه او يا فرض او سنت نه دي ګڼلي، لکه د رغوني حدود ، د اوبو شېندلو طريقه، ترافيکي اصول او د جګړييزو وسائلو بېلا بېل ډولونه. دا داسې شيان دي چې د دوی په ټاکلو کې د وخت حالات، د بېلابېلو سېمو اړتياوي او مختلفو نژادونو ته په پام سره په مختلف ډول ټاکل کېدلی شي. په دې کې هغه احکام هم شامل دي چې شريعت پکې دود او رواج معتبر ګڼلی دی. دا رنګه اسلام د ډيموکراسۍ په څېر هره معامله د حالاتو بدلون ته نه ده پرېښې بلکې هره مسئله يې پر خپل مناسب ځای اېښې ده. د انساني عقل په پام کې نيولو سره يې د ځينو داسې کړنو پابند ګرځولی دی چې يوازې په عقل کارولو سره يې انسان د کړاوونو کندو ته ورغورځوي ، او له بلې خوا کومې خبرې چې د انسان عقل او تجربو په ولکه کې راتلی شي، هغو ته يې د مقيد کولو پرځای يو پراخه چوکاټ اېښی دی چې په هغه کې دوی د خپلو حالاتو سره سم په خپل منځ کې د مشورو کولو وروسته د ځان د پاره يوه ځانګړې تګلاره ټاکلی شي.



## عدل او انصاف پلي کول

د اسلامي حکومت پنځمه موخه چې قرآن کريم يې يادونه کړې ده، هغه عدل او انصاف راوستل دي. الله تعالی داود عليه السلام ته داسې فرمايي:
يَدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْاَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَ لَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ (۱)

ژباړه: اې داوده ! موږ په ځمکه کې خليفه ټاکلی يې؛ نو د خلکو ترمنځ په حقه فيصله کوه او په هوس پسې مه ځه چې بيا به دې د الله له لارې واړوي.

دلته چې داود عليه السلام ته د خليفه په توګه د حق پرېکړې کوم حکم شوی دی، په هغه کې په ځرګندو ټکو ويل شوي چې د خلافت بنسټيزې موخې او لازمي دندو کې دا خبره هم داخله ده چې خليفه دې له خپل ولس سره د عدل او انصاف چلند وکړي. د عدل او انصاف په دې معامله کې قضايي انصاف هم داخل دی، او دغه راز اجرائي احکام د حق او انصاف پر بنسټ صادرول هم انصاف دی. دلته يو ځل بيا دا يادونه اړينه ده چې په سيکولر جمهوريت کې د عدل او انصاف تشريح هم هرڅوک د خپلې پوهې سره سم کوي، خو د قرآن کريم په اصطلاح انصاف يوازې هغه دی چې الله تعالی او د هغه رسول ورته انصاف ويلی وي، او کوم انصاف چې د الله او رسول د احکامو سره ټکر ولري، هغه انصاف نه دی بلکې د خواهشاتو پيروي ده چې په دې آيت کې داسې کار د حق پرضد بلل شوی دی ، او ګواښنه شوې ده چې داسې کار به تاسو د الله له رښتونې لارې بېلارې کړي؛ نو کومه پرېکړه چې د الله تعالی د نازل کړل شوي اياتونو سره ټکر ولري هغه انصاف نه دی، ظلم دی. په دې اړه الله تعالی فرمايي:
وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (۲)

ژباړه: او هرچا چې د الله په نازل کړي قانون فيصله ونه کړه نو همدی ظالم دی.

---

[۱]) سورة ص:۲۶.
[۲]) سورة المائده:۴۵

دارنګه له یوې خوا یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته داسې فرمایلي دي چې: وَ اِنْ حَکَمْتَ فَاحْکُمْ بَیْنَهُمْ بِالْقِسْطِ اِنَّ اللهَ یُحِبُّ الْمُقْسِطِیْنَ (۱)

ژباړه: او که فیصله دې کوله نو ترمنځه یې د عدل فیصله کوه، یقینا الله عدالت کونکي خوښوي.

او له بلې خوا ورته دا امر هم کوي، چې: فَاحْکُمْ بَیْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللهُ وَ لَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ(۲)

ژباړه: نو د هغوی ترمنځ په هغه څه فیصله کوه چې الله رانازل کړي او کوم حق چې درته راغلی له هغه نه په مخ اړولو سره د دوی په هوسونو پسې مه ځه.

لنډه دا چې په ښکاره خو هر حکومتي نظام د انصاف راوستلو دعوې کوي، او کومه تګلاره چې دوی غوره کړې وي هغه حق او انصاف بولي، خو رښتونی انصاف هغه دی چې الله تعالی او د هغه رسول ورته انصاف ویلی وي. د دې یوه څرګنده بېلګه داده چې سیکولر نظام هم د انصاف راوستلو دعوه کوي، بلکې د سیکولر پلویان په ډېر شور او ټینګار سره دا دعوه وړاندې کوي چې د قانون له نظره ټول خلک برابر دي؛ خو عملي حال داسې دی چې په ګڼ شمېر سیکولر جمهوري ټولنو کې د حکومت مشر له یو شمېر قوانینو مستثنی ګرځول شوی وي، او د هغوی په دستورونو کې دا ماده موجوده وي چې د حکومت مشر پر ضد څوک مقدمه نشي چلولی. نو دا څنګه انصاف دی!؟ او د دې په تایید کې ډېر دلائل وړاندې کیږي او دا خبره د انصاف خلاف نه ګڼل کیږي. له بلې خوا دا خبره د اسلام له عدلي تصور نه سل په سله خلاف ده. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: "إنما اهلک الذین

---

(۱) سورة المائده: ۴۲

(۲) سورة المائده: ۴۸



قبلکم إنّهم کانوا إذا سرق فیهم الشریف ترکوه و إذا سرق فیهم الضعیف أقاموا علیه الحدّ. وایمُ الله لو أنّ فاطمة بنت محمّد سرقت لقطعت یدها."(۱)

ژباړه: له تاسو نه مخکې امتونه له دې امله هلاک شوي دي چې په هغو کې به که کوم مشر غلا وکړه؛ نو هغه به یې پرېښود، او که کمزوري به غلا وکړه؛ نو پر هغه به یې حد جاري کړ. او په خدای قسم! که (نعوذ بالله) د محمد (صلی الله علیه وسلم) لور فاطمه هم غلا وکړي؛ نو هرومرو به یې لاس پرې شي.

د اسلامي حکومت په تاریخ کې ډېرې داسې بېلګې شته چې د حکومت مشر پرضد نه یوازې دعوې چلول شوې ده بلکې د هغه پر خلاف پرېکړه هم شوې ده. د حضرت علي رضی الله عنه دا کیسه ډېره مشهوره ده چې کله هغه امیرالمؤمنین و، هغه مهال قاضي شریح رحمه الله د یو یهودي او حضرت علي رضی الله عنه ترمنځ په یوه شخړه کې د امیرالمؤمنین پرضد پرېکړه وکړه. د علي رضی الله عنه زغره ورکه شوې وه، ده دا زغره له یو یهودي سره ولیدله چې د هغې د پېژنګلو هڅه یې کوله. یهودي وویل چې دا زما زغره ده او زما په ولکه کې ده. چې بالاخره خبره قاضي شریح ته ورسېدله. قاضي له حضرت علي رضی الله عنه ګواهان او غوښتل، هغه دوه ګواهان یو خپل زوی او بل "قنبر" وړاندې کړل. قاضي وویل چې د پلار په حق کې د زوی ګواهي نه منل کیږي؛ نو د یهودي په پلوي یې پرېکړه وکړه.(۲)

دا پېښه خو د راشدینو خلفاوو په وخت کې شوې ده، د خلافت راشده نه وروسته هم د قاضیانو په حالاتو کې دېته ورته ډېرې پېښې شوې دي. یو ځل عبدالملک بن مروان چې د خپل وخت خلیفه و، قاضي خیر بن نعیم رحمه الله

---

(۱) بخاري (قبیل کتاب المناقب، حدیث ۳۴۷۵) و مسلم (کتاب الحدود، حدیث ۴۳۸۷).
جامع الاصول حدیث: ۱۸۷۹

(۲) اختبار القضاة لوکیع، فی اخبار القاضي شریح، مخ: ۳۶۱

ته د خپل تره زوی پرضد دوسیه وړاندې کړه، کله چې خلیفه له قاضي سره پر چوکۍ کښېناست؛ نو قاضي دی ولاړ کړ او ورته یې وویل: هلته د خپل تره زوی سره یو ځای کښېنه. (۱)

د غه راز د ابو منصور پر ضد د نوموړي مېرمنې قاضي غوث بن سلیمان رحمه الله ته دسیه وروړاندې کړه، او د دوسیې پرمخ‌بېولو لپاره یې د ځان له طرفه یو وکیل و ټاکه. قاضي غوث رحمه الله خلیفه ته امر وکړ چې د خپلې مېرمنې له وکیل سره یو ځای پر ځمکه کښېني. بیا یې د دوسیې تر څېړلو وروسته د خلیفه پر خلاف پرېکړه وکړه.

نن په ډېرو جمهوري هیوادونو کې د حکومت مشر (لومړی وزیر یا ولسمشر) ته دا اختیار ورکړل شوی دی چې کولی شي د هر مجرم جزا معاف کړي، یا په جزا کې کمی راولي. او په دې اړه عموما د کوم دستوري دلیل وړاندې کولو هم پابند نه وي چې د دې اختیار له برکته د ډېرو سترو قاتلانو جزا وې معاف شوي دي. دا ډېره عجیبه ده چې د یو مجرم جرم ثابت دی، او د محکمې له خوا له یوې اوږدې څېړنې وروسته د هغه د ټولو گواهیو پر بنسټ هغه ته په ځرګند ډول جزا اورول شوې وي. او پر دوسیه باندې یې له ابتدایي څخه نیولې تر سترې محکمې پورې د څوکلونو موده تېره شوې وي، او په لکونو روپۍ مصرف شوي وي، او ټولې محکمې ده ته پر جزا ورکولو یوه خوله وي؛ خو ولسمشر دا هرڅه له پامه وغورځوي او یوازې د خپل وړیا واک په کارولو سره د ده جزا معاف کړي. دا د کوم عدل او انصاف سره برابره ده !؟ تاسو پخپله فکر وکړئ ! د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا تېره وینا چې رانقل کړل شوه، دا یې په داسې وخت کې ویلې و چې د یوې قبیلې مخورې مېرمنې ته یې د غلا جزا ورکړې وه. او د دې مېرمنې د قبیلې خلکو د اسامه

۱ ) کتاب الولاة و القضاة للکندي، مخ، ۳۵۲



بن زید رضی الله عنه په ذریعه سپارښت وکړ چې دا مېرمن دې و بخښي؛ خو پر دې خبره رسول الله صلی الله علیه وسلم سخته خواشیني وښودله، او ویې ویل: "که چېرې د دې پرځای زما لور فاطمه هم وای ما به یې لاس پرېکړی و ".

د دې ترڅنګ د سیکولر ډیموکراسۍ زیاتره هیوادونو کې د شخصي قوانینو په معامله کې هم ټول وګړي پرته د مذهب له لحاظه د یوه قانون پابند ګرځول شوي دي، پایله یې دا ده چې د نکاح او طلاق، او میراث او وصیت په معاملاتو کې ټول وګړي د خپلو مذهبونو پر خلاف عمل کولو ته اړ ایستل کیږي، یعني له یوې خوا د سیکولریزم پلویان دعوه کوي چې د دوی د قوانینو لاندې د هر مذهب خلک پر خپل مذهب په عمل کولو ازاد دي؛ خو په عمل کې بیا داسې ده چې د یوه مذهب وګړي هم نشي کولی د نکاح، طلاق، میراث او وصیت په معاملو کې پر خپل مذهب عمل وکړي همدا لامل دی چې په لویدیځو هیوادونو کې مسلمانان اړ ایستل کیږي چې په دې معاملاتو کې د هیواد په قانون عمل وکړي، که څه هم هغه د دوی له دین سره ټکر ولري، چې دا یوه ځرګنده بې انصافي ده. او له بلې خوا بیا اسلامي حکومت د هر مذهب وګړي ته ازادي ورکړې ده چې پر خپل مذهب عمل وکړي لکه چې فرمایي: اترکوهم وما یدینون (۱)

دوی پر خپل مذهب عمل کولو ته پرېږدئ.

د اسلامي حکومت تر سیوري لاندې نامسلمانه اوسېدونکي د هیواد د عامو قوانینو تر حده د هیواد د قوانینو پابند وي؛ خو نکاح، طلاق او میراث د انسان له عقیدې او مذهب سره اړه لري ؛ نو ځکه په دې چارو کې هرچا ته په خپل مذهب د عمل کولو بشپړه ازادي ورکړل شوې ده.

## خلافت یو مسؤلیت دی، دچا حق نه دی

۱) التقریر و التحبیر، فصل فی شرایط الراوي، مسلة تخصیص السنة بالسنة، ټوک۲ مخ۳۱۰

د قرآن او حدیثو لار ښوونې دا دي چې حکومت یو مسؤلیت دی، دا سې حق نه دی چې د هغه د ترلاسه کولو لپاره دې انسان هلې ځلې وکړي. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: الإمام راع و مسؤل عن رعیّته.(۱)

د حکومت مشر څارونکی دی، او کومه دنده چې ورسپارل شوې ده د هغې پوښتنه به ورڅخه کیږي.

د دې تصور پایله بېیي چې دا دې یو داسې مسؤلیت او دنده وګڼل شي چې تر خپله وسه ترې ځان ساتل غوره وي. مګر دا چې که د کومې اړتیا له امله چاته دا دنده ور وسپارل شي؛ نو بیا دې دا یو امانت او مسؤلیت وګڼي او په سهي توګه دې سر ته ورسوي. په یو حدیث کې دي چې یو ځل ابوذر رضی الله عنه له رسول الله صلي الله علیه وسلم نه د کومې دندې د ورسپارلو غوښتنه وکړه ؛ نو هغه ورته و فرمایل: یاأباذرّ! إنّک ضعیف، وإنّها أمانة، ویومَ القیامة خِزْی وندامة، إلاّ من أخذها بحقّها وأدّی الذي علیه فیها. (۲)

ژباړه: اې ابوذره ! ته کمزوری يې، او دا (حکومت) یو امانت دی، او د قیامت په ورځ رسوایي او پښېماني ده، مګر که څوک دا امانت په سهي او حقه لار واخلي، او خپل مسؤلیت په سهي توګه ادا کړي.

او د ابوداود په یو روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم نوموړي ته وفرمایل: "یاأباذر! إني أراک ضعیفا، و إني أحبُّ لک ماأحبُّ لنفسي، لاتـامرنّ علی إثنین، ولا تَوَلّینّ مال یتیم.(۳)

ژباړه: اې ابوذره ! ته ماته کمزوری ښکارې، او زه ستا د پاره هغه څه خوښوم چې د ځان لپاره يې خوښوم، کله هم پر دوو انسانانو امیر مه جوړیږه، او مه د یتیم د مال ساتلو دنده په غاړه اخله.

---

[۱] صحیح البخاري، کتاب الجمعه حدیث: ۸۹۳

[۲] رواه مسلم، باب کراهة الامانة بغیر ضرورة، حدیث: ۴۲۸۳

[۳] جامع الاصول، حدیث ۲۰۳۲، ټوک۴، مخ: ۵۲



او لـه ابـو هریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: إنّکم ستحرصون علی الإمارة، و ستکون ندامة یـوم القیامـة، فنعم المرضعة و بئست الفاطمة.(۱)

ژباړه: بې شکه تاسو د چوکۍ تر لاسه کولو کوښښ کوئ، او دا به د قیامت په ورځ ستاسو د پښېمانۍ لامل وګرځي ځکه چې د شېدو ورکونکې ډېره نیکه وي له شېدو جلاکونکې څخه.

د دې مطلب دا دی چې کله څوک چوکۍ ترلاسه کړي، په پیل کې هغه ډېر نیک ښکاري؛ خو چې کله ورسره حساب وشي، په دنیا کې وي او که په اخرت کې نو هغه مهال بیا ده ته معلومه شي چې دا څومره ستونزمن او ګران مسؤلیت دی.

همدا لامل و چې پیغبر صلی الله علیه وسلم د مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه پر اوږو لاس کېښود او ورته یې وویل: أفلحت یاقُدیم! إن مُتّ و لم تکن أمیراً ولا کاتباً و لا عریفاً. (۲)

ژباړه: اې قدیمه ! که پر تابانده په داسې حالت کې مرګ راشي چې نه دې امارت کړی وي ، نه د حکومت کاتب یې او نه دې هم د کوم قوم نمایندګي کړې وه؛ نو بې شکه ته کامیاب يې.

نن په نړۍ کې واکمني یو حق او شخصي ګټه ګڼل کیږي؛ نو که څوک واکمن شي هغه غوره شخصیت بلل کیږي، او که چا ته دا چوکۍ ور په برخه نه شي؛ نو هغه نامحروم ګڼل کیږي. خو قرآن او حدیث انسان ته تر ټولو لومړی دا ګوت څنډنه کړې چې دا دې شخصي ګټه نه بولي. دا د ګلانو لار نده، دا د ازغو بستره ده، له همدې امله به راشدینو خلفاوو له دې دندې څخه

---

[۱] جامع الاصول، بحواله بخاري (کتاب الاحکام، باب مایکره من الحرص علی الامارة، حدیث ۷۱۴۸) و نسایي (کتاب البیعة، باب مایکره من الحرص علی الامارة، حدیث ۴۲۱۲)

[۲] جامع الاصول بحواله ابوداود (کتاب الخراج، باب فی العرافة، حدیث ۲۹۳۳) و احمد (مسند احمد ، مسند الشامیین، حدیث المقداد بن معدي کرب رضی الله عنه، حدیث ۱۷۲۰۵)

وېره کوله. د حضرت عمر رضی الله عنه دا وینا ډېره مشهوره ده چې ویل به یې: لو مات جمل ضيعا على شطّ الفرات لخشيت أن يسالني الله عنه. (۱)

که د فرات سیند پر غاړه هم کوم اوښ مړ شي، نو زه وېرېږم چې الله تعالی به د هغه پوښتنه هم له ما څخه کوي.

دغه راز د شهادت نه لږ مخکې چې کله خلکو د حضرت عمر رضی الله عنه ستاینه کوله؛ نو هغه ورته وویل: وددت أن ذلك كفاف لا عليّ ولا لي.(۲)

زه خوښوم چې زه د دې حکومت له ذمه دارۍ سره برابر پرېښودل شم، چې نه زه پړ شم او نه ثواب راکړل شي.

بلکې په تاریخ طبري کې راغلي، چې په دې وخت کې یو تن حضرت عمر رضی الله عنه ته وړاندیز وکړ چې له ځانه وروسته دې خپل زوی عبدالله ځای ناستی وټاکي، پر دې خبره هغه ناخوښي څرګنده کړه، لومړی یې وویل چې داسې شخص به زه څنګه خلیفه وټاکم چې هغه خپلې مېرمنې ته هم په سهي توګه طلاق نشي ورکولی. (۳) بیا یې وویل: بحسب آل عمر أن يُحاسب منهم رجل واحد و يُسال عن أمة محمد. لقد جهدت نفسي وحرمت أهلي. و أن نجوت كفافا لا وزر ولا أجر، إني لسعيد.(٤)

د عمر په کورنۍ کې یوازې دا بس ده چې له یوه تن سره حساب وشي، او د محمد د امت په اړه ور څخه پوښتني ګروېګني وشي، زه خپل ځان دې سختي ته ور اچوم، او ما دا د خپل کور د پاره حرام کړي دي، او که زه برابر برابر خلاص شم چې نه ګناه وي او نه ثواب؛ نو زه به خپل ځان ډېر خوش نصیبه ګڼم.

۱) طبقات ابن سعد ، ذکر استخلاف عمر، ټوک۳، مخ: ۲۸۴

۲) صحیح البخاري، باب قصة البيعة والاتفاق على عثمان بن عفان، حديث ۳۷۰۰

۳) دا هغې خبرې ته اشاره وه چې یوځل عبدالله بن عمر رضی الله عنه خپلې مېرمنې ته د حیض په حالت طلاق ورکړی و.

۴) تاریخ طبري، ټوک، مخ: ۵۸۰



# دریم څپرکی

## د حکومت جوړولو بنسټیزارونه

د تېرو افکارو او موخو په رڼا کې چې کوم حکومت جوړ شي دهغه دقائمولو لپاره اسلام هم ځینې بنسټیز اصول بیان کړي دي چې دلته یې رانقل کوو:

### ۱. د واک غوښتنه ناروا ده

لکه څرنګه چې واکمني یو مسؤلیت دی، او حق نه دی، نو په دې سره دا خبره په ډاګه کیږي چې د دې غوښتنه نا روا ده. دا داسې شی نه دی چې انسان په لویه پیمانه ورته هلې ځلې وکړي چې څنګه واکمن شي. په حدیث کې راځي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم عبد الرحمن بن سمره رضی الله عنه ته وویل: " لاتسأل الإمارة فإنك إن أوتيتها عن مسألة وُكلت إليها, وإن أوتيتها من غير مسألة أُعِنْتَ عليها" (۱)

ژباړه: د امارت غوښتنه مه کوه، ځکه که تاته ستا په غوښتنه واک در کړل شي؛ نو تا پخپله ځان ورته حواله کړ، او که ستا له غوښتني پرته درکړل شي؛ نو الله تعالی به دې مرسته کوي.

د قضا په اړه هم همداسې ویل شوي دي. انس رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "من ابتغى القضاء وسأل فيه شفاء وُكل إلى نفسه، ومن أُكره عليه أنزل الله عليه مَلَكاً يُسّدده." (۲)

۱) صحیح البخاري، کتاب الایمان، حدیث: ۲۲۲۲

۲) ترمذي، کتاب الاحکام، حدیث۱۳۲۳، ابوداود، کتاب الاقضية، حديث ۳۵۷۸، مسند احمد۱۲۱۸۴.

ځوک چې د قضا غوښتنه کوي، او د دې کار د پاره سپارښت لټوي ؛ نو ده پخپله ځان ورته حواله کړ، او که ځوک ورته اړ کړل شي؛ نو الله تعالی به ورته یوه پرښته رانازله کړي چې دی له بدې لارې وژغوري.

له دې ځرګندیږي چې ځوک د منصب تر لاسه کولو هڅه کوي، او د دې د پاره خلکو ته سپارښتونه کوي ؛ نو ګواکې ده ته به د الله تعالی له خوا داسې ویل کیږي چې ته پوهیږې او حکومت دې پوهیږي، زموږ له خوا به درسره هیڅ ډول مرسته نه کیږي. که ځوک په دې باور لري چې د الله تعالی له مرستې پرته هیڅ کار نشي کېدلی؛ نو هغه ته دا د خطر ځومره لوی زنګ دی ! اعاذنا الله من ذلک.

او ابو موسی اشعري رضی الله عنه وایي چې زما د قبیلې دوو تنو له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د یوې حکومتي چوکۍ غوښتنه وکړه؛ نو هغه ورته وویل:"إنا لا نُولي هذا من سأله ولا من حرص عليه" (۱)

موږ په دې کار هغه ځوک نه ټاکو چې غوښتونکی یې وي او یا د دې حرص کوي.

پورتني حدیثونه په ځرګندو ټکو دا په ډاګه کوي چې د امارت غوښتنه نا روا ده، او ځوک چې پخپله د دې غوښتنه کوي هغه په حقیقت کې د دې اهل نه وي. دا رنګه په یو بل حدیث کې هم راغلي دي، عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

"تجدون من خيرالناس أشدهم كراهية لهذا الشأن حتى يقع فيه. (۲)

(۱) صحیح البخاري. کتاب الاحکام. حدیث۱۳۲۳, ابو داود. کتاب الأقضیة. حدیث ۳۵۷۸, مسند احمد۱۲۱۸۴

(۲) صحیح البخاري. کتاب المناقب. حدیث: ۳۴۹۲



تاسو به د خلکو غوره کسان ووینئ چې دا خبره (د امارت غوښتنه) ډېره بده ګڼې خو په دې کې به راګیر شي.

ځیني عالمان د امارت غوښتنې د جواز د پاره د یوسف علیه السلام هغه غوښتنه د استلال په توګه وړاندې کوي چې د مصر له پاچا ځخه یې کړې وه، چې: قَالَ اجْعَلْنِي عَلَىٰ خَزَائِنِ الْأَرْضِ ۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ(۱)

ژباړه: یوسف وویل: ښه نو ما د ځمکې پر خزانو وټاکه، زه ډېر پوه ساتونکی یم.

تردې چې ځیني خلک ټاکنو ته ودرېږي؛ نو د خپلو مناقبو بیانولو وروسته له خلکو نه د رایو اخیستلو د جواز لپاره همدا استدلال وړاندې کوي چې یوسف علیه السلام نه یوازې دا چې د چوکۍ غوښتنه کړې ده بلکې هغه د خپل اهلیت صفات هم پخپله بیان کړي دي. خو دا استدلال له دوو وجهو سهي نه دی. لومړی خو دا چې د مصر پاچا له مخکې نه منلې وه چې یوسف علیه السلام ته به کومه دنده ورکوي، چې په دې اړه د قرآن کریم تر دې مخکې آیت کې داسې بیان شوی دی: وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِي ۖ فَلَمَّا كَلَّمَهُ قَالَ إِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِينٌ أَمِينٌ(۲)

ژباړه: او پاچا وویل: هغه راولئ چې خپل ځان سره یې وټاکم؛ نو بیا چې ورسره وغږېدلو ؛ نو ورته وېې ویل نن ته موږ سره د ډاډ وړ قدرمن یې.

نو یوسف علیه السلام ته پاچا د ده په غوښتنه چوکۍ نه ده ورکړې، دا پرېکړه پاچا پخپله رایه کړې وه. یوسف علیه السلام ته دا خبره په ډاګه شوې وه چې پاچا به هرومرو کومه دنده ورسپاري، خو کومه دنده او کوم کار به ور سپاري. په دې وخت کې یوسف علیه السلام وویل چې اوس تاسو پرېکړه

(۱) سورة یوسف:۵۵

(۲) سورة یوسف:۵۴

کړې چې ماته دنده راکوئ؛ نو ماته د ځمکې د خزانو ساتونکي چوکۍ راکړئ. داسې نه و چې هغه له زندانه وړاندیز ورلېږلی و یا یې چاته سپارښت کړی و چې ماته هم کومه دنده راوسپارئ. نو له دې د واک غوښتنې هیڅ جواز نه پیدا کیږي.

دویمه خبره داده چې خپله د حکومت یا کومې وظیفې غوښتنې ناروا والی چې مخکې بیان شو، دا د شریعت اصل حکم دی، خو د دې څخه ځینې حالتونه مستثنی هم دي چې په راتلونکي کې به درته وړاندې شي، او د یوسف علیه السلام دا غوښتنه په هغو استثنایي حالتونو کې راځي. په دې اړه په ابوداود کې یو حدیث رانقل شوی چې له هغه د چوکۍ غوښتنې جواز مالومیږي. ابوهریره رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل:" من طلب قضاء المسلمین حتی یناله, ثم غلب عدله جوره فله الجنة" (۱)
چاچې د مسلمانانو د قضا غوښتنه وکړه او ترلاسه یې کړه، او بیا یې عدل پر ظلم غالب شو، نو ده ته به جنت وي.
په حدیث کې د طلب (غوښتنې) کلمه څرګنده ده. لومړی خو د دې حدیث په سند کې څه خبره شته، دوهم دا چې که دا حدیث د استدلال په توګه ومنل شي؛ نو دا هم پر استثنایي حالت باندې حمل شوی دی. له یوې خوا هغه حدیثونه دي چې د واک غوښتنه ردوي او له بلې خوا دا یو حدیث دی چې له دې د غوښتنې جواز مالومیږي. د دې دواړو ترمنځ علماء داسې تطبیق کوي چې د دواړو حکم په خپل خپل ځای کې واجب العمل دی.

اصلي حکم همدا دی چې د واک غوښتنه ناروا ده؛ خو کله نا کله داسې حالت رامنځ ته شي چې په هغه کې په بدیهي توګه انسان ته مالومیږي چې که زه د دې چوکۍ غوښتنه ونه کړم، نو دا به د داسې خلکو لاس ته ورشي چې د

۱) سنن ابی داود، باب فی القاضی یخطئ و یُصیب، حدیث **۳۵۷۵**



خلکو حقوق به تر پښو لاندې کړي او بې دیني به خپره شي، نو د داسې اړتیا پر وخت د چوکۍ غوښتنه پروا نه لري، په دې شرط چې موخه به یې اصلاح راوستل وي نه د چوکۍ غوښتنه. قاضي ابویعلی حنبلي رحمه الله په خپل کتاب "السیاسة الشرعیة" کې همدا دریځ غوره کړی دی، او بیا وروسته نورو عالمانو د نوموړي تائید کړی دی. علامه ظفر احمد عثماني رحمه الله هم پخپل کتاب "اعلاء السنن" کې دې ته ترجیح ورکړې ده.

نو لنډه دا اصلي خبره داده چې د امارت غوښتنه ناروا نه ده خو په دې کې د ځینو ځانګړو حالاتو استثنا شوې ده، په کوم ځای کې چې انسان ته دا خبره په ټولیز ډول څرګنده وي چې د چوکۍ د نه غوښتنې په صورت کې نا اهله خلک واک ته رسیږي، او د هغوی واک ته رسېدو په نتیجه کې فساد خپریږي. په داسې حالاتو کې د اصلاح راوستو په نیت که کومه غوښتنه وشي؛ نو دا صورت مستثنی دی. والله سبحانه اعلم.

## په ټاکنو کې دنوماندۍ متبادله لار

دلته دا پوښتنه را پیدا کیږي چې که د حکومتي چوکۍ غوښتنه نا روا ده؛ نو په نننی چاپیریال کې به د ټاکنو تګلاره څنګه وي؟ له دې امله چې نن د ټاکنو ټول بنسټ د نوماندۍ پر نظام ولاړ دی، نو چې څوک کاندید او یا یې غوښتونکی نه شي په ټاکنو کې به چاته او څنګه رایه ورکول کیږي؟ د دې پوښتنې له ځوابه مخکې دا خبره یاد ولرئ چې کله کومه کړنلاره په نړیواله کچه ومنل شي؛ نو په عامه توګه څوک دې ته تیار نه وي چې له هغې سرغړونه وکړي، سره له دې که څوک د خپل چاپیریال له فشار نه ازاد شي او فکر وکړي ؛ نو دا هم د نه منلو کار نه دی ، پخپله په نننۍ نړۍ کې د ټاکنو لپاره په مختلفو هیوادونو کې بېلا بېلې کړنلارې غوره کړل شوي دي. مخکې تېر شو

چې چېرته د تناسب نمایندګي نظام وي، هلته کله د دوه ځلیزو ټاکنو (Second Ballot) تګلاره خپله شوې ده، کله بیا د انتقال رایې (Transferable Vote) سره سم ټاکني کیږي. له همدې امله یوازې پر یوې تګلارې تکیه کول سهي نه دي. که یو ځل دا بدیهي خبره په ذهنونو کې کښېني چې پخپله د چوکۍ غوښتنه بد کار دی چې زموږ سیاسي نظام یې پلیت کړی دی؛ نو بیا د دې متبادلې لارې پلټنه دومره ګرانه نه ده څومره چې یې خلک فکر کوي.

د بېلګې په ډول د دودیزې نوماندۍ پرځای دې د ټاکنو نظام داسې جوړ کړل شي چې د هرې حلقې خلکو ته وویل شي چې خپل نماینده دې پخپله و ټاکي. د دې نمایندګانو د اهلیت صفتونه دې هم مالوم کړل شي چې په هغو کې د دوی د پوهې کچه، ولسي خدمتونه، او عملي تجربو او کړنو په اړه اړینې لارښوونې په ډاګه شوې وي. بیا چې د حلقې خلکو څخه مثلا پنځه سوه یا زرو کسانو د پورتنیو ځانګړتیاوو سره سم یو تن وټاکی، بیا دې د ټاکنو کمیسون د دې کره کتنه وکړي چې آیا رښتیا هم د دوی دا ټاکنه سهي ده؟ یعني دا افراد چې یو تن یې نومولی رښتیا هم د همدې حلقې خلک دي؟ او رښتیا هم د دوی شمېر له پنځه سوه نه تر زرو پورې دی؟ او په دې کې خو څه لاسوهنه نه ده شوې؟ دغه راز کوم شخص چې دوی نومولی دی په هغه کې هغه ځانګړتیاوې شته چې د کاندید لپاره ټاکل شوي دي؟ د دې خبرو د سهي معلومولو او ډاډ ترلاسه کولو وروسته دې د هغه اسناد و منل شي، او که په همدې توګه د ډېرو کسانو نومونه وړاندې شوي ول بیا دې په نومول شویو کسانو کې د یو تن د ټاکلو د پاره د دوی تر منځ رایې واچول شي.

د دې پرځای چې نومول شوی کاندید پخپله د ځان د شهرت لپاره خلکو ته وړاندیز وکړي چې ده ته رایه ورکړي، له هغوی سره دروښتیا او دروغو ژمنې وکړي، او خلکو ته د خپلو سیالو کاندیدانو بدي بیان کړي، او د دې کار لپاره



په لکونو میلیونونو روپۍ ولګوي لکه نن چې په ټاکنو کې کیږي، پخپله د ټاکنو کمیسون دې د دې خلکو د پېژندلو د پاره د رسنیو له لارې خلک خبر کړي، او که اړتیا وي؛ نو د دوی خبري دې خلکو ته نشر کړي څو هغوی وپوهیږي چې په دې حوزه کې څوک څوک نومول شوي دي؟ د دوی د پوهې کچه څومره ده؟ مخکې یې څنګه ژوند تیر کړی دی؟ په معاملاتو پوهیږي که څنګه؟ د دینداری کچه یې څومره ده؟ او د ولس په مسائلو څومره پوهیږي؟

نن داسې حالت دی چې کوم شخص پخپله ځان کاندید کړي، هغه نه یوازې دا چې خلکو ته خپل مناقب او فضائل بیانوي او ځان سپین مرغه وروپېژني، بلکې په خلکو کې د ځان د شهرت په موخه په لکونو او میلیونونو روپۍ لګښتونه کوي. له همدې امله د ټاکنو په دې نظام کې هغه څوک کاندید کېدلی شي چې د لګښت لپاره په لکونو او میلیونونو زیاتي روپۍ له ځان سره و لري. یو متوسط انسان خو د ځان کاندیدولو تصور هم نشي کولی او بیا چې کوم شخص د څوکۍ د ترلاسه کولو لپاره په لکونو روپۍ مصرف کړي په عمومي توګه هغه دا کار پانګونه بولي تر څو د ټاکنو ګټلو وروسته د دې څو برابره سرمایه د بډو اخیستلو له لارې تر لاسه کړای شي. په دې توګه زموږ په چاپیریال کې د پاکو خلکو حکومت ته رسېدل تقریبا ناشونی برېښي.

نو که د نوماندۍ پرځای د وړاندیز پورتنۍ تګلاره خپله کړل شي، او د وړاندې کړل شویو خلکو د شهرت دنده د ټاکنو کمیسون پر غاړه واخلي او په دې اړه له اعتدال څخه کار واخلي، او هیچاته هم د ټاکنو د کمیسون پرته له نورو لارو د ځان د شهرت اجازه ورنه کړل شي؛ نو ښایي دا نېمګړتیاوې به تر ډېره بریده له منځ یوړل شي. دغه راز د ټاکنو پر صندقونو چې بهر کوم کمپ جوړ کړل شوی وي، هغه دې د وړاندې کړل شویو خلکو له خوا نه وي؛ بلکې د ټاکنو د کمیسون له خوا دې وټاکل شي. یعني کاندیدان چې د خپلو رایو

ترلاسه کولو لپاره پر خلکو کوم فشار راوړي او د دې لپاره کومې ټاکنیزې غونډې او کمپاینونه کېږي تر وسه وسه دې د هغوی مخنیوی وشي.

اوس هم ځیني هیوادونه شته چې په هغو کې د کنونسن لړۍ نشته، هلته داسې کېږي چې کله کاندید ونومول شي؛ نو رادیو او تلویزون ته را وغوښتل شي او یوازې یوه مرکه ورسره وشي او بس! له دې پرته نورې غونډې او جلسې نه کېږي او نه هم داسې کاغذپراني او اشتهارپراني کېږي چې دیوال دومره ولړل شي چې اصل رنګ یې نه ښکاري.

په دې کې شک نشته چې زموږ په هیواد کې ځیني ملکانو پر خلکو قبضه کړې ده او پرواک یې خیټه اچولې ده چې له همدې امله زیاتره خلک د هغوی د اغېز له امله رایې ورکوي. خو که د دوی هغه وسائل یا وسلې ورڅخه واخیستل شي چې دوی یې په دې لاره کې کاروي؛ نو بې شکه چې د ولس رښتوني رایې مالومولو لپاره سهي نظام منځ ته راتلی شي.

په پاکستان کې د یوغړیتوب حوزیي نظام دود دی، مطلب یې دادی چې د یوې حوزې څخه یوازې یو شخص د پارلمان یا ولایتي شورا غړیتوب ترلاسه کولی شي. په دې کې وخت ناوخته دا نېمګړتیا رامنځته شي چې په لسو کاندیدانو کې چې د چا رایې زیاتي وي هغه ټاکل کېږي که څه هم د هغې حوزې اکثریت رایې د هغه پرضد وي. د بېلګې په ډول په لسو کاندیدانو کې نهو کاندیدانو زر زر رایې وګټلې، او لسم کاندید دوه زره رایې وګټلې؛ نو هغه ګټونکی اعلانیږي. سره له دې چې په ټوله حلقه کې هغه ته رایه ورکونکي یوازې دوه زره کسان دي، او نهه زره کسانو د هغه پرضد رایه ورکړې دي. د دې برعکس که ټاکنیزې حوزې لویې کړل شي او د ډېرو غړو تګلاره غوره کړل شي که هغه د انتقال وړ رایو له لارې وي او که د نه انتقال وړ رایو له لارې وي؛ نو دا نېمګړتیا به تر ډېره بریده له منځه یوړل شي. مثلا دا ومنل شي چې په یوه لویه حلقه کې دې څلور غړي وټاکل شي. بیا د ټاکنو



وروسته دې هغه څلور افراد منتخب وشمېرل شي چې په ترتیب سره یې تر ټولو زیاتې رایې ترلاسه کړې وي.

لکه مخکې مو چې یادونه وکړه اسلام ځیني بنسټیز اصول بیان کړي دي او نور تفصیلات یې د هر دور پوهانو ته پرې ایښي دي. دلته هم همداسې ده، د چوکۍ غوښتنې ممانعت او د شورا جوړولو اصول اسلام بیان کړي دي؛ خو په دې اصولو باندې د عمل کولو تفصيلي تګلاره یې د دې پرځای چې پخپله وټاکي داسې څرګنده پرېښې ده چې د هر دور پوهان کولی شي د خپلې پوهې، فراصت او تجربو په رڼا کې یې متعینه کړای شي. پورته چې د وړاندیز کومه بنسټیزه خاکه وړاندې کړل شوه، د دې نور زیات تفصیلات هم پوهان د خپلو تجربو په رڼا کې ټاکلی شي. نو دا خبره سهي نه ده چې په نن وخت کې د چوکۍ غوښتنې تصور پرته له دودیزو ټاکنو بل ډول ناشونی دی.

## ۲. د امیر داهلیت صفات

په ننني جمهوري نظامونو کې د حکومت مشر یا د پارلمان غړو لپاره د اهلیت هیڅ شرطونه نه ټاکل کېږي، په عامه توګه په دستورونو کې داوي چې د پارلمان غړی د هیواد وګړی وي او د رایه ورکونکو په لیست کې یې نوم درج وي. په رایه ورکونکي لیست کې د نوم لیکلو د پاره په عامه توګه یو ځانګړی عمر ټاکل شوی وي او بس! له دې نه پرته د هغه علمي قابلیت او تجربې او نورو په اړه هیڅ شرط نه وي، نه د زده کړې کوم شرط وي، نه د هغه د کردار کوم شرط وي، یوازې دا ویل کېږي چې څوک د اکثریت خلکو له خوا وټاکل شي هغه د پارلمان د غړیتوب اهل دی. چې د همدې نظام تر سیوري لاندې ډېر ناپوه او بدعمله خلک هم مشران کېږي او د هغه تر پېژندلو وروسته هم د هغه پر مسلسلو بدو عملونو باندې سترګې پټیږي. د "کینډې" په څېر واکمن چې د امریکا ډېر با صلاحیته ولسمشر تېر شوی

دی، او دا هغه مشر دی چې په لومړي ځل يې روسيې ته په ټيټ نظر وکتل، د هغه بدنامه داستانونه اوس هم په کتابونو کې خپرېږي. دا هرڅه له دې امله چې د حکومت مشر د پاره د اهليت هيڅ ډول صفتونه نه دي ټاکل شوي.

خو د اسلام امتياز دا دی چې تر ټولو لومړی د حکومت د مشر اوصاف ټاکي. تر ځو چې هغه صفتونه په چا کې نه وي، امير يا خليفه نشي کېدلی. د دې صفتونو په اړه علماوو ډېر اوږده بحثونه کړي دي چې خلاصه يې دلته رانقل کوو:

**لومړی شرط: عاقل او بالغ به وي**

لومړی شرط خو څرګند دی چې مشر بايد عاقل او بالغ او ټول حواس يې پرځای وي.

**دوهم شرط: مسلمان به وي**

دوهم شرط دا دی چې مشر به مسلمان وي. قرآن کريم د دې وضاحت داسې کوي: لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِيْنَ.

ژباړه: زما دنده به ظالمانو ته نه ورکول کيږي.

او په بل آيت کې داسې فرمايي: اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

ژباړه: بې شکه شرک ډېر ستر ظلم دی.

نو څوک چې په کفر او شرک کې اخته وي، هغه د قرآن کريم د دې آيت له مخې تر ټولو د لوی ظلم مرتکب دی، او په لومړني ايت کې راغلل چې د الله تعالی خلافت ظالم شخص ته نه ورکول کيږي.

دا خو يوه معقوله خبره ده چې د اسلامي حکومت مشر به هرومرو مسلمان وي، ځکه چې د اسلامي حکومت کومې موخې چې مخکې بيان شوې، يو نامسلمانه مشر به څنګه هغه پوره کړای شي؟ خو د سيکولر په ننني چاپيريال کې چې کله د اسلامي نظام راوستلو خبره کيږي نو ډول ډول نبوکي وربانديې



کيږي. همدا لامل و چې کله د پاکستان دستور جوړېدی؛ نو د سيکولر ټولګيو له خوا دا نيوکې کېدلې چې په هيواد کې نامسلمانه خلک هم ژوند کوي؛ نو د مشر د پاره دا شرط لګول بې انصافي ده.

که څه هم دا نيوکې د هغو سيکولر او ملت پالنې پر بنسټ ولاړې دي چې مخکې يې مونږ غندنه وکړه، خو عجيبه دا ده چې کوم هيوادونه د سيکولر جمهوريت پلوي کوي، په هغو کې زياترو د هيواد مشر د پاره له يو نه يو مذهب سره د اړيکي شتون شرط لګولی دی. د بېلګې په ډول د برتانيې د دستور له مخې د دغه هېواد پاچا به پروټيسټينټ عيسايي وي. اوس تاسو فکر وکړئ له يوې خوا دا دعوه کيږي چې مونږ د سيکولر ډيموکراسۍ پلوي کوو چې د هغې پر اساس د هيواد مشر بايد د يوه ځانګړي مذهب سره تړاو ونه لري، او له بلې خوا په برتانيا کې د پاچا د پاره "پروټيسټينټ" کېدل ضروري دي. يعنې يوازې دا ضروري نه ده چې هغه دې عيسايي وي، بلکې په عيسايانو کې هم بايد له يوې ځانګړې ډلې (پروټيسټينټ) سره تړاو ولري، او دی هم بايد د انګلينډ له کليسا سره اړيکه ساتي چې له دې پرته پاچا واک ته نه شي رسېدلی. له برتانيې پرته نور هم ډېر داسې هيوادونه شته چې د سيکولر ډيموکراسۍ دعوه کوي؛ خو ولسمشر به يې هرومرو د "رومن کاتوليک" کليسا سره تړاو لري او همدا به يې رسمي مذهب وي. ارجنټاين، کولمبيا، کوسټاريکا، مالټا او پانامه دا ټول هيوادونه د سيکولر ډيموکراسۍ له دعوې سره سره وايي چې زمونږ رسمي مذهب "رومن کاتوليک" دی. د دوی د مشر د پاره هم "رومن کاتوليک" عيسائيت شرط دی. دغه راز ډنمارک، ناروې، آيسلينډ، او سويډن په څېر مشهور هيوادونه هم دا وايي چې د دوی د ولسمشر د پاره ضروري ده چې "لوترن" کليسا سره تړاو ولري. معنا دا چې يوازې عيسايي او پروټيسټينټ کېدل بس نه دي، بلکې په پروټيسټينټ کې هم له يوې ځانګړې ډلې "لوترن" کليسا سره يې تړاو

ضروري دی. په یونان کې د هیواد مشر د پاره د "ارتوډکس" مذهب سره تړاو شرط دی. په اسرائیلو کې د ولسمشر د پاره یهودیت او په نیپال کې بیا هندو مذهب شرط دی؛ خو د دې وروستي دوو هېوادونو په اړه ویل کیږي چې دا مذهبي دولتونه دي او په بشپړه توګه د سیکولر پابند نه دي ، خو په پورتنیو ټولو یادو شویو هیوادونو کې د خپلو مشرانو د پاره له یو نه یو مذهب سره تړاو لرل ضروري ګرځول شوی دی. دا سهي ده چې په دې هیوادونو کې د اجرائي مشر یعني لومړي وزیر د پاره د کوم ځانګړي مذهب سره تړاو شرط نه دی، او هلته دا دلیل وړاندې کیږي چې له دې امله چې په هیواد کې د نورو مذهبونو لرونکي خلک هم ژوند کوي، نوځکه د لومړي وزیر لپاره د کوم ځانګړي مذهب سره تړاو شرط لګول له دوی سره بې انصافي ده، سره له دې چې د دولت مشر یعني ولسمشر په اړه هم همدا دلیل ویل کیږي. خو هلته دې خبرې ته هیڅ پاملرنه نه کیږي چې نورو ته د هیواد مشري موقع نه ورکول له هغوی سره بې انصافي ده.

اسلام یوازې د سوچه اسلامي نظام غوښتونکی دی؛ نوکه د خپل مشر یا لومړي وزیر د پاره دا شرط ولګوي چې هغه دې مسلمان وي، دا خبره له منطقي پلوه بالکل سهي ده. همدا لامل و چې کله د پاکستان دستور جوړېدی ، هغه مهال هم دغه بحثونه کېدل، خو په پای کې د الله تعالی په فضل د ولسمشر او لومړي وزیر دواړو د پاره د اسلام شرط د دستور یوه برخه وګرځېد له.

**دریم شرط: نارینه توب**

د حکومت مشر د پاره دریم شرط دا دی چې سړی به وي. دلیل یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه مشهور حدیث دی چې وايي: "لن يُفلح قوم ولّوا أمرهم امرأة" (۱)

کوم قوم چې مېرمن خپله مشره وټاکي هغوی به کله هم کامیابي ترلاسه نه کړي.

(۱) صحیح البخاري: باب کتاب النبي صلی الله علیه وسلم إلی کسری و قیصر، حدیث: ۴۴۲۵



دا خبره رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه مهال کړې وه چې کله ایرانیانو خپل پاچا یوه مېرمن وټاکله.

د غه راز په یو حدیث کې دي: إذا كانت أمراؤكم خياركم، و أغنياؤكم سمحائكم و أموركم شورى بينكم فظهر الأرض خير لكم من بطنها، وإذا كانت أمرائكم شراركم، و أغنيائكم بخلائكم، و أموركم إلي نسائكم، فبطن الأرض خير لكم من ظهرها.(۱)

ژباړه: کله چې ستاسو امیران په تاسو کې غوره خلک وي، او ستاسو شتمن خلک سخیان وي، او هره معامله مو په مشوره تر سره کیږي؛ نو ستاسو د پاره د ځمکې له نس نه د زمکې مخ غوره دی ، او کله چې ستاسو امیران په تاسو کې تر ټولو بد خلک وي، او ستاسو شتمن خلک بخیلان وي، او چارې مو مېرمنو ته وسپارل شي؛ نو بیا ستاسو د پاره د ځمکې له مخ نه د ځمکې نس غوره دی.

دا رنګه په شریعت کې د حکومت مشرۍ ته امامت وايي، او امامت دوه ډوله دی، یو امامت صغری ، یعنې د لمانځه امامت او بل امامت کبری یعني د حکومت مشري، او پر دې خبره د ټولو فقهاوو اتفاق دی چې مېرمن امامت صغری نشي کولی، معنا دا چې مېرمن نشي کولی سړو ته امامت ورکړي، نو چې مېرمن سړو ته امامت صغری نشي ورکولی، امامت کبری به څنګه وکړي؟ نو زما د معلوماتو له مخې په دې مسئله کې د فقهاوو ترمنځ هیڅ اختلاف نشته.

په امداد الفتاوی کې د مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله یوه فتوا شته چې د هغې له مخې ځیني خلک وايي نوموړي د مېرمنو د حاکمیت روا بللی.

(۱) جامع الترمذي، باب۷۸، حدیث ۲۲۶۶، وقال: هذا حديث غريب

خو په حقیقت کې دا یوه تېروتنه ده، ځکه چې تهانوي رحمه الله په فتوا کې له دې خبرې سره یو والی ښوودلی چې مېرمن د هېواد مشري نشي کولی، خو دا یې ویلي دي چې په اوسني جمهوري نظام کې لومړی وزیر د هېواد مشر نه وي، ځکه چې اصلي مشري د پارلمان په لاس کې وي او لومړی وزیر هم د پارلمان یوه برخه ده، هغه ته مشر نشي ویلی؛ نو له دې امله چې لومړی وزیر مشر نه دی، روا ده چې مېرمن هم لومړۍ وزیره شي ؛ نو په اصلي مسئله کې تهانوي رحمه الله هیڅ اختلاف نه دی کړی. اصلي مسئله یې داسې بیان کړې چې مېرمن مشري نشي کولی؛ خو په یوه خبره کې یې خپله رایه داسې ښکاره کړې ده چې لومړی وزیر د حکومت مشر نه وي؛ نو مېرمن کولی شي دا چوکۍ ترلاسه کړي. خو په دې خبره کې د څه ویلو ځای شته، ځکه چې لومړی وزیر که څه هم د دولت مشر نه وي؛ خو د اجرائیه قوي مشر وي او د اجراییه قوې مشر د حکومت مشر وي ؛ نو که په دې مسئله کې څوک له تهانوي صیب سره اختلاف کوي دا به په یوه شرعي مسئله کې نه وي بلکې د یوې خبرې په تحقیق کې به اختلاف وي. پر دې موضوع باندې زما د مشر ورور ښاغلي مولانا مفتي رفیع عثماني حفظه الله یوه مستقله رساله چاپ شوې ده چې په هغې کې د دې خبرې پوره څېړنه شوې ده.

په نننۍ چاپیریال کې د مزدور د مساوات ناره په دومره شور او زور سره بدرگه کیږي چې د دې پرخلاف خوله پرانېستل هم د ملامتي غشي ځان ته برابرول دي. نن که څوک ووایي چې مېرمن نشي کولی د حکومت مشره شي؛ نو د نوښت پالو له خوا ورباندې د نیوکو باران پیل شي. اوس که دلته په ټولنه کې د مېرمنو د حقوقو په اړه غږیږو نو یوې لویې کتابچې ته ضرورت دی؛ خو یوازې دیوې کېسې بیانول به بې ځایه نه وي.

یوه ورځ ماته ناڅاپه د امریکا ټایمز مجلې یوه مېرمن خبریاله راغله او غوښتل یې د مېرمنو د حاکمیت په اړه له ما سره مرکه وکړي. ما ورته وویل



چې پر دې موضوع باندې ستا پوښتنې ځوابول له دې امله بې ځایه دي چې ستاسو په ذهن کې نه د حکومت د مشري تصور سهي دی او نه د مېرمنو د حقوقو ؛ نو ځکه زما او ستا په فکر کې د ځمکې او اسمان هومره توپیر دی. په دې خبره هغه هکه پکه شو او راته یې وویل چې اوس نو زه ستا څخه د دې خبرې د تفصیل اورېدو پرته نه ځم. ما ورته وویل چې ستاسو په فکر د مېرمنې د مشري تصور له دې امله سهی نه دی چې ستاسو په اند د حکومت مشري یو مفاد (**advantage**) ، او ګټور حق دی، او څوک چې له دې ګټې څخه برخمن شي هغه د ډېرې لویې برخې څښتن ګڼل کیږي، او څوک چې له دې ګټې بې برخې شي هغه نامحروم شمېرل کیږي، او د چا په اړه چې دا پرېکړه وشي چې دی هیڅ کله مشر نشي کېدلی؛ نو ګواکې داسې شو لکه د هغه نه چې پیدا ایښتي انساني حق سلب کړل شو. او د دې برعکس د اسلام لارښوونې داسې دي چې د حکومت مشري نه کوم حق دی او نه هم کوم مفاد دی، دا د یو ډېر درونډ او سخت مسؤلیت داسې پېټی دی چې د چا پر اوږو کېښودل شي، هغه د رحم وړ دی او څوک چې ترې وژغورل شو هغه د ښې برخې څښتن دی. هغه حدیث مخکې تیر شو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه ته وویل چې: "اې قدیمه ! که په داسې حال کې تا ته مرګ راشي چې نه دې امارت کړی وی، نه د حکومت منشي پاتي شوی وې، او نه د کوم قوم استازی وې؛ نو ته به کامیاب یې". زموږ په دین کې هغه څوک د ښې برخې څښتن ګڼل کیږي چې په ژوند کې یې دا دندې نه وي تر سره کړي. بیا مې هغې ته د حضرت عمر رضی الله عنه هغه کیسه وکړه چې چا ورته وویل د ځان نه وروسته خپل زوی عبدالله بن عمر رضی الله عنه خپل ځای ناستی وټاکه، هغه ورته وویل چې د عمر په کورنۍ کې چې دا درونډ بار د یوه تن (عمر) پر غاړه ور واچول شو دا بس ده، زه نه غواړم زما په اولاد کې دې دا درونډ بار چا ته ور په غاړه کړل شي. (د دې حواله مخکې تېره شوه)

که یو ځل دا خبره په ذهن کې ځای ونیسي چې دا د ګلونو پالنګ نه؛ بلکې د ازغو بستره ده، کوم مفاد نه دی؛ بلکې د غاړې مهار دی؛ نو ته وواېه چې څوک خوش نصیب دی؟

تاسو وایاست چې اسلام مېرمن له مشرۍ څخه بې برخې کړې ده؛ خو که د چا په ذهن کې د اسلامي واکمنۍ تصور وي؛ نو سمه خبره داده چې اسلام له مېرمنې سره ډېر ستر احسان کړی دی چې هغه یې له دې درونډ بار څخه ساتلې ده. ځکه ما درته وویل چې ستاسو په ذهن کې د حکومت د مشرۍ تصور له هغه تصور سره ټکر لري چې اسلام یې وړاندې کوي.

او دا چې ستاسې په ذهن کې د مېرمنې تصور سمې نه دی، د دې تفصیل داسې دی چې ستاسو په اند د سړي او مېرمنې د ژوندانه موخو کې هیڅ توپیر نشته، که څه هم چې د مېرمنې جسماني جوړښت ته وکتل شي؛ نو دا خبره به خپله روښانه شي چې ربښتیا هم د مېرمنې د ژوند موخې او مسؤلیت له سړي سره ډېر توپیر لري. اسلام دا وايي چې الله تعالی مېرمن د یوې مؤمنې، ډاډمنې او سوکاله کورنۍ بنسټ ګرځولې ده. هغه د کورنۍ ژوند د بنسټیزې ډبرې ځای نیسي. د دې پر بنسټ یوه وړه کورنۍ منځ ته راځي، له دې بیا ورونه او لویې کورنۍ جوړیږي، او د همدې پر بنسټ تمدن منځ ته راځي. او د دې مېرمنې په غیږ کې قومونه روزل کیږي. که مېرمن د خپل ژوند له اصلي موخو او بنسټیز مسؤلیت څخه لرې کړل شي؛ نو په نتیجه کې له دې پرته چې کورنۍ نېکمرغي داسې ګډه وډه شي لکه نن چې په لویدیځو هیوادونو کې له منځه تللې ده بل هیڅ لاس ته نه راځي، او له هغوی هم اوس لار ورکه ده چې څه ډول کورنۍ نظام سم کړي.

دې خبرو هغه مېرمن ډېره حیرانه کړه؛ خو له دې امله چې ما ورباندې کره کړې وه چې که زما خبرې خپروې نو ټولې به خپروې او که نه نو زه به د مقدمې چلولو حق له ځان سره لرم؛ نو ځکه هغې په ښکاره دا مرکه خپره نه کړه.



په دې کې هیڅ شک نشته چې د مېرمنې د ژوند موخو په ټاکلو کې لویدیځ پاتې راغلی دی چې پخپله ځینو لوېدیځوالو لیکوالانو هم پر دې خبره اعتراف کړی دی. د شوروي اتحاد وروستي مشر "ګورباچوف" چې د "Perestroika" په نوم کوم کتاب لیکلی دی، په هغه کې د دې حقیقت اعتراف شوی دی چې په اروپا کې د مېرمنې په له کوره ایستلو سره څه ناڅه اقتصادي ګټې تر لاسه شوې دي؛ خو د کورنۍ اصلي نېکمرغي بېخي له منځه تللې ده، او اوس دا یوه ډېره مهمه پوښتنه ده چې څه ډول باید بېرته لاس ته راوړل شي؟

**څلورم شرط: قریشیت**

څلورم شرط چې زموږ د امامت او سیاست په کتابونو کې بیان شوی دی، هغه دا چې د حکومت مشر به قریشي وي. دلیل یې د عبدالله بن عمر رضی الله عنه روایت دی، هغه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: " لا یزال هذا الأمر في قریش مابقي منهم اثنان.(۱)

د خلافت حق دې په قریشو کې وي که څه هم په هغو کې دوه تنه پاتې وي.

دارنګه له معاویه رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی ا لله علیه وسلم وویل: "إن هذا الأمر في قريش، لا يُعاديهم أحد إلا كبّه الله على وجهه ما أقاموا الدين" (۲)

دا معامله (د خلافت حق) به په قریشو کې وي، له دوی سره چې څوک دښمني کوي الله تعالی به یې پړمخې راکش کړي، ترڅو چې دوی دین قائم ساتي.

(۱) صحیح البخاري، باب مناقب قریش، حدیث۳۵۰۱
(۲) صحیح البخاري، باب مناقب قریش، حدیث ۳۵۰۰

دغه راز د ا بن عمر رضی الله عنه په بل روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الناس تبع لقريش في هذا الشأن، مسلمهم تبع لمسلمهم و كافرهم تبع لكافرهم، والناس معادن، خيارهم في الجاهلية خيارهم في الإسلام إذا فقهوا.(١)

په دې امر (خلافت) کې ټول خلک د قریشو تابع دي، د دوی مسلمان به د قریشو د مسلمان تابع وي او کافر به یې د دوی د کافر تابع وي، او خلک رنګارنګ معدنونه دي. په دوی کې چې څوک په جاهلیت کې غوره خلک ول هغوی په اسلام کې هم غوره دي په دې شرط چې په دین پوه شي.

دغه راز یو ځل د عمرو بن العاص په وړاندې د ربیعه قبیلې یو تن وویل چې قریش دې لاس واخلي، دا حکومت خو الله تعالی جمهورو عربو ته ور سپاره.

عمرو بن العاص رضی الله عنه چې دا خبره واورېدله؛ نو ورته یې وویل: كذبتَ، سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: قريش ولاّة الناس في الخير والشر، إلى يوم القيامة.(٢)

دروغ دې وویل، ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي چې ویل یې: قریش په خیر او شر دواړو کې تر قیامته د خلکو مشران دي.

له جابر رضی الله عنه هم دېته ورته روایت رانقل شوی دی، هغه وایي:

"الناس تبع لقريش في الخير والشر" (٣)

له دې حدیثونو هم دا استدلال کېږي چې د امیر یا خلیفه د پاره قریشیت ضروري دی. او د فقهي او عقائدو په کتابونو کې دا خبره د شرط په توګه یاده

---

(١) صحيح البخاري، كتاب المناقب، حديث ٣٤٩٢، ٣٤٩٥

(٢) رواه الترمذی. كتاب الفتن، باب ماجاء أن الخلفاء من قريش، حديث ٢٢٢٧.

(٣) رواه مسلم، كتاب الإمارة، حديث ٤٢٢٧



شوې ده. بلکې قاضي عیاض خو لا لیکلي چې د قریشي په شرط باندې ټول امت متفق دی، او د معتزله وو او خوارجو پرته هیڅ چا د دې سره اختلاف نه دی کړی. خو حافظ ابن حجر رحمه الله بیا د دې خبرې سره مخالفت ښودلی دی، دا رنګه علامه ماوردي رحمه الله هم په "الاحکام السلطانیه" کې قریشیت یو مختلف فیه شرط بولي، نوموړي ویلي چې په دې کې د علماوو اختلاف دی چې د امیر د پاره قریشي کېدل شرط دی که څنګه، او په فیض الباري کې علامه انورشاه کشمیري رحمه الله کاږي چې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم یو روایت داسې رانقل شوی دی چې هغه د خلیفه د پاره قریشي کېدل شرط نه دی ګڼلی، او دا خبره یې د "البرهان شرح مواهب الرحمان" په حواله را اخیستې ده.(١) دغه راز علامه حموي رحمه الله هم د علامه طرسوسي په حواله د امام ابوحنیفه او د هغه د شاګردانو مذهب داسې رانقل کړی دی: "لايُشترط في صحة تولية السلطان أن يكون قرشيا ولا مجتهدا ولا عدلا". (٢)

د خلیفه ټاکلو لپاره دا شرط نه ده چې قریشي به وي، یا دې مجتهد وي او یا عادل وي.

دا خبره علامه رافعي رحمه الله په "التحریر المختار" کې رانقل کړې ده.(٣) خو داسې ښکارې چې د دې مطلب دا دی چې که له قریشي پرته بل څوک خلیفه و ټاکل شي او د هغه واک ټینګ شي؛ نو د ده خلافت داسې ګڼل کېږي لکه یو څوک چې د زور په مټ خلافت ترلاسه کړي. د دې دا مطلب نه دی چې د خلیفه ټاکونکې ډله باندې دا شرط لازم نه دی چې دا شرطونو به په

---

(١) فيض الباري٤: ٤٩٨.

(٢) شرح الأشباه و النظائر، الفنّ الثالث، قواعد شتي، ج٢ص٢٦٦.

(٣) التحرير المختار، كتاب الصلواة، باب الامامت ج١ص٦٨.

پام کې نه نېسي. او ځیني او سني علماء دا خبره د علامه ابن تیمیه رحمه الله لور ته منسوبوي چې هغه د خلیفه د پاره قریشي کېدل شرط نه بولي. (۱) خو ما پخپله دا خبره د علامه ابن تیمیه رحمه الله په کوم کتاب کې نه ده لیدلې، بلکې د دې پر خلاف عبارتونه مې لېدلي چې پکې ویل شوي دي چې که څه هم په اسلام کې کوم حکم په کورني نژاد پورې تړاو نه لري، خو په ځینو ځایونو کې د اکثریت له پلوه داسې حکمونه شته، چې په هغو کې د امیر قریشي کېدلو شرط هم شامل دی.

د دې ترڅنګ امام الحرمین جویني رحمه الله هم په خپل کتاب "الارشاد فې اصول الاعتقاد" (۳۵۹) مخ کې د قریشي کېدلو شرط د کتنې وړ ګرځولی دی. د هغه یو کتاب "غیاث الامم في تیارات الظلم" هم دی چې لنډ نوم یې "الغیاثي" دی. دا په حقیقت کې نوموړي د نظام الملک طوسي په غوښتنه لیکلی دی، او په دې کتاب کې د اسلام سیاسي احکامو په اړه ډېر زیات ګټور او اوږده بحثونه موندل کیږي چې په نورو کتابونو کې یې موندل ګران دي. په دې کتاب کې چې د امیر لپاره د قریشي شرط په اړه کوم بحث شوی له هغه داسې برېښي چې نوموړی د قریشي شرط د امامت د ضروري صفتونو څخه نه بولي، خو د امت د اوږده تعامل له امله یې ضروري ګڼلی دی. ابن خلدون رحمه الله هم د قاضي ابوبکر باقلاني رحمه الله مذهب دا بولي چې هغه د امام د پاره قریشي شرط نه دی ګڼلی. خو د قاضي باقلاني رحمه الله په کتاب "تمهید الاوایل" کې له ۱۷۴ نه تر ۳۷۳ مخ پورې د امیر لپاره د قریشي د شرط تائد شوی دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کې په دې تړاو پوره بحث کړی دی، او ویلي یې دي: ښکاري چې حضرت عمر رضی الله عنه هم په دې اند و چې د

[1]) حاشیه علی الغیاثی لعبد العظیم الدیب. ص۸۲.



امیر د پاره قریشي کېدل شرط نه دی، چې لامل یې په مسند احمد کې د سهي مسند روایت له لاري داسې رانقل شوی چې عمر رضی الله عنه له مرګ نه مخکې ویلي و: که زما د مرګ پر وخت ابو عبیده ژوندی و؛ نو زه به هغه خلیفه ټاکم، او دارنګه که معاذبن جبل زما د مرګ پروخت ژوندی و؛ نو هغه به خلیفه ټاکم. ابو عبیده بن الجراح رضی الله عنه خو قریشي و؛ خو د معاذ بن جبل رضی الله عنه په اړه ویل کیږي چې دی انصاري صحابي و.

دغه راز په تاریخ طبري کې دي چې حضرت عمر رضی الله عنه دا هم ویلي و، چې: "لوكان سالم أبي حذيفة حيا استخلفته، فإن سألني ربي قلت سمعت نبيك يقول إن سالما شديد الحب لله". (۱)

که د ابو حذیفه مریی سالم ژوندی و؛ نو زه به هغه خلیفه ټاکم، او که زما رب را څخه د دې پوښتنه وکړه؛ نو زه به ورته وایم چې ما ستا له نبي څخه اورېدلي و چې سالم الله سره ډېره مینه لري.

او سالم هم قریشي نه و (خو که د مریي توب د اړیکي له امله شي).

له دې سره سره حافظ ابن حجر رحمه الله دا ویلي دي چې دا خبره هم ګرانه ده چې د امت د اړدي مودې تعامل پر همدې را روان دی، ځکه چې د معتزله وو او خوارجو پر ته پخپله په اهل سنتو کې هم ډېری غیر قریشي خلیفه ګان ټاکل شوي دي، لکه ابن الاشعث او په اندلس کې بنو عاد او عبد المؤمن او داسې نور. (۲)

دغه راز ځیني علماء د غیر قریشي خلافت د دې حدیث نه هم ثابتوي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: "اسمعوا و اطيعوا و إن استعمل عليكم عبد حبشيّ كأن رأسه زبيبة." (۳)

[1]) تاریخ طبري ج۲ص۵۸۰

[2]) فتح الباري، کتاب الاحکام، ج۱۳ص۱۱۹.

[3]) صحیح البخاري، کتاب الصلواة، باب امامة العبد. حدیث ۱۲۹۳ و ایضا باب السمع والطاعة، حدیث ۷۱۴۲.

د امیر خبره واورئ او ویې منئ، که څه هم پر تاسو داسې حبشي غلام مقرر کړل شي چې سر یې د ممیز هومره وي.

خو په دې حدیث استدلا کول کمزوري دی ځکه چې امیر کیدل بېله خبره ده او امیر ټاکل بېله ده. داسې کېدلی شي چې څوک د زور په مټ امیر شي، یا په داسې وخت کې امیر کړل شي چې هغه مهال په قریشو کې داسې څوک نه وي پاتې چې د واکمنۍ ټول صفتونه پکې موجود وي. په داسې وخت کې په اتفاق سره غیر قریشي مشر کول منل کیږي؛ نو ځکه له دې نه دا استدلال کول سهي نه دی چې غیر قریشي پخپله خوښه امیر کېدل روا دي. خو د حضرت عمر رضی الله عنه حدیث بې شکه ډېر قوي دلیل دی چې که قریشي کېدل شرط وایي؛ نو حضرت عمر به داسې نه ویل.

له بلې خوا هغه علماء چې د قریشي شرط سهي نه بولي، هغوی د "الأئمة من قریش" په څېر حدیثونو په اړه داسې وایي چې دا خبر دی، انشاء نه ده، یعني داسې یې نه دي ویلي چې له قریشو بهر بل څوک امیر ټاکل روا نه دی، دا یو خبر دی چې په راتلونکي کې کوم امیران راځي هغه به له قریشو څخه وي، لکه په ځینو روایتونو کې راځي چې له ما وروسته به دوولس امامان وي، او ټول به له قریشو څخه وي.(١) دارنګه الأئمة من قریش هم یو خبر دی چې زما نه وروسته کوم امیران راځي هغه به له قریشو وي.

علامه ابن خلدون رحمه الله په خپله مقدمه کې پر دې مسئله ډېر اوږد او تفصیلي بحث کړی دی، او هغه یو بل نظر وړاندې کړی دی. نوموړی وایي چې دا حدیث (الأئمة من قریش) په حقیقت کې یو شرعي حکم دی چې له قریشو پرته بل څوک خلیفه نشي کېدلی؛ خو دا حکم پر یو علت ولاړ دی، ځکه چې اسلام د خپلو حکمونو بنسټ په کوم ځانګړي نسل یا وخت پورې نه دی تړلی؛

(١) رواه مسلم عن جابر بن سمرة، کتاب الامارة، باب الناس تبع لقریش، حدیث ۴۶۲۹.



نو علت دا دی چې اسلام دا خبره په پام کې نیولې ده چې څوک امیر ټاکل کیږي، هغه باید عامه قبولیت ولري او خلک چمتو وي چې دی د مشر په توګه ومني، د ده په اطاعت کولو کې هیڅ ستونزه نه وي او د ده واکمني ومنل شي، او دا علت هغه مهال په قریشو کې موندل کیده چې نوموړی یې په "عصبیت غالبه" سره تعبیر کوي. که څه هم ابن خلدون چې کله عصبیت غالبه کلمه کاروي، په هغې سره ذهن د قبائلي عصبیت غلط مفهوم ته ورګرځي؛ خو د دې اصطلاح د شننې وروسته په دې خبر شو چې له دې نه د ابن خلدون مراد نسبي عصبیت نه دی؛ بلکې د نوموړي مراد دا دی چې د یو ګروه پر زړونو داسې واکمني کول چې د ده خبرو اوریدلو او منلو ته تیار وي. نوموړی دا وایي چې اصل تمرکز پر دې خبره دی چې مشر دې د یوې داسې طبقې څخه وټاکل شي چې خلک ورباندې اعتماد کوي، او د هغه مشرۍ ومني او په خوښۍ سره د هغه حکمونو منلو ته تیار وي، هغه مهال دا خبره په قریشو کې کېدلای شوه ځکه چې د عربو ټولې قبیلې له دوی پرته پر نورو نشوې راټولېدلی؛ نو ځکه د قریشو په اړه وویل شول چې امیران به له قریشو وي.(١)

د علامه ابن خلدون رحمه الله د دې نظر په تائید کې دا هم ویل کیږي چې د دبنو ساعده وو څپر (سقیفه بنو ساعده) په غونډه کې چې ابوبکر صدیق رضی الله عنه د قریشي خلیفه کولو په اړه څه ویلي و هغه داسې وو: "لن یُعرف هذا الأمر إلا لهذا الحي من قریش، هم أوسط العرب نسبا و دارا.(٢)

دا امر (د خلافت چارې) به د قریشو د دې قبیلې پرته بل چاته هڅکله هم ونه سپارل شي، دوی د نسب او کور له پلوه د ټولو عربو منځ دی.

(١) مقدمه ابن خلدون، فصل ٢٦ فی اختلاف الامة فی حکم هذا المنصب و شروطه ص ٢۴٣.
(٢) صحیح البخاري، کتاب الحدود، رجم الحبلي من الزنا، حدیث ٦٨٣٠.

په دې وینا کې ابوبکر صدیق رضی الله عنه پر دې خبره ډېر ټینګار وکړ چې د عربو خلک به د قریشو پرته د بل هیڅ چا قیادت نه مني. داسې یې و نه ویل چې له قریشو پرته د نورو خلکو مشري کول شرعا حرام او نا روا دي. دا د ابن خلدون رحمه الله نظر و. خو ځیني نور علماء بیا وایي چې ابوبکر صدیق رضی الله عنه د بنو ساعده وو په څپر کې دا حدیث هم ویلی و چې: "الأئمة من قریش" چې دا خبره ابن حجر رحمه الله تر همدې حدیث لاندې د مسند احمد په حواله را نقل کړې ده.(۱)

لنډه دا چې دا د ګڼ شمېر عالمانو نظرونه دي، خو په دې کې شک نشته چې علماء، فقهاء او زیاتره متکلمین د دې خبرې قائل دي چې خلیفه قریشې کېدل ضروري دي. خو دا شرط هغه مهال سهي دی چې کله په قریشو کې داسې څوک وي چې د امیر ټول صفتونه پکې موجود وي، او که په قریشو کې داسې عالم او عادل تن نه وي بیا په دې وخت کې پر دې اتفاق دی چې غیرقریشي تن مشر کول روا دي، او همدا له حدیثو هم مالومېږي. په دې اړه انس رضی الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه داسې روایت کوي:

"الأئمة من قريش ما عملوا بثلاث، إذا استُرحموا رحموا و إذا عاهدوا اوفوا و إذا حكموا عدلوا." (۲)

قیادت به تر هغو په قریشو کې وي چې په دوی کې درې خبرې موجودې وي: چې کله ورڅخه د رحم کولو غوښتنه وشي؛ نو دوی رحم کوي، او چې ژمنه وکړي؛ نو سر ته یې رسوي او چې پرېکړه کوي نو انصاف کوي.

له دې څرګندېږي چې کله په قریشو کې دا صفتونه سلب شي ؛ نو دوی د مشرۍ اهل نشي ګڼل کېدلی. په دې کې په ښکاره هغه صورت هم را تلی شي

(۱) فتح الباری، ج۱۲ص۱۵۲.
(۲) رواه البزار' کشف الاستار۲: ۲۲۸.



چې د نسب له مخې مالومه نه وي چې څوک قریشي دی او څوک نه دی، او د عجمي قریشو په اړه فقهاء وایي چې دوی خپل نسب ضائع کړی دی، څو چې د دوی بشپړ معلومات ونشي تر هغو قریش نشو ورته ویلای. نو په دې صورت کې غیرقریشي مشر کول د ټولو په اتفاق روا کړل شوی دی.

دغه راز قریشي کېدل د خلیفه لپاره شرط دی؛ خو که خلیفه غواړي څوک پر یوه ځانګړې سیمه والي وټاکي یا بله کومه دنده ور وسپاري ؛ نو له قریشي پرته بل څوک هم ټاکلی شي. او ابن حجر رحمه الله دا شرط د "امامت کبری" لپاره مقید ګرځولی دی.(۱)

**پنځم شرط**: **پوهه**

د اسلامي سیاست په اړه ټول عالمان پر دې خبره یوه خوله دي چې د امیر لپاره علم ضروري دی. اوس پوښتنه دا ده چې د پوهې کچه او معیار به یې څومره وي؟ په دې اړه ځیني عالمان وایي چې امیر باید مجتهد وي. دا خبره علامه ماوردي رحمه الله په خپل کتاب "الاحکام السلطانیه" کې لیکلې ده. خو متأخرین علماء بیا وایي چې مجتهد کېدل ضروري نه دي؛ خو دومره علم اړین دی چې د یو واکمن لپاره د اسلامي تګلارې سره سم د واکمنۍ کولو لپاره ضروري وي.

**شپږم شرط**: **عدل**

شپږم شرط عدالت دی، د عدالت مانا دا ده چې انسان به پخپل ژوند کې د اسلامي احکامو پابند وي، او له ګناهونو به ځان ساتي. قاضي ابویعلی الفراء رحمه الله وایي چې په امیر کې باید د علم او عدالت صفتونه په هغه کچه وي څومره چې د قاضي د پاره ضروري دي.(۲)

(۱) فتح الباري، کتاب الاحکام ج۱۳ص۱۱۹.
(۲) الاحکام السلطانیه لابی یعلی ص۲۰.

په لومړي سر کې د قاضي لپاره دا هم ضروري ګرځول شوي و چې په علم کې به د اجتهاد درجې ته رسېدلی وي او د عدالت ټول شرطونه به پکې وي.
علامه ابن تيميه رحمه الله پخپل کتاب "السياسة الشرعيه" کې پر دې موضوع هم پوره بحث کړی دی تر دې چې هغه وايي په عدالت کې څوک تر ټولو غوره وي بايد هغه امير يا قاضي وټاکل شي، او د دې لپاره د عبدالله بن عباس رضي الله عنه روايت په دليل کې راوړي، هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: "من استعمل رجلا من عصابة وفي تلك العصابة من هو أرضى لله منه فقد خان الله وخان رسوله وخان المؤمنين" (۱)

چا چې پر يوې ډلې داسې کس مشر کړ چې په هغې کې تر ده بل الله ته ډېر خوښ و؛ نو له الله او د هغه رسول او مسلمانانو سره يې خيانت وکړ.

امام ابوحنيفه رحمه الله وايي چې د مسلمان د عادلانه ګواهي منلو د پاره، يوازې د هغه ظاهري عدالت هم بس دی، معنا دا چې که په ظاهره په ده کې د فسق نښې نښانې نه وي؛ نو دی به عادل ګڼل کېږي د دې د پاره ځانګړي تحقيق ته اړتيا نشته. خو صاحبينو بيا بل ډول درېځ خپل کړی دی، هغو وايي چې د تزکية الشهود (د ګواهي څېړنه) له لارې هم د ده تحقيق کول ضروري دي، او د احنافو فقهاوو د صاحبينو پر رايه فتوا ورکړې ده.(۲)

خو د وخت په تېرېدو اسلامي ټولنه له زوال سره مخ شوه، او په دې شرطونو کې نرمي راغله، وروسته علماوو د عدل د پاره دا شرط غوره کړ چې: "من غلب حسناته على سئاته"

(۱) مستدرک الحاکم، کتاب الاحکام ۴: ۱۰۴ حديث ۷۰۲۳ وقال: صحيح الإسناد، ولم يذكره الذهبي في التلخيص.
(۲) فتح القدير: ج۷ ص۴۵۷، ۴۵۸.



عادل هغه څوک دی چې نېکۍ يې تر بديو زياتې وي.

بيا دا وويل شول چې نن د عدالت ټول شرطونه په يو چا کې موندل ډېر ګران دي؛ نو د عدالت معيار بايد په لاندې ډول وي: "إنّ العدل بالنسبة للقاضي هو الحكم بالحق، و بالنسبة للوالي هو الإنصاف بدون غدر.(۱)

د قاضي عدل دې ته وايي چې د حق پر پرېکړه وکړي، او د حاکم عدل هغه دی چې د ظلم پرځای انصاف وکړي.

خو پام مو وي چې د دې خبرو ترمنځ ټکر نشته. او دلته د دوو خبرو ترمنځ توپير کول ضروري دي: لومړی دا چې څوک قاضي يا امير و ټاکل شي؛ د هغه دنده به څه وي؟ او دويم دا چې څوک امير يا قاضي شي او يا وټاکل شي؛ نو د دې څه حکم دی؟ د لومړي پوښتنې په اړه به داسې ووايو چې ټاکونکې ډله مسؤليت لري چې تر بشپړې څېړنې او تحقيق وروسته تر ټولو غوره شخصيت وټاکي، او د نېک سړي په شتون کې دې بد سړي ته ترجيح نه ورکوي، لکه مخکې چې د مستدرک حاکم په يو حديث کې ورته اشاره شوې وه. خو که داسې څوک پيدا نه شو يا د دوی له اختيار پرته کوم فاسق واکمن يا قاضي وټاکل شو؛ نو دا بيا يوه مجبوري ده او دا دې پرېښودل شي. چې فتح القدير يې د امام غزالي رحمه الله له خولې داسې بيانوي: "اجتماع هذه الشروط من الاجتهاد والعدالة و غيرهما متعذر في عصرنا لخلو العصر من المجتهد والعدل، فالوجه تنفيذ قضاء كل من ولاه السلطان ذوشوكة وإن كان جاهلا

(۱) درر الحكام، ماده: ۱۷۰۵، ص: ۳۵۹ ج ۴.

فاسقا، وهو ظاهر المذهب عندنا. فلو قلّد جاهلا فاسقا صحّ ويحكم بفتوى غيره، ولكن لا ينبغي أن يُقلّد." (١)

زمونږ په زمانه کې ډېره ګرانه ده چې په چا کې د عدالت او اجتهاد ټول شرطونه پوره شي ځکه چې ننۍ عصر د مجتهد او عادل شخه خالي دی؛ نو نن چې پاچا هرڅوک قاضي وټاکلو د هغه پرېکړې به نافذالعمل وي، که څه هم هغه فاسق يا جاهل وي او همدا زمونږ د مذهب ظاهري غوښتنه ده. نو که پاچا کوم فاسق يا جاهل قاضي مقرر کړي، ټاکنه يې سهي ده او داسې قاضي به د بل چا (مفتي) په فتوا عمل کوي؛ خو داسې سړی بايد قاضي و نه ټاکل شي.

### ٣. د امير ټاکل

د اهليت پورتنيو صفتونو له مخې د اسلام حکم دا دی چې د امير يا خليفه ټاکل بايد د شورا له لارې تر سره شي. د دې ټاکنو اصول دوه برخې لري: لومړی دا چې پر مسلمانانو واجب دي چې پر ځان يو تن امير و ټاکي چې د فقه او عقائدو په کتابونو کې يې په نصب الامام سره تعبيروي، دوهمه دا چې دا ټاکنه به د شورا له لارې کيږي. تر کومه ځايه چې په نصب الامام پورې تړاو لري، ټول فقهاء او د عقائدو علماء پر دې يوه خوله دي چې د امير ټاکل پر مسلمانانو واجب دي. د ټولو مسلمانانو دنده ده چې يو تن خپل امير وټاکي او د دې کار لپاره دې داسې څوک غوره کړي چې د پورتنيو صفتونو څښتن وي، په لنډه توګه داسې ويلی شو چې د امير ټاکل پر مسلمانانو يو ډول فرض کفايي دي.

(١) فتح القدير، کتاب ادب القاضي، ج٦ص٣٥٧.



خو دلته دا توپير هرومرو بايد وشي چې دا کار له هغه حالت سره تړاو لري چې مسلمانان کوم امير ونه لري، دوی پرته له کوم مشر نه ژوند کوي، څوک يې مشر نه وي او نه هم کوم واکمن و لري، په داسې وخت کې په مسلمانانو کې يو تن خپل مشر ټاکل پر دوی واجب دي. خو که څوک د دوی مشر و ټاکل شي، که څه هم هغه د زور له لارې ټاکل شوی وي او د هغو صفتونو څښتن نه وي چې بايد يو مشر يې ولري؛ نو په دې وخت کې بايد مسلمانان څه وکړي؟ د دې تړاو له هغې مسئلې سره دی چې څه ډول بايد مسلمانان شته واکمن ګوښه کړي. دا مسئله ان شاء الله وروسته را روانه ده.

د دې اصولو دويمه برخه داده چې د امير ټاکل د شورا له لارې ضروري دي. شريعت د دې جواز نه ورکوي چې يو تن په زوره پر تخت کښېني، يا له اهل حل او عقد سره د شورا کولو پرته دوه درې تنه څوک پر تخت کښېنوي. بلکې دا ټاکنې به د شورا له لارې کيږي، چې قرآن شريف يې داسې بيانوي: وَ اَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ(١)

ژباړه: د دوی هرکار په خپل منځي مشورې سره وي.

پر دې سربېره د شورا له لارې د خليفه ټاکلو تر ټولو ستر دليل دا دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم هيڅوک خپل ځای ناستی نه دی ټاکلی او دا نه ټاکل د دې خبرې دليل دی چې د دې ټاکل يې عامو مسلمانانو ته پرې ايښې دي، که دا کار د عامو مسلمانانو نه وايي؛ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم به پخپله څوک ټاکلی و.

او تر دې هم څرګند دليل هغه حديث دی چې په صحيح بخاري کې راوړل شوی دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم حضرت عائشې ته وويل: "لقد

(١) سورة الشورى: ٣٨.

هممت أو أردتُ أن أرسل إلى ابوبكر وابنه أعهد أن يقول القائلون أو بتمني المتمنّون، ثم قلت يأبى الله و يدفع المؤمنون.(۱)

ما اراده وکړه چې ابوبکر او د هغه زوی ته پیغام ور ولیږم، او هغه ته (د خلیفه ټاکلو) وصیت وکړم؛ خو بیا مې وویل چې الله تعالی به هم له دې (له ده پرته د بل چا د خلیفه ټاکلو) څخه انکار وکړي، او مسلمانان به دا (بل څوک) دفعه کړي.

له دې نه په څرګندو ټکو معلومیږي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خلیفه ټاکل د مسلمانانو رایې ته پرېښې دی، او د هغه باور و چې مسلمانان به له ابوبکر پرته پر بل چا راټول نه شي؛ نو ځکه یې خپله د ټاکلو اړتیا نه لیدله.

د شورا له خوا د خلیفه ټاکلو د اهمیت په اړه د عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه یو اوږد حدیث دی چې امام بخاري رحمه الله په ډېر تفصیل سره رانقل کړی دی، دلته یې یوازې غورچاڼ را اخلو: حضرت عمر رضی الله عنه د خپل ژوند په وروستي حج کې له ځینو خلکو واورېدل چې پخپلو کې یې یو بل ته ویل چې د ابوبکر صدیق سره چې کوم بیعت وشو هغه د خپل منځي اړیکو پر بنسټ او په بېړه شوی دی، او په دې سره ابوبکر صدیق خلیفه و ټاکل شو؛ نو موږ به هم د عمر رضي الله عنه د مرګ پروخت له تلوار څخه کار اخلو او پخپله خوښه به له یو چا سره بیعت کوو؛ نو هغه به هم په داسې توګه خلیفه وټاکل شي لکه ابوبکر صدیق چې خلیفه ټاکل شوی و. دا خبره عبد الرحمن بن عوف حضرت عمر رضي الله ته وکړه چې په خلکو کې داسې ډول خبرې کیږي.

په دې سره عمر رضی الله عنه ډېر اند ښمن شو، په پیل کې یې اراده وکړه چې د همدې حج پروخت به خلکو ته په دې اړه یوه وینا کوي، او دا غلط فهمي

[۱]) صحیح البخاري، کتاب المرضي، حدیث ۵۲۲۲.



به له منځه وړي؛ خو عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه مشوره ورکړه چې د حج پروخت د هرځای خلک راځي. دا یوه نازکه او مهمه خبره ده، که ته چېرې په دې اړه څه ووایې؛ نو داسې نه چې څوک ستا له خبرو بل ډول مطلب واخلي او بیا به هر ډول خبرې په تا پورې تړي او نورو ته به یې رسوي. نو ښه داده چې کله مدینې ته ستون شې هلته د دې خبرې پوره وضاحت وکړه، ځکه چې مدینه منوره د مهاجرو او انصارو د پیاوړو او هوښیارو خلکو مرکز دی، هغوی ستا په خبرو ښه پوهیږي او له هغو نه ښه نتیجه را ویستلای شي.

عمر رضی الله عنه دا مشوره خوښه کړه او چې کله بېرته مدینې ته ستون شو نو هلته یې په دې اړه اوږده او څرګنده وینا وکړه چې امام بخاري ټوله را اخیستې ده. د دې وینا اهمیت تاسو له دې نه هم مالومولای شئ چې عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه له مخکې نه منتظر و چې نن به عمر رضی الله عنه پر یوه مهمه موضوع خبرې کوي. نو موږ په هغه ورځ له ده سره په څنګ کې ناست سعید بن زید رضي الله عنه ته وویل چې اوس به عمر پر یوه ډېره مهمه مسئله خبرې کوي، دوی لا دا خبرې نه وې ختمې کړي چې حضرت عمر رضی الله عنه خپله وینا پیل کړه، نو موږ پخپله وینا کې پر ډېرو خبرو رڼا واچوله، او ویې ویل: "إنه بلغني أن قائلا منكم يقول والله لومات عمر بايعت فلانا. فلا يغترّنّ امرؤ أن يقول إنما كانت بيعة أبي بكر فلتة وتمّت. ألا وإنها كانت كذلك ولكنّ الله وقى شرّها، وليس منكم من تُقطع الأعناق إليه مثل أبي بكر. مَن بايع رجلاً عن غير مشورة من المسلمين فلا يُتابع هو ولا الذي تابعه تغِرّة أن يُقتلا. وإنه كان من خيرنا حين توفّى الله نبيّه.(۱)

[۱]) صحیح البخاري، کتاب الحدود، باب رجم الحبلي من الزنا. حدیث:۲۹۳۰.

ما واورېدل په تاسو کې چا ویلي چې عمر مړ شي؛ نو زه به پلاني سره بیعت کوم. هیڅوک باید په دې دوکه نه شي چې د ابوبکر بیعت په بېړه شوی دی، او بیا هغه کامیاب هم شو. خبر دار! هغه بیعت په همغه ډول ضروري و(مانا دا چې له لومړي سره داسې ونه شو چې له اهل حل او عقد سره په دې تړاو مشوره وشي، هلته چې څوک سره راټول شوي و هغوی له ابوبکر سره بیعت وکړ) خو الله تعالی هغه له شر نه وساته. او په تاسو کې د ابوبکر په څېر بل داسې څوک نه و چې د خلکو مخونه ور اوښتي وای. څوک چې د مسلمانانو د مشورې پرته له چا سره بیعت وکړي؛ نو نه دې د هغه پیروي کیږي او نه دې د هغه چا پېروي کیږي چې بیعت یې ورسره کړی وي، ځکه چې د دې دواړو په اړه دا اندېښنه شته چې ووژل شي. او کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له دې نړۍ سترګې پټولې په موږ کې تر ابوبکر غوره بل څوک نه و.

له دې وروسته حضرت عمر رضی الله عنه د بنو ساعده وو د څپر (هغه ځای چې له ابوبکر سره پکې بیعت وشو) پوره کېسه وکړه چې څه ډول ناڅاپه ده ته خبر راغی چې هلته انصار سره راټول شوي او خلیفه ټاکي، او بیا دی او ابوبکر څه ډول هلته ورغلل، له یوې خوا دا وېره وه که انصار څوک خلیفه وټاکي؛ نو په امت کې به یو لوی درځ رامنځ ته شي، او له بلې خوا دا خبره یقیني وه چې ټول امت پر ابوبکر راټولیږي ځکه چې د ټولو په اتفاق هغه په موږ کې تر ټولو غوره و، له همدې امله موږ د هغه د بیعت د پاره لاسونه پورته کړل، د دې کېسې پر وخت حضرت عمر رضی الله عنه هغه جمله بیا تکرار کړه، چې: مَن بايع رجلاً عن غير مشورة من المسلمين فلا يُتابع هو ولا الذي تابعه تغِرّة أن يُقتلا.

څوک چې د مسلمانانو د مشورې پرته له چا سره بیعت وکړي؛ نو نه دې د هغه پیروي کیږي او نه دې د هغه چا پېروي کیږي چې بیعت یې ورسره کړی دی، ځکه چې د دې دواړو په اړه دا اندېښنه شته چې ووژل شي.



او په مصنف ابن ابي شیبه کې د ابوهریره رضی الله عنه له خولې دا الفاظ داسې رانقل شوي دي: "من انتزع أمور المسلمين من غير مشورة فلا بيعة له."(۱)

څوک چې د مسلمانانو له مشورې پرته د دوی چارې په زور تر سره کوي، د هغه بیعت نه کیږي.

دا ټول د لائل د دې خبرې د پاره بس دي چې د خلیفه ټاکلو د پاره مشوره ضروري ده. اوس د شورا څه مطلب دی؟ آیا د عامه ټاکنو له لارې دا کار تر سره شي او که د کوم ځانګړي ګوند له خوا ټاکنې وشي؟ د دې د پاره قرآن کریم کوم ځانګړې کړنلاره نه ده ټاکلې بلکې د دې تفصیلات یې د هر دور مسلمانانو ته پرېښي دي. خو په دې اړه په عامه توګه علماوو دا ویلي دي چې د شورا معنا دا نه ده چې هر بالغ سړی که هغه اهلیت لري او کنه د شورا غړی به وي او د امیر ټاکنه به کوي. بلکې د شورا مطلب دا دی چې اهل حل او عقد به په دې اړه رایه ورکوي. دا د اسلامي سیاست یوه اصطلا ده چې د خلیفه ټاکنه به اهل حل او عقد کوي، د دې دلیل دا دی چې د راشدینو خلفاوو په وخت کې کومې ټاکنې شوې دي هغه یوازې د اهل حل او عقد په مشوره شوي دي. د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په وخت کې داسې وشول چې له یوه یوه فرد نه رایه وانه خیستل شوه؛ خو د مهاجرینو او انصارو یو ټولګی کښېناست او دوی ټولو په ګډه پرېکړه وکړه. بیا حضرت عمر رضی الله عنه له ځان نه وروسته د خلیفه ټاکلو د پاره شپږ کسیزه شورا ټاکلې وه، دوی ته یې د خلیفه ټاکلو اختیار ورکړ او ټولو په اتفاق سره عثمان بن عفان رضی الله عنه خلیفه وټاکی. بیا چې کله عثمان رضی الله عنه شهید شو؛ نو خلک حضرت علي رضی الله عنه ته ورغلل، او هغه ته یې د بیعت د پاره لاسونه وراږده کړل، علي

---

۱) مصنف ابن ابي شیبه بتحقیق عوامه ۱۲ص۳۰۷ ما قالوا في الفروض و تدوین الدواوین.

رضی الله عنه وويل: "ليس ذالك إليكم إنما هو لأهل الشورى و أهل بدر فمن رضي به أهل الشورى فهو الخليفة فنجتمع و ننظر في هذا الأمر"(۱)

دا کار ستاسو په لاس کې نه دی. دا د شورا غړو او بدري صحابه وو کار دی، دوی چې هر څوک وټاکي هغه به خليفه وي؛ نو موږ سره راټوليږو او په دې اړه پريکړه کوو.

دغه راز په تاريخ طبري کې د عمر بن شبه له خولې رانقل شوي چې کله په پيل کې صحابه حضرت علي رضی الله عنه ته ورغلل او غوښتل يې له هغه سره بيعت وکړي؛ نو هغه ته يې وويل چې عثمان رضی الله عنه شهيد شو، اوس د يو تن په لاس بيعت ضروري دی، نو له تا نه غوره بل څوک نشته چې په اسلام کې دومره مخکې وي او د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره نږدې اړيکي ولري، هغه ورته وويل: "لا تفعلوا فإني أن أكون وزيرا خير من أن أكون أميرا.

داسې مه کوئ! ما ته تر امارت وزير کېدل غوره دي.

خو بيا چې کله خلکو ډېر ټينگار وکړ؛ نو هغه ورته وويل: ښه نو د رځئ چې نبوي جومات ته ولاړ شو ځکه چې: "فإن بيعتي لاتكون خفيا ولاتكون إلا عن رضا المسلمين".

زما بيعت پټ او د مسلمانانو له خوښې پرته نشي تر سره کېدلی.

عبد الله بن عباس رضی الله عنه وايي ما دا نه خوښوله چې علي رضی الله عنه نبوي جومات ته ولاړ شي، ځکه دا انديښنه وه چې ځيني خلک به کړکيچ

۱) الإمامة والسياسة لابن قتيبه ج۱ص۴۳.



رامنځ ته کړي؛ خو حضرت علي رضی الله عنه دا ونه منله او جومات ته ولاړ، بيا وايي: "فلما دخل دخل المهاجرون و الانصار فبايعوه، ثم بايعه الناس"(۱)

کله چې علي رضی الله عنه جومات ته ننوت؛ نو مهاجر او انصار هم جومات ته راغلل، او دوی له علي رضي الله عنه سره بيعت وکړ، بيا ټولو خلکو بيعت وکړ.

نو حضرت علي رضی الله عنه د عامو خلکو رايه غوره و نه گڼله، او ويې ويل چې د شورا غړي او بدريان راټول شي. د دې پر بنسټ د سياست علماء وايي چې د خليفه ټاکلو دنده اهل حل او عقد ته سپارل شوې ده، هغوی به دا ټاکنه کوي.

د اهل حل او عقد نه مراد هغه خلک دي چې عوام يې د رايي خاوندان او خپل مشران بولي. په هغه وخت کې چې کوم خلک اهل حل او عقد شمېرل کېدل په هغو کې د مختلفو قبائلو مشران هم وو، علماء هم وو، فقهاء هم وو، او د بېلابېلو ټولگيو مشران هم وو، او دا اصطلا کومه مبهمه اصطلا نه وه چې د دې په ټاکنو کې کومه ستونزه وي بلکې په عامه توگه په ټولنه کې خلکو ته دا مالومېږي چې اهل حل او عقد کوم خلک دي. د دې د پاره د کومې ځانگړې ټاکنې اړتيا نه وه، بلکې عامو خلکو به دا خلک پېژندل او پوهېدل چې ترڅو د دوی مشوره نه وي تر هغوی دوی خپل نماينده نه پېژني.

او په عامه توگه د خليفه ټاکلو تگلاره داسې وه چې اهل حل او عقد به د هغه په لاس بيعت کاوه، او د بيعت پر وخت به داسې الفاظ کارول کېدل:

"بايعناک راضين على إقامة العدل والقيام بفروض الإمامة على كتاب الله وسنة رسوله صلى الله عليه وسلم. (۱)

۱) تاريخ طبري ج۲ص۲۹۲.

( مور پخپله خوښه تاسره ددې لپاره بيعت کوو چې ته به د قرآن او سنت سره سم د خلافت چارې پرمخ بيايې او عدل به راولې. )

خو د بيعت د پاره لاس په لاس کې ورکول ضروري نه دي بلکې په خوله هم بيعت کيږي.

خووروسته د اهل حل او عقد هغه حالت پاتې نه شو چې پرته له کومې شخړې به هغوی وټاکل شول. اوس د اهل حل او عقد د ټاکنو د پاره بايد مسلمانان کومه تګلاره غوره کړي او نن کومه تګلاره غوره کېدلی شي؟ د دې ځواب دادی چې د شورا مجلس چې وروسته به يې يادونه وشي، اوس اهل حل او عقد شمېرل کېدلی شي. او د مشرانو جرګه او ولايتي شورا په ګډه هم اهل حل او عقد ګڼل کېدلی شي او د شورا مجلس ټاکل مخامخ د ټاکنو له لارې تر سره کېدلی شي چې کړنلاره به يې ان شاء الله د شورا مجلس په بحثونو کې راشي. دا رنګه په ښکاره په شريعت کې د دې خبرې جواز هم شته چې خپله خليفه هم د ټاکنو له لارې راتلی شي ځکه چې د دې پر خلاف هم کوم نص نشته.

دا د نصب الامام (امير ټاکل) هغه تګلاره وه چې د ټولو په اتفاق سهي او معياري بلل کيږي. خو د يو امير د ټاکلو او يا منلو دوه نورې لارې هم شته چې شرعا معتبرې ګڼل شوي دي. يوه د استخلاف (ځای ناستي ټاکل) تګلاره او بله د استيلاء (په زوره واک ته رسېدل). پر دې دواړو هم رڼا اچول ضروري دي.

[1] تحرير الأحكام في تدبر أهل الإسلام لابن جماعة،ص٥٧.



## ۴. ځای ناستی ټاکل

د استخلاف معنا دا ده چې يو څوک په شرعي توګه امير وټاکل شي، بيا هغه په ژوند کې خپل ځای ناستی ونوموي چې تاسو ورته ولي عهد ټاکل هم ويلی شئ. که څه هم د ولي عهد کلمه په سلطنت کې کارول کيږي؛ خو د خلافت په نظام کې د دې اصطلاحي لفظ استخلاف دی او د اسلام په سياسي نظام کې د دې اجازه هم شته.

ځکه ابوبکرصديق رضي الله عنه په خپل ژوند کې حضرت عمر رضي الله عنه خپل ځای ناستی ټاکلی و، او مخکې تېر شو چې پخپله حضرت عمر رضي الله عنه هم هيله خرګنده کړې وه که ابوعبيده بن الجراح ژوندی و؛ نو زه به هغه خپل ځای ناستی ټاکم، له دې نه معلوميږي چې استخلاف روا دی. خو په دې لړ کې درې ټکې په پام کې نيول اړين دي:

۱- لومړی دا چې استخلاف يوازې د وراثت پر بنسټ نشي کېدلی، همدا لامل و چې کله ابراهيم عليه السلام د خپل اولاد لپاره د امارت غوښتنه وکړه؛ نو الله تعالی ورته وويل: لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ (١)

او کله چې ابوبکر صديق رضي الله عنه عمر فاروق خپل ځای ناستی وټاکه؛ نو خلکو ته يې وويل: ما پر تاسو خپلوان نه دي ټاکلي.(٢)

او پر دې خبره د ټول امت اتفاق دی، علامه ابن حزم رحمه الله وايي: "ولا خلاف بين أحد من أهل الإسلام في أنّه لا يجوز التوارث فيها" (٣)

پر دې خبره د ټول امت اتفاق دی چې په خلافت کې وراثت روا نه دی.

[1] سورة البقرة:١٢۴.
[2] تاريخ الطبري:ج٢ص٣٥٢.
[3] الفصل في الملل والنحل ج٥ص١٢ قبيل "الكلام في عقد الإمامة بماذا يصح"

۲ دویم دا چې که خلیفه غواړي له ځان وروسته څوک وټاکي؛ نو پرې واجب ده چې د خلافت شرطونه په پام کې ونیسي او یو غوره تن وټاکي، او په دې ټاکنه کې هم باید له اهل رایو سره مشوره وکړي، لکه ابوبکر صدیق رضي الله عنه چې مشوره کړې وه، له مشورې کولو وروسته بیا که څوک خپلوان وټاکي؛ نو د خپلوي پر بنسټ به نه وي؛ بلکې د هغه د ذاتي وړتیاوو پر بنسټ به ټاکل شوی وي، او په دې سره له تهمت نه هم خلاصېدلی شي. لکه ابوبکر صدیق رضي الله عنه چې ویلي و: "ما پر تاسو خپلوان نه دي مشر کړی".

حضرت عمر رضی الله عنه ته وړاندیز شوی و چې خپل زوی عبد الله بن عمر رضي الله عنه دې خپل ځای ناستی وټاکي، مخکې تیر شو چې هغه دا خبره نه وه ګڼلې، تر دې چې په یو روایت کې راځي چا چې دا وړاندیز ورته کړی و هغه ته یې وویل: "ما أردت الله بهذا" (تا په دې وړاندیز کې د الله تعالی خوښي په پام کې نه ده نیولې).[1] حضرت عثمان رضی الله عنه خو شهید کړل شو هغه مهال د ځای ناستي ټاکلو موکه نه وه. له حضرت علي رضی الله عنه هم دا غوښتنه شوې وه چې خپل زوی حسن رضي الله عنه دې خپل ځای ناستی وټاکي، خلکو له نوموړي و پوښتل چې موږ د حسن په لاس بیعت وکړو؟ هغه په ځواب کې وویل: "لا آمركم ولا أنهاكم، أنتم أبصر"

زه نه تاسو ته امر کوم او نه مو له دې کاره ایساروم تاسو پخپله ښه پوهیږئ.

دغه راز ویې ویل: زه تاسو دا سې پرېږدم لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم چې پرې ایښي وئ.[2]

نو راشدینو خلفاوو که هم زامن او یا خپلوان خپل ځای ناستي نه دي ټاکلي. په لومړي ځل معاویه رضي الله عنه خپل زوی یزید خپل ولي عهد وټاکه خو دې

[1] طبقات ابن سعد ج۳ص۳۱۸

[2] مسند احمد ج۲ حدیث ۱۰۷۸ و مجمع الزوایدج ۹ ص ۱۳۷ وقال الهیثمي: رواه احمد و ابویعلی ورجاله رجال الصحیح غیر عبدالله بن سبیع و هو ثقة، ورواه البزار باسناد حسن.



خبرې ته مو پام وي چې دا کار هغه د خپل فکر سره سم د امت د ښېګړې د پاره کړی و، بله موخه یې نه درلوده، لکه ابن خلدون رحمه الله چې وایي: "وكذلك عَهِدمعاويةُ إلي يزيد خوفاً من افتراق الكلمة بما كانت بنو أميّة لم يرضوا تسليم الأمر إلي من سواهم. فلو قد عهد إلى غيره اختلفوا عليه مع أنّ ظنّهم كان به صالحا، ولايرتاب أحد في ذلك، ولا يُظنّ بمعاوية غيرُه فلم يكن ليعهد إليه وهو يعتقد ما كان عليه من الفسق، حاشا لله لمعاوية من ذلك." [1]

معاویه رضی الله عنه له دې امله خپل زوی ولیعهد وټاکی چې دا سې نه په مسلمانانو کې اختلاف رامنځ ته شي، ځکه چې امویانو نه خوښول د خلافت ګدی بل چاته وسپارل شي، که له ده پرته بل څوک ټاکل شوی وای؛ نو شونې وه چې اختلاف به رامنځ ته شوی وای. د دې ترڅنګ د یزید په اړه د دوی دا فکر هم و چې هغه به نېک سړی وي، او په دې کې باید هیڅوک شک ونه کړي او پر معاویه رضی الله عنه له دې پرته بل ګومان نشي کېدلی او که نوموړي باوري وای چې یزید فاسق دی؛ نو هیڅکله به یې هغه خپل ځای ناستی نه و ټاکلی.

د ابن خلدون د دې خبرې تاید په دې سره هم کیږي چې یو ځل معاویه رضي الله عنه په خپله وینا کې دا سې دعا وکړه: "اللّٰهُمَّ إن كنت تعلم أنّي ولّيته لأنّه فيما أراه أهل لذلك فأتمم له ما وليته، وإن كنت وليته لأنّي أحبه فلاتتم له ما وليته."[2]

اې الله! ته پوهیږې که ما دی (یزید) د دې لپاره خپل ځای ناستی ټاکلی وي چې د دې کار اهل دی؛ نو د ده دا کار په پوره توګه سرته ورسوې او که دا کار مې له ده سره د میني پر بنسټ کړی وي؛ نو ته یې مه ورته پوره کوې.

او حافظ شمس الدین ذهبي او علامه جلال الدین سیوطي رحمه الله د عطیه بن قیس په حواله د دې دعا الفاظ دا سې رانقل کړي دي: "اللّٰهُمَّ إن كنت عهدت

[1] مقدمة ابن خلدون، الکتاب الأول، باب۳فصل۲۸، ص ۲۵۸.

[2] البدایه والنهایه:ج۸ص۸۷.

"ليزيد لما رأيت من فضله فبلّغه ما أملت وأعنه' وإن كنت إنّما حملني حبّ الوالد لولده وإنه ليس لما صنعت به أهلا فاقبضه قبل أن يبلغ ذلك"

يا الله ! که ما یزید د ده د اهلیت له امله ټاکلی وي؛ نو ته یې هغه ځای ته ورسوې چې زما ورته هیله ده، او ته ورسره مرسته وکړې، او که دې کار ته زه هغې مېنې هڅولی یم چې پلار یې له زوی سره لري؛ نو مخکې له دې چې دی دې چوکۍ ته ورسیږي ته یې روح واخلې.

خو دا خبره پر خپل ځای سهي ده چې د دې اقدام پایله امت ته په زیان تمامه شوه، او د وروستیو خلکو له پاره یوه پلمه شوه چې بیا دا کار ډېر بې ځایه وکارول شو، او خلافت او مشري په عملي توګه میراثي وګرځېدله، که څه هم په دې منځ کې ځینې وقفې هم راغلي، خو تر پېړیو پېړیو د خلافت ټاکنې بېرته په هغه غوره تګلاره ونه ټاکل شوې کومې چې د راشدینو خلفاوو په وخت کې وې. پر دې موضوع باندې ما پخپل کتاب "معاویه رض او تاریخي حقائق" کې تفصیلي بحث کړی دی.

۳ دریم ټکی دا دی چې د ځای ناستي ټاکلو څه مقام دی؟ معنا دا چې دا کار پر وروسته راتلونکو خلکو هم لازم دی که څنګه؟ په دې مسئله کې د اسلامي سیاست علماوو اختلاف دی، ځیني علماء وایي چې کوم ربښتونی خلیفه خپل ځای ناستی وټاکي؛ نو پر راتلونکو خلکو هم لازم دي چې داسې وکړي، ځکه چې کله د هغه احکام پخپل ژوند کې نافذ او واجب الاطاعت دي؛ نو د هغه له حکمونو یو هم ځای ناستی ټاکل دي؛ نو دا حکم هم واجب الاطاعت دی.

او ځیني نور عالمان بیا دا نه مني، هغوی وایي چې د ځای ناستي ټاکل یوازې د خلیفه یو وړاندیز دی. مطلب یې دا دی چې زه تاسو ته مشوره درکوم چې زما نه وروسته پلانی ځای ناستی وټاکئ. خو دا وړاندیز منل او یا ردول د امت د اهل حل او عقد کار دی، که دوی غواړي د ده له مړینې وروسته دا



وړاندیز پر خپل حال ساتي او که عمل پرې نه کوي. قاضي ابو یعلی پخپل کتاب "الاحکام السلطانیه" کې دویمه رایه غوره کړې ده. نوموړی وایي: "إن إمامة المعهود إليه تنعقد بعد موته باختيار أهل الوقت." (۱)

د ځای ناستي خلافت د هغه شخص (خلیفه) له مړینې وروسته د اهل حل او عقد له خوا غوره کېږي.

علامه ابن تیمیه رحمه الله هم دا دریځ له نور زیات وضاحت سره بیان کړی دی، نوموړی وایي: "وكذلك عمر لما عهد إليه أبوبكر إنّما صار إماما لما بايعوه وأطاعوه' ولو قدّر أنهم لم ينفذوا عهد أبي بكر ولم يبايعوه لم يصر إماما." (۲)

دغه راز کله چې ابوبکر عمر خپل ځای ناستی وټاکه؛ نو دی هغه مهال خلیفه شو چې کله ورسره بیعت وشو، او که فرض که خلکو د ابوبکر وصیت نه وای نافذ کړی او له عمر سره یې بیعت نه وای کړی؛ نو دی نه شو خلیفه کېدلی.

او د دې دریځ تائید په دې هم کېدلی شي چې کله ابوبکر صدیق عمر فاروق خپل ځای ناستي وټاکی؛ نو داسې نه و چې یوازې پخپله رایه یې ونوماوه او دی ومړ، بلکې تاریخ طبري لیکي چې نوموړي له وړاندې نه له عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه او بیا عثمان بن عفان رضی الله عنه سره مشورې کړې وې، بیا چې کله دوی دواړو د حضرت عمر په اړه رایې ورکړې؛ نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه ټول اهل حل او عقد راټول کړل او د هغوی تر مخ یې دا خبره وکړه چې زه له ځان وروسته عمر خپل ځای ناستی ټاکم. په دې سره ټولو خلکو په یوه غږ وویل: "سمعنا و أطعنا" موږ واورېدله او ومو منله(۳)

---

۱) الاحکام السلطانیه لابي یعلي ص۲۲

۲) منهاج السنة لابن تیمیه، ج۱ص۵۳۰.

۳) تاریخ طبري: ج۲ص۳۵۳۳۵۲.

په همدې توګه ابوبکرصدیق رضي الله عنه یوازې پخپله رایه اعتماد ونه کړ، بلکې ټول اهل حل او عقد یې را وغوښتل او خپله رایه یې ورته وړاندې کړه او بیا یې هغه نافذه کړه، او که داسې وګڼو چې د ابوبکر او عمر پرېکړه لازم وه؛ نو نن داسې څوک نشته چې د ابوبکر او عمر سره برابر شي او نه هم د دې تصور کېدلی شي. نو اوس سهي رایه داده چې د ځای ناستي ټاکنه د یو وړاندیز مقام لري، او اهل حل او عقد کولی شي عمل پرې وکړي او کولی شي رد یې کړي. پاتې شوه دا خبره چې د ځای ناستي ټاکونکی که رښتونی خلیفه وي؛ نو د هغه دا کار د هغه د نورو حکمونو په څېر یو حکم دی باید ومنل شي؛ نو د دې په اړه سهي خبره داده چې د هغه تر مړینې وروسته یې خلافت ختمیږي او د هغه حکمونه واجب الاطاعت نه پاتې کیږي، په دې اړه علامه ابن عابدین رحمه الله په خپل کتاب "ردالمحتار" کې یو مستقل عنوان ذکر کړی دي، نوموړی وایي: "یؤخذ من قول شرح المنیة . . . أن أمر الخلیفة لایبقی بعدموته أو عزله کما صرح به في الفتاوی الخیریة و بني علیه أنه لو نهي عن سماع الدعوی بعد خمس عشرة سنة لایبقی نهیه بعد موته".(۱)

د شرح منیه له قوله معلومیږي چې د خلیفه حکم د نوموړي له مړینې یا ګوښه کولو وروسته پر خپل حال نه پاتې کیږي، لکه په فتاوای خیریه کې چې د دې پوره وضاحت شوی دی، پر همدې بنسټ ویل کیږي که خلیفه د پنځلس کلونو وروسته دګواهي اورېدل منع کړي وي؛ نو د ده له مړینې وروسته دا بندیز نه سهي کیږي.

۱) ردالمحتار، باب العیدین، مطلب امر الخلیفة لایبقی بعد موته ج۲ص۷۲ طبع دارالفکر بیروت.



## ۵. په زوره واک ترلاسه کول

درېمه تګلاره داده چې څوک د "استیلاء" (دزور په مټ واک ترلاسه کړي) معنا دا چې یوازې د زور له لارې څوک ځان واک ته ورسوي. د داسې شخص په اړه حکم دادی که دی د کوم رښتوني او په حقه مشر څخه سرغړونه وکړي او امیر شي؛ نو ګنهګار شو، او ترڅو چې یې پوره ولکه نه وي ټینګه شوې تر هغو باغي بلل کیږي، او د ده مخنیوی تر خپلې وسې واجب دی، ځکه چې د قرآن کریم څرګند حکم دی، چې: فَإِنْ بَغَتْ إِحْدٰهُمَا عَلَى الْأُخْرٰى فَقَاتِلُوا الَّتِيْ تَبْغِيْ حَتّٰى تَفِيْءَ إِلٰى أَمْرِ اللّٰهِ(۱)

ژباړه: بیا که یوې (ډلې) پر بلې تېری وکړ؛ نو تاسې له تیري کونکې ډلې سره تر هغو وجنګیږئ څو چې د الله حکم ته راوګرځي.

خو کله چې د داسې زور واک ولکه په بشپړه توګه ټینګه شي؛ نو دا شخص د لویې ګناه مرتکب دی، ځکه چې په قرآن او حدیث کې د باغي په اړه سختې جزاوې راغلي دي. رسول الله صلی الله علیه وسلم پر شپږ ډوله انسانانو باندې لعنت ویلی دی، چې له هغو نه یې د یوه شخص په اړه داسې ویلي دي: "المتسلط بالجبروت لیُعزّ بذلك من أذل الله ویُذلّ من أعزالله."(۲)

هغه شخص چې په زوره ځان مسلط کړي او په دې سره پتمن خلک چې الله عزت ورکړی وي، بې پته شي او بې پته پتمن شي.

فقهاوو لیکلي دي چې کله د داسې شخص واکمني په بشپړه توګه ټینګه شي؛ نو بیا د ده واکمني هم قائمه ګڼل کیږي. د دې معنا داده چې د نوموړي حکمونه به د هغه خلیفه په څېر وي چې په حقه خلیفه دی. نو له یوې خوا

۱) سورة الحجرات:۹
۲) جامع الترمذي، کتاب القدر باب۱۷، حدیث:۲۱۵۴.

جمهور عالمان وايي که په سوله ييزه توګه د ده ګوښه کېدل شوني وي؛ نو د ده د ګوښه کولو هڅې دې وشي چې د دې مسئلې پوره تفصيل به ان شاء الله پخپل ځای کې درته وړاندې شي؛ خو له بلې خوا د ده هغه حکمونه چې د شريعت سر ټکر ونه لري نافذالعمل دي، د دې دليل هغه حديث دی چې مخکې تير شوی، په هغه کې رسول الله صلی الله عليه وسلم ويلي: "اسمعوا و اطيعوا ولو أُ ستعمل عليكم عبد حبشي كأنه رأسه زبيبة." (۱)

د امير خبره واورئ او ويې منئ که څه هم داسې حبشي غلام دربانديې مقرر کړل شي چې سر يې د مميز په څېر وړوکی وي.

او په دې حکم کې ډېر لوی حکمت دی، ځکه چې د ده هغه احکام چې د شريعت خلاف نه وي، که هغه ونه منل شي؛ نو يوه ستره بې قانوني به رامنځ ته شي. په نننۍ نړۍ کې هم دا خبره منل شوې ده چې واکمنان دوه ډوله دي: يو قانوني واکمن (**De Jure**) چې په قانوني توګه واک ته ورسيږي، او دويم بالفعل واکمن (**De Facto**) چې په عملي توګه واک ته ورسيږي. د دې مطلب دادی چې که څه هم يو شخص د حکومت غاصب يا غيري قانوني واکمن وګرځول شي، خو دده په واکمنۍ کې چې کوم حکمونه صادريږي هغه به منل کيږي ، که داسې ونه شي؛ نو ټول نظام به ګډوډ شي. که د داسې واکمن حکمونه ونه منل شي؛ نو بيا چې څه غواړي هغه به کوي چې هرڅوک قاضي کوي د هغه قضا به هم سهي وي او که قاضي ټاکل يې سهي نه وي نو بيا هغه قاضي په حقه نه دی او چې کله په حقه نه شو ؛ نو پرېکړې يې هم نافذي نه دي، او په دې وخت کې چې دی کومې پرېکړې وکړې هغه به د منلو وړ نه وي؛ نو له دې نه به يو ډول ګډودي رامنځ ته شي، له همدې امله عالمان وايي چې د زور

(۱) صحيح البخاري، كتاب الصلاة، باب إمامة العبد. حديث:۲۹۳ و ايضا باب السمع والطاعة، حديث۷۱۴۲.



له لارې کومه واکمني رامنځ ته شي هغه منعقده شمېرل کيږي. که څه هم له دې لارې واک ته رسېدونکی ګنهګار هم دی او بايد د ګوښه کولو هڅې يې هم وشي؛ خو تر څو چې يې د واک پر ګدۍ خېټه اچولې وي تر هغو د ده هغه حکمونه چې له شريعت سره ټکر ونه لري نافذ دي.

## ۶. ايا تر يوه زيات اميران کېدلی شي؟

جمهور علماء په دې اند دي چې په نړۍ کې بايد يو خليفه وي، او په مختلفو هيوادونو کې بېلابېل خليفه ګان نشي راتلی. علامه ماوردي رحمه الله په دې اړه داسې وايي: "إذا عقدت الإمامة لإمامين في بلدين لم تنعقد إمامتهما، لأنه لا يجوز أن يكون للأمة إمامان في وقت واحد، وإن شذّ قوم فجوّزوه."(۱)

که په دوو بېلابېلو ښارونو کې دوه مختلف اميران وټاکل شي؛ نو د دوی امارت سهي نه دی، ځکه چې دا خبره سهي نه ده چې په اسلامي امت کې په يو وخت دوه مشران وي، که څه هم ځينو خلکو په دې اړه له افراطه کار اخېستی او دا کار يې سهي ګرځولی دی.

له نورو دلائلو پرته د دې علماوو استدلال له دې حديث نه هم کيږي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ويلي دي: "سيكون خلفاء فيكثرون." قالوا: فماتأمرنا يارسول الله! قال: فوا ببيعة الأول فالأول.(۲)

(۱) الأحكام السلطانية للماوردي، الباب الأول ص۹.
(۲) صحيح البخاري، كتاب الأنبياء، باب ماذكر عن بني اسرائيل حديث:۳۴۵۵.

یو وخت به خلفاء ډېر شي، صحابه وو وپوښتل: یارسول الله! نو په داسې وخت کې ته موږ ته څه لارښونې کوې؟ هغه وفرمایل: له چا سره چې لومړی بیعت شوی و له هغه سره وفا کوئ، بیا چې له هغه وروسته له چا سره بیعت شوی له هغه سره.

په دې حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو وخت د یوه خلیفه بیعت لازمي وګرځاوه، له همدې امله په یو وخت کې دوه خلفاء نشي کېدلی.

هو! لکه علامه ماوردي رحمه الله چې وویل، د ځینو عالمانو په اند که د اسلامي حکومت واکمني تر دومره ځایه و غځېږي چې یو امیر نشي کولی په یو وخت د ټولو اړتیاوې پوره کړي او دا کار ښېخي ناشونی وي؛ نو په داسې وخت کې دې بیا اسلامي نړۍ پر بېلا بېلو هېوادونو ووېشل شي او هر هېواد ته دې جلا خلیفه وټاکل شي. علامه عبد القادر بغدادي رحمه الله وایي: "لا يجوز أن يكون في الوقت الواحد إمامان، واجبا الطاعة ..... إلاّ أن يكون بين البلدين بحر مانع من وصول نصرة أهل كلّ واحد منهما إلى الآخر، فيجوز حينئذ لأهل كلّ واحد منهما عقدة الإمامة لواحد من أهل ناحيته."(۱)

دا روا نه ده چې په یو وخت کې دې دوه واجب الاطاعت امامان وي، خو که د دوو ښارونو ترمنځ داسې سمندر حائل وي چې د یوه مرسته بل ته نشي رسېدلی؛ نو په داسې وخت کې بیا روا ده چې د هرې سیمې د پاره خپل خپل مشر وټاکل شي.

او علامه ماوردي رحمه الله وایي: "فأماّ في بلدان شتّي وأمصار متباعدة، فقد ذهبت طائفة شاذّة إلي جواز ذلك، لأنّ الإمام مندوب للمصالح، وإذا كانا

(۱) اصول الدین: ص۲۷۴.



اثنين في بلدين أو ناحيتين، كان كلّ واحد منهما أقوم بما في يديه، وأضبط لما يليه، ولأنّه لما جاز بعثة نبيّين في عصر واحد، ولم يؤدّ ذلك إلي إبطال النبوّة، كانت الإمامة أولى، ولا يؤدّى ذلك إلى ابطال الإمامة." (۱)

ترکومه چې په دوو هېوادونو او دوو ښارونو پورې تړاو لري، په دې اړه د یوې ورې ډلې رایه داده چې له یوه نه زیات امیران ټاکل روا دي، ځکه چې د امیر ټاکل د مصلحتونو د پاره وي، او که په دوو مختلفو سیمو کې دوه بېلا بېل خلفاء وټاکل شي؛ نو په دوی کې هر یو خپل چاپېریال په ښه توګه پاک ساتلی شي، او کومې سیمې چې ده ته نږدې وي هغه ته بشپړه پاملرنه کولی شي. دغه راز چې په یو وخت کې د دوو پیغمبرانو بعثت کېدلی شي، او په دې سره نبوت نه باطلېږي؛ نو په امامت کې خو په اولی توګه کېدلی شي او په دې سره امارت نه باطلېږي.

او امام الحرمین علامه جویني رحمه الله په دې اړه خپله رایه داسې څرګندوي: "والذي عندي فيه إن عقد الإمامة لشخصين في صقع واحد متضايق الخطط والمخالف غير جائز، وقد حصل الإجماع عليه. وأما إذا بعد المدى، و تخلّل بين الإمامين شسوع النوى، فللاحتمال في ذلك مجال، وهو خارج عن القواطع."(۲)

زما په اند په یوه کوچني هېواد کې دوه امیران ټاکل روا نه دي، او پر همدې خبره د ټول امت اجماع ده. خو که د دوو امیرانو ترمنځ ډېر اوږد واټن وي، په داسې ځای کې د دوو خلفاوو شونتیا شته خو دا مسئله په قطعیاتو کې نه ده شامله.

(۱) ادب الدنیا والدین ص۲۲۰، ۲۲۱، ما تصلح به حال الدنیا.
(۲) الإرشاد إلي قواعد الأدلة، آخری باب ص۳۵۸.

دغه راز علامه قرطبي رحمه الله هم پخپل تفسیر کې د دې دریځ تائید کړی دی، او د امام جویني رحمه الله الفاظ یې کټ مټ را اخیستي دي.(۱) او علامه عبدالعزیز فرهاري رحمه الله هم دا دریځ تائید کړی دی.(۲)

د دې ټولو اقوالو سره سره د جمهورو علماوو له نظره په یو وخت کې ګڼ امامان نشي سهي کېدلی. خو له دقیق فکر او سوچ وروسته چې کومه خبره ذهن ته راځي هغه داده چې اسلام د یوې نړیوالې بلنې غوښتنه کوي، او په اسلام کې د ټول اسلامي امت ګډه غوښتنه همدا ده چې جمهور علماء یې وايي، معنا دا چې په ټوله نړۍ کې باید د مسلمانانو یو مشر یا خلیفه وي، او تر کومه چې د هیوادونو ترمنځ د واټن خبره ده د راشدینو خلفاوو په وخت کې اسلام لږترلږه څلورمه برخه نړۍ ته رسېدلی و او بیا نیمه نړۍ د دې تر اغیز لاندې راغله؛ خو بیا هم ټولې چارې د یوه امام تر سیورې لاندې پرمخ بېول کېدلې او زموږ په زمانه کې د ترون وسائلو دا خبره ډېره اسانه کړې ده. له همدې امله د یو مثالي اسلامي ریاست اصلي کوښښ باید دا وي چې په ټوله نړۍ کې یو مشر وي.

خو په ننني نړۍ کې چې ټول اسلامي امت تر پنځوسو زیاتو هیوادونو باندې وېشل شوی، د دې په پاره په عملي توګه ضروري ده چې د دې هېوادونو مشران باید متفق وي، کنه نو د مسلمانو هیوادونو ترمنځ له جګړې پرته دا مقصد لاس ته نشي راتلی چې بې شکه ډېره بده ده. نو ځکه د ناچارۍ له امله د دې هیوادونو له منلو پرته بله لار نشته، کنه نو ډېره ګډوډي به رامنځ ته شي. په تېر وخت کې هم داسې حکومتونه شوي او د اسلامي امت عالمانو د هغوی حکمونه نافذالعمل بللي دي. نو په داسې ځای کې دا رایه غوره کول یوه مجبوري ده. والله سبحانه اعلم

(۱) تفسیر القرطبيَ سورة البقرة:۳۰ آیتَ ج:۱ص ۲۷۳.
(۲) النبراس علی شرح العقاید ص:۵۱۳.



# څلورم څپرکی

## د حکومت چلولو اړونه

په تېرو څپرکو کې د بیان شویو اصولو سره سم چې حکومت جوړ کړل شي؛ نو هغه به هم داسې نه وي چې څه ډول خلک غواړي هماغسې به د چارو واګې پرمخ بیايي، بلکې دا ډول حکومت به هم د ځینو ځانګړو اصولو سره سم پرمخ بېول کیږي، په دې څپرکي کې همدې اصولو ته کتنه کوو:

### ۱. دقران او سنت تابع کېدل

تر ټولو لومړنی اصول دادی چې واکمن به په خپلو ټولو حکمونو او چارو کې د قرآن، سنت او د امت د اجماع تابع وي او دی نشي کولای داسې قانون جوړ کړي چې د قرآن او سنت له څرګندو حکمونو سره ټکر ولري او دا خبره د هغه بنسټیز تصور پایله ده چې ستر واکمن الله تعالی دی او د دنیا واکمن د هغه خلیفه دی، له همدې امله دی په طبعي توګه اجازه نه لري داسې کار وکړي چې د ستر واکمن یعنې الله تعالی له حکمونو سره ټکر ولري چې هغه په قرآن کې بیان کړي دي او یا یې د وحي له لارې خپل وروستي پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم ته رالیږلي دي او که کوم واکمن د قرآن او سنت پرضد پرېکړه یا اقدام کوي؛ نو باید دقضا له خوا وګواښل شي.

### ۲. له شورا مشوره اخیستل

له شورا دمشورې اخیستلو اړتیا یوازې د خلیفه ټاکلو لپاره نه وي ،بلکې د خلیفه ټاکل کېدو وروسته هم پر نوموړي فرض دي چې په ټولو چارو کې د شورا پرېکړې ومني او حکومتي چارې د مشورې سره سم پرمخ بوزي او د دې خبرې منل پر واکمن واجب دي، تر دې چې فقهاوو رحمهم الله ویلي چې

کوم پاچا په حکومتي چارو کې مشوره نه کوي، نو ددې ور دي چې له واکه گوښه کړل شي او دا خبره قرآن کریم په ډاگه کړې ده، الله تعالی فرمايي: وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ۖ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ . آل عمران : ۵۹

ژباړه: او له دوی (مسلمانانو) سره په کارونو کې مشوره کوه بیا چې په څه دې اراده ټینگه شوه؛ نو په الله توکل کوه.

یوه خبره چې دلته یې یادونه اړینه ده دا چې دلته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته حکم شوی چې له نورو مسلمانانو سره دې مشوره کوي سره له دې چې هغه له هر ډول گناهونو پاک و او د وحې له لارې به ورته لارښوونې کېدلې؛ خو له دې سره سره بیا هم هغه ته د مشورې امر کول موخه دا وه چې له ده څخه وروسته راتلونکو واکمنو له پاره دا حکم منل تر دې زیات مهم دی. د رسول الله صلی الله علیه وسلم عام عادت به دا و چې په مهمو چارو او پېښو کې به یې له صحابه وو سره مشورې کولې، ابو هریره رضي الله عنه وايي: مارأیت احداقط أکثرمشورة لأصحابه من رسول الله صلی الله علیه وسلم.(۱)

ژباړه: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په څېر له خپلو ملگرو سره ډېر مشوره کونکی بل هیڅوک نه دی لیدلی.

حافظ ابن کثیر رحمه الله د پورتني ایت په تفسیر کې ډېري داسي پیښې ذکر کړي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پکې له صحابه وو سره مشورې کړي دي چې په هغو کې د بدر غزا پرمهال د ابوجهل د لښکر سره جگړه کول، د جگړې بندیان د فدیې په بدل کې پرېښودل، د احد غزا پرمهال له ښاره بهر د کافرانو مقابله کول، د خندق په غزا کې خندق کنستل

۱) مسند احمد ،مسند الکوفیین حدیث مسور ابن مخرمة و مروان ابن الحکم ، حدیث:۱۸۹۲۸



او پر حضرت عائشې رضی الله عنها باندې د منافقینو له خوا تور لگیدلو پر مهال له صحابه وو رضی الله عنهم سره مشورې کول او داسې نور. دا ټولې یې ښکاره بېلگې دي او ابن کثیر رحمه الله په دې ځای کې د مسند احمد په حواله د عبد الرحمن ابن غنم روایت را نقل کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوبکر او عمر ته وویل: لواجتمعتما فی مشورة ما خالفتکما . (۱)

ژباړه: که تاسو دواړه پر یوه مشوره متفق شئ؛ نو زه به مو مخالفت ونکړم.

علامه هیثمي رحمه الله ددې حدیث د سند په اړه داسې وايي: رواه احمد ورجاله ثقات ،إلا أن ابن غنم لم یسمع من النبی صلی الله علیه وسلم (۲)

ژباړه: ددې حدیث ټول راویان باوري دي؛ خو عبد الرحمن ابن غنم رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا حدیث نه دی اورېدلی، ددې معنی داده چې دا حدیث مرسل دی؛ خو له دې امله چې عبد الرحمن ابن غنم صحابي دی؛ نو په دې حدیث کې مرسل صحابي راغی چې دا په اتفاق سره شرعي حجت گرځېدلی شي.

خو شریعت د شورا په اړه داسې کومه ځانگړې کړنلاره نه ده ټاکلې چې تر پایه به همدا پلې کیږي، معنا دا چې شریعت دا نه دې ټاکلي چې د شورا جوړول به څه ډول وي، څه ډول خلک به په مشوره کې گډون کوي، او د شورا ترکیبي هیئت به څه ډول وي، دا تفصیلات یې د هر دور علماوو او پوهانو ته پرېښي دي چې هغوی د خپلې زمانې له حالاتو سره سم ددې خبرو په اړه پرېکړې وکړي.

۱ )تفسیر ابن کثیر۲ج۵۰ص

۲ ) مجمع الزوائد ج۹ ص:۴۰ حدیث ۱۴۳۵۵.

نو په شرعي توګه د شورا کوم ځانګړی چوکاټ اړین نه دی چې د دې لپاره دې ځانګړی کمېسون وجود ولري چې د شورا غړي وټاکي او په هره معامله کې له هغوی سره مشوره وشي، کېدای شي په یو وخت کې د شورا مستقل کمیسون جوړ کړل شي او د اهم شونې ده چې د شورا مجلس ونه ټاکل شي او پاچا د خپل وخت اهل رایه خلک غوره کړي او له هغوی سره مشوره وکړي او کله خو دا هم شونې ده چې یو وخت له ځینو خلکو سره مشوره وشي او بل وخت بیا له نورو سره مشوره وشي او دا هم شوني ده چې له یوې ډلې خلکو سره د دوی د وړتیا پر بنسټ په یوه معامله کې مشوره وشي او له بلې ډلې سره بیا په بله معامله کې مشوره وشي. د رسول الله صلی الله علیه وسلم او راشدینو خلفاوو تر وخته داسې کوم ځانګړی مجلس نه و چې د شورا غړي وټاکي لکه نن چې د ولسي جرګې یا اسمبلۍ غړي ټاکل کیږي ،دوی به په ډېره ساده توګه د شورا په اصولو عمل کاوه او خلیفه به له ځینو مهمو شخصیتونو سره مشوره کوله او د دې خبرې ډاډ به یې تر لاسه کاوه چې کومه خبره د مشورې له لارې تر سره کیږي هغه د ټول امت د ټولنیزې رایې نمایندګي کوي؛ خو که د حالاتو په بدلېدو سره د شورا له پاره کومه ځانګړې لائحه جوړول مناسب وي، نو دا هم د شورا په پراخه مفهوم کې ځای لري.

دا په حقیقت کې د اسلام د سیاسي احکامو غوراوی دی چې ځیني بنسټیز اصول یې ټاکلي او نور تفصیلات یې د هر وخت اهل بصیرت خلکو ته پرېښي دي، د دې لوی لامل دادی چې د اسلام حکمونه، نه په کومه ځانګړې سیمه پورې تړلي دي او نه هم په کومې ځانګړې زمانې پورې، د اسلام حکمونه د قیامت تر ورځې د ټولو حالاتو او ټولو سیمو د پاره واجب العمل دي. له بلې خوا دا یو ښکاره حقیقت دی چې د مصلحت غوښتنې د سیمو او قومونو مزاج او د زمانې له بدلون سره هم بدلیږي. شونې ده داسې ټولنه هم وي چې هلته د ځانګړې شورا چوکاټ جوړول نا شونی کار وي ، یا د مصلحت غوښتنه



داسې نه وي او له بلې خوا دا هم شونې ده چې په یوه ټولنه کې د شورا تصور ته پاملرنه د ځینو زیانونو اند ېښنې را منځته نه کړي له همدې امله اسلامي شریعت دا دروازې خلاصي پرېښي دي چې په هر پېر او هره سیمه کې د هغه ځای له اړتیاوو او مصلحتونو سره سم د شورا جوړولو تګلاره وټاکل شي. په نننۍ نړۍ کې که د شورا بنسټونو ته پاملرنه و نه شي او هرڅه د امیر خوښې ته پرېښودل شي چې هغه له هرچا سره او تر کومه حده غواړي مشوره وکړي ، نو ډېرې نېمګړتیا وې او فساد به رامنځ ته شي له همدې امله په نن وخت کې د شورا له پاره د یوه ځانګړي مجلس ټاکل په ښکاره ډېر اړین ښکاري چې د دې تفصیل به ان شاء الله لږ وروسته راشي.

## ۳. د شورا اختیارات

په دې لړ کې دویمه مهمه مسئله دا ده چې په حکومتي چارو کې شورا څومره ځای او څومره اختیارات لري؟ او د شورا خبره منل پر پاچا لازم دي او که یه؟ که داسې وشي چې په کومه پېښه کې د شورا پر یوه خبره اتفاق راشي او د امیر رایه د هغې د پرېکړې سره ټکر ولري؛ نو په داسې وخت کې به د شورا فیصله منل کیږي او که به امیر د خپلې پرېکړې پلې کولو اجازه لري، دا وروستۍ مسئله تر نورو هغو هم مهمه ده.

په عامه توګه فقهاوو او هغو عالمانو چې پر اسلامي سیاست یې کتابونه لیکلي دا رایه غوره بللې چې د شورا موخه دا نه ده چې فیصله به یې د امیر له پاره واجب الاطاعت وي ، بلکې د شورا اصلي موخه دا ده چې له اهل رایه خلکو سره د مشورې په پایله کې امیر یا پاچا ته د موضوع ټول اړخونه معلوم شي او چېرې په یوه زاویه کې یوازې پاتي نه شي، که نوموړی له چا سره مشوره ونه کړي، شونې ده د موضوع کوم لوری دده په ذهن کې رانشي؛ خو په مشورې کولو سره د پېښې ټول اړخونه څېړل کیږي او څرګندیږي او که یوه

موضوع بیلا بیل اړخونه او احتمالات ولري په شورا کې هغه موضوع له خپلو دلائلو سره تر بحث لاندې نېول کیږي او په اړه یې په اسانه توګه پرېکړې کولو ته لار هواریږي.

خود موضوع ټولو اړخونو ترڅېړلو وروسته به وروستی پرېکړه پخپله پاچا کوي، له همدې امله زیاتره فقهاوو دا ښه ګڼلې ده چې پر امیر د شورا خبره منل لازم نه دي د ټولو رایو او وړاندیزونو تر وړاندې کیدو وروسته چې دی کوم دریځ غوره کولای یې شي، که هغه د شورا د یو څوغړو رایه وي او یا په شورا کې د یوه تن هم نه وي؛ خو د باوري او سهي دلیل له مخې یې پاچا غوره وګڼي. په دې اړه علماء د قرآن کریم له دې ایت څخه استدلال کوي، چې: وَ شَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ۚ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ (۱)

ژباړه: او ته له دوی (مسلمانانو) سره مشوره کوه او بیا چې دې په څه اراده ټینګه شوه نو پر الله توکل کوه.

دوی وایي الله تعالی په دې عزم کې دا قید نه دی لګولی چې له مشورې سره سم عزم وکړه بلکې له دې دا څرګندیږي چې کوم لار دې خپله کړه؛ نو بیا پر الله تعالی بروسه کوه او د خپل عزم سره سم عمل کوه ان شاءالله چې الله تعالی به دا فیصله په خیر تمامه کړي.

دغه راز فقهاء د رسول الله صلی الله علیه وسلم او راشدینو خلفاوو پر عمل هم استدلال کوي، ډېرځله داسې شوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او یا کوم راشد خلیفه په خپل وخت کې د اکثریت رایې خلاف پرېکړې کړي دي. د بېلګې په ډول کله چې د بدر په جګړه کې بندیان ونېول شول؛ نو د زیاتره صحابه وو مشوره دا وه چې دوی دې ووژل شي، د ځینو روایتونو له مخې د عمر رضی الله عنه او عبدالله ابن رواحه رضی الله عنه رایه دا وه چې دوی دې

۱) آل عمران ۱۵۹



ووژل شي او عبدالله ابن رواحه خو لا دا وړاندیز هم وکړ چې دوی دې وسوځول شي؛ خو ابوبکر رضی الله عنه د بندیانو څخه د فدیې اخیستلو او پرېښودلو رایه وړاندې کړه او نورو صحابه وو ځینو د حضرت عمر رضی الله عنه د رایې تائید وکړ او ځینو بیا د عبدالله ابن رواحه او ځینو نورو بیا د ابوبکر صدیق رضی الله عنه رایه تائید کړه. (۱)

دلته داسې څرګندېدله چې دوه ثلثه صحابه له بندیانو د فدیې اخستلو ملاتړ نه کوي؛ خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغو نورو کمو صحابه وو رایه غوره کړه او د هغوی له رایې سره سم یې پرېکړه وکړه. که څه هم وروسته په قرآن کریم کې د دې پرېکړې په باب خبر داری ورکړل شو؛ خو هغه د دې پربنا نه وو چې د اکثریت رایه ولې نه منې بلکې په دې اساس و چې خپله الله تعالی ته دا خوښه نه وه چې بندیان دې پرېښودل شي.

دغه راز ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې کله د اسامه بن زید رضی الله عنه د لښکر په اړه پرېکړه کوله په ښکاره د اکثریت صحابه وو له رایې سره موافقه نه وه. پېښه داسې وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د روم تر ولکې لاندې ځینو قبائلو د ځپلو لپاره یو لښکر تیار کړ او د لښکر مشر یې اسامه ابن زید وټاکه چې هغه مهال نوموړی ډېر کم عمره او تنکی ځوان و او په دې لښکر کې د عمر رضی الله عنه په ګډون ګڼ مشران صحابه هم وو، لښکر لا د مدینې څېرمه سېمو کې و چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له نړۍ څخه سترګې پټې کړې، له دې وروسته چې کله ابوبکر صدیق رضی الله عنه د مسلمانانو خلیفه شو؛ نو اسامه رضی الله عنه فکر وکړ چې دا ډېر نازک حالت دی د اسلام دښمنان غواړي له موکې څخه په ګټه پر مسلمانانو بریدونه وکړي، نو په داسې وخت کې له مدینې د مشرانو صحابه وو وتل به ښه نه وي، ځکه که

۱) الدرالمنثور: ۴ج ۸۸مخ د مسند احمد په حواله

دښمن مدینه له مشرانو صحابه وو خالي ووینې؛ نو دا موکه به د ځان له پاره غنیمت وګڼي ، په لښکر کې چې کوم انصار صحابه وو د هغوی هم دا رایه وه ،نو عمر رضی الله عنه یې ابوبکر رضی الله عنه ته ددې خبرې د منلو له پاره ور واستاوه چې دلښکر بېرته راګرځېدو اجازه وکړي او انصارو صحابه وو دا هم وویل که ابوبکر صدیق رضی الله عنه ددې خبرې منلو ته تیار نه وي؛ نو بیا دې د اسامه پر ځای بل کوم مشراو تجربه کار صحابي وټاکي. خو کله چې عمر رضی الله عنه دا خبره ابوبکر رضی الله عنه ته وکړه؛ نو هغه ډېر خواشینی شو او ویې ویل: "لوخطفتني الکلاب والذئاب لم اردَّ قضاء قضی به رسول الله صلی الله علیه وسلم"

ژباړه: که ما سپي او لیوان هم وخوري، زه به هغه فیصله رد نه کړم چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کړې وه. حضرت عمر رضی الله عنه دو همه خبره ورته وړاندې کړه چې دې خلکو تاته دا پیغام هم را لېږلی چې یو مشر تن دلښکر مشر وټاکه، په دې سره ابوبکر رضی الله عنه نور هم خواشینی شو او په یو روایت کې دي چې حضرت عمر رضی الله عنه یې له ږیرې ونیو او ورته یې وویل: استعمله رسول الله صلی الله علیه وسلم وتأمرني أن أنزعه. (۱)

هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم امیر ټاکلی دی او ته ماته وایې چې ګوښه یې کړه !؟

نو د زیاتره صحابه وو د رایې بر عکس لښکر د اسامه بن زید رضی الله عنه په مشرۍ د رومیانو په لور روان شو ، ابوبکر صدیق رضی الله عنه پخپله د اسامه رضی الله عنه د مخه ښې د پاره ورسره را ووت او د هغه د آس واګې یې ونیولې او په همدې وخت کې یې اسامه رضی الله عنه ته وویل: که ته عمر ته

۱ ) تاریخ طبری:ج۲مخ ۲۴۲



د پاتې کېدو اجازه ورکوې؛ نو دی به زما سره پاتې شي، اسامه رضی الله عنه همداسې وکړل. پایله دا شوه چې مسلمانان له روم نه فاتح راستانه شول او په داسې نازکو حالاتو کې د لښکر لېږدولو د خلکو په زړونو کې رعب او ډار واچو. تاریخونو لیکلي چې د روم پاچا هرقل ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مړینې او د روم پر یوه برخه د مسلمانانو د برېد خبر دواړه په یوه وخت ور ورسېدل؛ نو ویې ویل: مابال هؤلاءالقوم یموت صاحبها ثم أغاروا علی أرضنا (۱)

دا څنګه خلک دي چې مشر یې مړ او دوی بیا هم زمونږ پر خاوره برېدونه کوي.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته ځینو خلکو له زکات ورکولو انکار وکړ؛ نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه له هغوی سره د جهاد اعلان وکړ، پر دې کار زیاتره صحابه ناخوښه وو آن حضرت عمر رضی الله عنه هم د دې رایې ملاتړ نه کاوه، نو موړي ویل چې په داسې حالاتو کې د دې خلکو پر ضد لښکر لېږدول د وخت غوښتنه نه ده؛ خو ابوبکر رضی الله عنه دې کار ته کلکه ملا وتړله او ویې ویل چې زه به هرومرو دا کار کوم او خپله پرېکړه یې نافذه کړه. هغه مهال ابوبکر رضی الله عنه عمر رضی الله عنه ته ویلي و چې: "جبار في الجاهلیة خوار في الاسلام "

ته خو په جاهلیت کې ډېر سخت وې چې مسلمان شوې نو بې زړه شوې !؟.

او حضرت عمر به د ابوبکر صدیق رضی الله عنه دا جمله د هغه د غوره والي د پاره رانقل کوله او ویل به یې: د ابوبکر د ژوند یوه شپه او یوه ورځ د عمر تر ټول ژوند غوره ده ، یوه د هجرت شپه او بله هغه ورځ چې ما ته یې همدا خبره کړې وه.

۱) تاریخ الاسلامي للذهبي ۳ج:۲۰مخ

نو هغه عالمان چې خلیفه د شورا درایې پابند نه بولي وایي چې له دې ټولو پېښو دا څرګندیږي چې خلیفه د شورا درایې پابند نه دی، بلکې هغه د قوي دلیل پابند دی؛ له همدې امله د ټولو اړخونو تر څېړلو وروسته خلیفه کولی شي کوم ځانګړی موقف اختیار کړي.

خو ځینې نور عالمان بیا وایي چې د سورت ال عمران په تېر ایت کې چې خلیفه ته د مشورې کوم حکم شوی دی ددې ګټه داده چې که د شورا غړي پریوه موضوع متفق شي؛ نو خلیفه د هغوی مخالفت نشي کولای او ددې خبرې تائید هغه حدیث هم کوي چې د حضرت علي رضی الله عنه څخه را نقل شوی دی او امام ابن کثیر د همدې ایت په تفسیر کې د امام ابن مردویه په حواله په دې ټکو را نقل کړی دی: "سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن العزم .قال مشاورة أهل الرأی".(۱)

"له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د عزم په اړه وپوښتل شول ، هغه ورته وویل: د اهل رایه خلکو سره مشوره او بیا د هغې پیروي کول.

او دا د هغه ایت تفسیر دی چې مخکې تېر شو. اوس که دا روایت سهي وي؛ نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تفسیر سره سم په دې ایت کې د عزم معنا دا شوه چې له اهل رایه سره مشوره کول او بیا د هغوی مشوره منل. په دې سره دا هم څرګندیږي چې له مشورې وروسته د عزم امر یوازینی معنا دا نه ده چې له مشورې وروسته خلیفه د مشورې پرخلاف یوازې پرخپله رایه عمل وکړي بلکې له دې دا هم څرګندیږي چې له مشورې سره سم دې عمل وشي او که د حضرت علی رضی الله عنه روایت سند سهي ثابت شو؛ نو بیا یې یواځې د همدې معنا تعین کېدلای شي.

۱) تفسیر ابن کثیر ج۲مخ ۱۵۰



دغه راز په دې ځای کې ابن کثیر رحمه الله د مسند احمد په حواله د عبد الرحمن ابن غنم هغه روایت هم را نقل کړی چې مخکې تېر شو په هغه کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوبکر او عمر رضی الله عنهما ته ویلي و:

"لواجتمعتما في مشورة ما خالفتكما"

که تاسو دواړه پریوه مشوره متفق شئ ؛نو زه به مو مخالفت ونه کړم.

د دې ترڅنګ د همدې علماوو یو استدلال دا هم دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په ډېرو ځایونو کې د صحابه وو اکثریت رایې ته په کتنې سره له خپلې رایې تېر شوی دی او ددوی رایه یې ددې لپاره غوره کړې چې په دې سره امت ته تعلیم ورکړي چې باید د شورا درایې قدر وشي؛ نو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مشورې دومره قدر کوي نور خلک خو باید تر دې هم ډېر ارزښت او پام لرنه ورته وکړي. د احد غزا پر وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم نه خوښوله چې د جګړې لپاره له ښاره بهر ووځي، د هغه شخصي رایه دا وه چې په ښار کې دننه د دښمن مقابله وشي ، په دې اړه د ابن هشام په سیرت کې دا سې راغلي: "كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يكره الخروج" (۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم ښه نه ګڼله چې له ښاره بهر ووځي.

خو کومو صحابه وو چې د بدر په غزا کې ګډون نه و کړی هغوی د جهاد ډېر شوق درلود ، د زیاتره صحابه وو دا رایه وه چې له دښمن سره له ښاره بهر مقابله وشي ؛ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی په رایه عمل وکړ.

همدا رنګه دا علماء د میمون ابن مهران رحمه الله په روایت هم استدلال کوي، نوموړی په یو اوږد حدیث کې د ابوبکر صدیق رضی الله عنه کړنلاره بیانوي ، د روایت په پای کې وایي چې کله به داسې پېښه مخ ته راغله چې په

۱) سیرت ابن هشام ج۴ ص ۹.

اړه به يې په قرآن او حدیث کې څه نه وو راغلي ، نو ابوبکر به څه کول؟ په دې اړه دی وایي: "جمع رؤوس الناس وخيارهم ،فاستشارهم ، فإذا اجتمع رأيهم على أمر قضى به".(۱)

هغه (ابوبکر) به مخور او غوره خلک راټول کړل او مشوره به یې ورسره وکړه نو چې هغوی به پر کومه خبره سلا شول هغه به د ده وروستۍ پرېکړه وه.

له دې څرګندېږي چې ابوبکر صدیق رضی الله عنه به د شورا پرمتفقه رایه عمل کاوه، او تر کومه چې د اسامه رضی الله عنه د لښکر یا د زکات سرغړونکو پېښې دي ، هلته چې څه وشول هغه داسې نه و چې د شورا د فیصلې خلاف کار و ، په حقیقت کې دا هر څه د مشورې یوه برخه وه، معنا دا چې په شورا کې هرچا خپلې خپلې رایې وړاندې کړې او بیا ابوبکر رضی الله عنه خپله رایه بیان کړه او چې کله دی پر خپله خبره ټینګ شو چې دا رایه غوره ده ، نو له دې وروسته د نورو صحابه وو رایه هم بدله شوه، داسې نه و چې د نورو د نوموړي رایه ناسمه وګڼله، بلکې کله چې هغه خپله رایه په پوره ځواک سره وړاندې کړه؛ نو په دې سره د نورو صحابه وو رایې هم بدلې شوې. حضرت عمر رضی الله عنه د زکات نه ورکونکو سره د ابوبکر د جهاد اعلان په اړه وایي: "فوالله ماهو إلا أن قد شرح الله صدر أبي بكر فعرفت أنه الحق" .(۲)

په خدای قسم دا هغه څه و چې خدای پاک د ابوبکر په زړه کې ور اچولي و ؛ نو زه پوه شوم چې همدا رښتوني پرېکړه ده.

نو کومه فیصله چې شوې وه هغه د شورا د رایو پر خلاف نه وه. داسې نه و چې ابوبکر رضی الله عنه کومه فیصله وکړه شورا پر هغې ډاډه نه وه، د رایو

۱ ) سنن الدارمی ، مقدمة ، باب انقیاد وما فیها من الشدة حدیث ۱۲۳
۲ ) صحیح البخا ری کتاب الزکات حدیث ۱۴۰۰



اختلاف د شورا پر مهال و ، وروسته چې کله ابوبکر رضی الله عنه پر خپله خبره ټینګار وکړ؛ نو د نورو صحابه وو رایې هم بدلې شوې ، له همدې امله دا پېښه د دې خبرې په دلیل کې نشي وړاندې کېدلای چې امیر ته د شورا د متفقې پرېکړې پر خلاف د عمل کولو حق حاصل دی.

نو دا چې پر امیر د شورا پرېکړه منل لازم دي او که یه؟ په دې اړه دا دوه بېلا بېل دریځونه موجود دي او له دواړو سره دلیلونه شته ، خو زما په نظر سهي رایه د لومړنۍ ډلې علماوو ده ، مطلب دا چې امیر د شورا د پرېکړې پابند نه دی ، ځکه چې د (شورا) یا (مشوره) کلمو معنا په خپله پر دې دلالت کوي چې پر مشوره اخیستونکي د مشیر خبره منل لازم نه دي او مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله وايي: دا داسې خبره ده چې د بریرې رضی الله عنها په څېر مینځه هم پرې پوهېدله ، کله چې هغې ته د ازادۍ له امله دا اختیار حاصل شو چې له خپل خاوند سره نکاح پر خپل حال پرېږدي او که بېلتون غوره کوي؛ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې ته مشوره ورکړه چې نکاح دې پر خپل حال وساتي ، هغې وپوښتل: (أتأمرني؟) آیا ته ما ته امر کوې؟ د دې څخه د هغې موخه دا وه چې که امر راته کوې ، نو په دواړو سترګو یې منم او که مشوره وي؛ نو زه اختیارلرم ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: (إنما أنا شافع ) زه یواځې سپارښت کونکی کوم، بریرې رضی الله عنها وویل: (لا حاجة لي فیه ) زه هغه ته اړتیا نه لرم، معنا دا چې زه ستا مشوره یا سپارښت نه منم ، او د دې پر نه منلو رسول الله صلی الله علیه وسلم څه ونه ویل.(۱)

نو معلومه شوه د مشورې طبعي غوښتنه داده چې پر مشوره کونکي یې منل لازم نه دي او په قرآن کریم کې امیر ته د مشورې حکم شوی دی. نو اصل حکم باید داسې وي چې د شورا رایه دې د مشورې په درجه کې وساتل شي او

۱ ) صحیح البخاری کتاب الطلاق باب شفاعة النبی صلی الله علیه وسلم علی زوج بریرة حدیث شمیره ۵۲۸۳.

له دې وروسته دې امیر د دلائلو په رڼا کې پرېکړه وکړي. او څرګنده ده چې دا خبره د هغه ولسمشر په اړه نده چې د اهلیت صفتونو په پام کې نېولو پرته یوازې په انتخاباتو کې د زیاتو رایو ګټلو پر بنسټ واک ته رسېدلی وي، بلکې دا خبره د هغه چا په اړه کیږي چې په ټاکلو کې یې تر ټولو د مخه د اهلیت ټول صفتونه په پام کې ونیول شي ، ځکه چې موږ د لته د اسلامي خلیفه په اړه بحث کوو د کوم سیکولر جمهوري ولسمشر خبره نه کوو. د لته د رې ټکې په پام کې نېول ډېر اړین دي لومړی دا چې د واک هغه اختیار چې واکمن کولی شي د شورا د پرېکړې پر خلاف څه وکړي یوازې هغه واکمن ته حاصل دی چې تېر ټول صفتونه پکې وي او د ټول امت اهل حل او عقد یې وټاکي او دوی ومني چې نوموړی د داسې ډول پرېکړو صلاحیت لري.

دوهم دا چې خلیفه به د پاچا په څېر مطلق العنان واکمن نه وي چې یوازې د ده ژبه قانون وي بلکې نوموړی به د (إن الحکم إلا للّٰه) تر قانون لاندې حکومتي چارې پرمخ بیایي ،نو ځکه به لومړی د قرآن او سنت او اجماع پابند وي ، کومه پرېکړه چې کوي له مخکې نه به وریاندې دا بندیز پلي کیږي چې د قرآن او سنت خلاف کار به نه کوي او په دې کې دا خبره هم داخله ده چې بشپړ انصاف به کوي او که داسې ونه کړي ، نو لومړی خو د اللّٰه تعالی په معصیت کې د هغه امر د منلو وړ ندی چې له همدې امله قضا کولی شي دی ګوښه کړي او که بیا هم په سهې لاره نه درومي ؛نو د فسق د ارتکاب له امله هم د ګوښه کولو وړ ګرځي. نو د شورا د نه پابندي معنا به دا نه وي چې امیر د بې پولې اختیاراتو څښتن شو او مطلق العنان پاچا شو بلکې دی به بیا هم د قرآن او سنت د احکامو پابند وي او که له دې سر غړونه وکړي ، نو قضا کولی شي ګوابښنه ورته وکړي او یا یې له واکه وغورځوي.

اوس نو د شورا کار یوازې د مباح کارونو په دائره کې پاتې شو ، په دې دائره کې که امیر د شورا له ټولو غړو سره مشوره وکړي او د حالاتو په وړاندې



کوم ځانګړی دریځ غوره کړي؛ نو ده ته هغه مطلق العنان واکمن نه ویل کیږي چې په ماضي کې تېر شوي دي.

دریم دا چې پر امیر فرض دي، هرومرو به له شورا سره مشوره کوي او د شورا په مجلس کې به پخپله موجود وي تر څو پرته له اړخ پلوي ټولې رایې پخپله واوري. دا خبره سهي نه ده چې شورا ناسته وي او امیر صیب نادر که وي او چې کله د شورا رایه راشي نو پرته له دې چې دی پخپله د ټولو دلائل واوري د دې پر خلاف پرېکړه وکړي.

نو پورتنیو ټکو ته په پام سره د اسې برېښي هغه امیر چې د ټولو ضروري صفاتو څښتن وي د شورا خلاف پرېکړه کولو حق هم ورته حاصل دی. هو ! په ځینو حالاتو کې شونې ده امیر یا خلیفه په یوه ځانګړې دائره کې بند کړل شي.

ددې یو لامل دادی چې نن په نړۍ کې داسې مشر نشته چې د مشرتابه د اهلیت ټول صفتونه پکې وي او دا ځکه چې د وخت او حالاتو د بدلون له امله په ځېنو شرائطو کې نرمي کول اړینه وي لکه مخکې مو چې وویل د عادل پاچا تعریف وختونو او حالاتو ته په پام سره بدلیږي ،تر دې چې متأخرینو علماوو دومره اسانه کړې چې :"من غلبت حسناته سیئاته" عادل هغه دی چې نېکي یې د بدیو په پرتله زیاتې وي، دا په حقیقت کې د وخت او حالاتو سره یو جوړ جاړی دی.

یو مهال علماوو د ګواه له پاره ګڼ شمېر سخت شرطونه اېښي و چې د ټولو شرعي فرائضو پابندي به کوي او له هر ډول منکراتو به ځان ساتي؛ خو چې کله امام ابو یوسف رحمه اللّٰه قاضي شو ؛نو هغه وویل چې اوس داسې ګواه موندل ډېر ګران دي چې د ګواهي ټول شرطونه پکې پوره وي؛ نو که ګواه فاسق هم وي؛ خو چې دروند او مخور سړی وي د هغه ګواهي معتبره ده، نو فقهاوو کله هم له حقائقو سترګې نه دي پټې کړي؛ بلکې د وخت له غوښتنو

او اړتیاو سره سم یې خلکو ته دین رسولی، متقدمینو د امام یا خلیفه لپاره دا شرط ضروري ګرځولی و چې باید یوا ځې عالم نه وي بلکې مجتهد به هم وي؛ خو نن د مجتهد موندل ناشونی دی ،له همدې امله په دې شرط کې نرمي وشوه ، اوس که د ټیټې رتبې یو تن امیر وټاکل شي او دومره لوړ مقام ورکړل شي لکه د راشدینو خلفاوو چې و ؛ نو رښتیا هم چې دا د فکر وړ خبره ده. نو که په اوسني حالاتو کې دهغې ډلې خبره ومنل شي چې داسې امیر د شورا خبره نشي ردولای ښایي دا رایه به غوره وي. په هغه وخت کې چې درښتوني امیر موندل شوني و ، هغه مهال د پاچا خبره منل لازم بلل کېدل ، ځکه چې په امیر کې ټول شرطونه موجود وو، دهغه پردینداري ، امانت ، تقوا ، علم ،تجربې او نورو ټولو صفتونو باندې بشپړ باور کېدلی شو، خو چې هغسې امیر نه موندل کیږي؛ نو په داسې وخت کې که امیر تر یو حده د شورا پابند کړل شي؛ نو دا به غوره وي ؛ اودا په ځانګړي ډول دهغو روایتونو سره سمون خوري چې ما یې مخکې یادونه وکړه.

د امیر د پابند کولو ښه لار داده چې حکومتي چارې په دوه ډوله ووېشل شي، یو ډول هغه چارې چې دعام قانون په بڼه وي او دوهم ډول اجرائي او تنفیذي نوعیت لرونکي چارې دي، تر کومه چې د قانوني حیثیت لرونکو چارو پورې تړاو لري دهغو په اړه دا خبر روښانه ده چې په اسلامي واکمنۍ کې هیڅوک داسې قانون نشي جوړولی چې د شریعت سره ټکر ولري خو دمباح کارونو په دائره کې قانون سازي کېدلی شي او په همدې قانون سازي کې دا هم کېدلی شي چې امېر د شورا پابند کړل شي ؛ خو که په ټولو اجرائیه چارو کې واکمن د شورا پا بند کړل شي او پر هغه دا شرط کېښودل شي چې د هر اقدام څخه وړاندې له شورا منظوري اخلي؛ نو د حکومت چارې پر مخ نشي تللای، له همدې امله په داسې اجرائي چارو کې دې په هغه خبره عمل وکړل شي چې امیر یې اختیار لري.



ددې مثال داسې دی چې فقهاوو داړتیا پر وخت ددې اجازه ورکړې چې که په بیت المال کې دومره بودیجه نه وي چې داړتیا وړ لګښتونو ځای ونیسي؛ نو بیا دمالیې اخېستلو اړتیا شته چې دوی ورته (ضریبة النائبة) وایي اوددې تفصیل به ان شاء الله لږ وروسته راشي، اوس که چېرې داسې مسئله مخ ته راشي چې په هغې کې مالیه اخېستل اړینه وي؛ نو دهغې لپاره به قانون جوړیږي اودا قانون به د شورا مخ ته اېښودل کیږي؛ نو اوس که ټوله شورا ووایي چې مالیې اخېستلو ته اړتیا نشته او مشر ووایي چې اړتیا شته ، نو پرداسې وخت ویل کیږي چې دشورا پرېکړه منل پر پاچا لازم دي تر څو یې چې شورا ونه مني ترهغو مالیه نشي اخېستل کېدلی.

په همدې توګه اوس باید په دستور کې دا وټاکل شي چې په کومو معاملاتو کې پاچا خود مختاره دی او په کومو کې دشورا دپرېکړو پابند دی.

### ۴. دزیاتو رایو پر بنسټ پرېکړه

د شورا د بحث په لړ کې اوس دې ته کتنه کوو چې په شریعت کې زیاتي رایې څه مقام لري؟ معنا دا چې دشورا پرېکړه به هغه مهال دمنلو وړ وي چې ټول غړي یې یوه خوله وي او که به دزیاتو رایو پر بنسټ پرېکړه کوي. دا خبره به تاسو ته راشي چې په جمهوریت کې دحق او باطل پرېکړه او هرډول چارې یوازې د زیاتو رایو پر بنسټ پر مخ بېول کیږي ، په جرګه کې چې اکثریت خلکو د کوم شي په اړه رایه ورکړه هغه به د منلو وړ وي، په دې اړه علامه اقبال ډېر ښه ویلي دي، نو موړی وایي:

*جمہوریت ایک طرزِ حکومت ہے کہ جس مین*

*بندون کو گِنا کرتے ہین، تولا نہین کرتے*

معنـا دا چې پـه جمهوريت کې د خلکو اوصـافو تـه نـه کتـل کيـږي ، يـوائې دهغـوی شـمېر تـه کتـل کيـږي چې د څومره خلکو څنګـه رايـه ده؟ خـود قرآن او حديث له مخې د حق او باطل په غوره کولو کې د زياتو رايـو هـيڅ اهميت نشـته کله چې يو شی وړاندې کيږي چې دا حق يـا حلال دی او يـا باطل او حرام دی ، نو هغه مهال د زياتو رايو هيڅ ځای نشته او قرآن کريم همدا اعلان پـه څرګندو ټکو کړی دی، الله تعالی فرمايي: وَ اِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ فِي الْاَرْضِ يُضِلُّوْكَ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَ اِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ (۱)

ژباړه: او که ته پر ځمکه د اوسېدونکو خلکو په اکثريت پسې ولاړ شې نو هغـوی بـه تـا د الله د لارې څخـه بې لارې کړي ، هغـوی يـوازې د ګومان پېروي کوي او د اټکل غشي ولي.

نـو معلومـه شـوه چـې د حـق او باطـل پـه ټـاکلو کې د زيـاتو رايـو هـيڅ اعتبار نشته دلته د سهي دليل او قرآن او حديث احکامو تـه اعتبار دی ، نو پـه کومو معاملاتو کې چې د شريعت څرګند دليل موجود وي هلتـه د زيـاتو رايـو پر بنسټ هيڅ پرېکړه نشي کېدلای. د جمهوريت د زيـاتو رايـو پـه اړه اروا ښـاد اقبال وايي:

*که در مغز دو صد خر فکر انساني نمي آيد*

چې د دوه سوه خرو په دماغو کې د انسان فکر نه راځي.

هو ! زياتي رايي دومره بي ارزښته هم نه دي چې شريعت يې پـه يـوه معامله کې هم د اعتبار وړ نـه بولي، دوه ځايونـه داسې دي چې پـه ټـوليزه توګـه پکې زياتو رايو ته اعتبار ورکول کيږي: يو دا چې کله د يـو مباح امر ډېرې لارې مخ ته راشي او په هغو کې يوه لاره غوره کيږي؛ نو پـه داسې وخت کې بـه زيـاتو

۱ ) سورة الانعام ۱۱۲



رايو ته ترجيح ورکول کيږي ،کومه لار چې د زياتو رايو پـر بنسـټ وټاکـل شي هغه به غوره کيږي. او د دې دليل دا دی چې حضرت عمر رضی الله عنه لـه ځـان نه وروسته د ځای ناستي د ټاکلو د پاره د لـوړ رتبـه صحابه وو يـوه شـپږ کسـيزه شورا جوړه کړه چې پـه هغـې کې حضرت عثمـان ، حضرت علي ،عبد الرحمن ابن عوف ، طلحه ، زبير ، او سعد ابن ابي وقاص رضی الله عنهم شامل وو ، شـورا تـه دا دنـده وروسـپارل شـوه چـې ټول دې سره راټول شي او د راتلونکي د پـاره دې خليفـه وټـاکي ، هغـه مهال چې حضرت عمر رضی الله عنه دوی تـه لارښوونې کولې نـو دا يې هم ورتـه وويل: کـه چېرې ستـاسې تـر منځ اختلاف راغی؛ نو د چا په اړه چې زياتې رايې ورکړل شوې هغه دې خليفه وټاکل شي، داسې چې کـه د شپږو څخـه د څلورو يـوه رايـه وه او د دوو بېلـه رايـه وه؛ نـو د څلورو رايـه دې ومنـل شي. پـه تـاريخ کې شـورا تـه د هغـه لارښـوونې پـه دې الفاظو را نقل شوي دي:

"تشاوروفي أمركم فإن كان إثنان وإثنان فارجعوا في الشورى ،وإن كان أربعة وإثنان فخذوا اصنف الأكثر" .(۱)

ژباړه : پـه خپل کار کې مشوره وکړئ، که چېرې دوه يوه لوري ته شول او دوه بل لوري ته (يعني دوه اړو رايې برابرې شوې) نو بيا مشوره وکړئ او کـه څلور يوه لوري ته او دوه بل لوري ته شول؛ نو په داسې وخت کې بيا زياتو رايـو تـه وګورئ او پر هغو عمل وکړئ.

په دې مسئله کې حضرت عمر رضی الله عنه زياتو رايو ته اعتبار ورکړ.

دوهم دا چې په کومو مسئلو کې د مجتهدينو اختلاف وي، هر مجتهد د خپلې رايې سره سم د قرآن او سنت د تشريح په لړ کې خپله خپله رايه وړاندې

۱ ) طبقات ابن سعد ج: ۵۸

کړې وي، په داسې ډول مسئلو کې هم وخت نا وخته دېولامل له امله زیاتو رایو ته ترجیح ورکول کیږي، نو په کومه مسئله کې چې ډېر فقهاء پر یوه خبره متفق وي هغه به تر نورو قوي بلل کیږي. ځینو علماوو دا خبره داسې تعبیر کړې چې که څه هم زیاتي رایې په خپله دلیل نشي جوړېدلی؛ خو د دلیل څرګندویي کولی شي، چې په یوه مسئله کې یو شمېر ستر فقهاء چې په پوهې، غوره والي او تقوا کې لوړې رتبې لري ټول یو لوری غوره ګڼي دا د دې څرګندویه ده چې د دوی دلیل قوي دی، خو د دې معنا دا نه ده چې کوم لوري ته مجتهدین زیات وي هغه خبره دې هرومرو غوره وګڼل شي، ګڼ شمېر داسې مسئلې دي چې په هغو کې امام ابو حنیفه رحمه الله یوازې دی او نور اکثر مجتهدین بل لور ته دي. خو ما له خپل ګران پلاره اورېدلي و چې یو ځل شیخ الهند رحمه الله وویل: په کومه مسئله کې چې امام ابو حنیفه رحمه الله د نورو مجتهدینو څخه بېل نظر ولري په هغه ځای کې زما غالب ګمان دا دی چې د امام ابوحنیفه دلیل به ډېر قوي وي ځکه چې د هغه دلیل ډېر قوي نه وای ؛نو له دومره زیات شمېر فقهاوو څخه بېل نه پاتې کېدی.

نو په اجتهادي امورو کې زیاتي رایې که څه هم په خپل ذات کې یو حتمي دلیل نه دی خو د دلائلو د تعارض پروخت ځینې وختونه د یو راجح قول په توګه غوره کېدلی شي.

د پورتنیو لا ملونو له مخې د شورا مجلس کې به دا خبره وړاندې کیږي چې د مباحاتو په دائره کې که چېرې په کومه مسئله کې د رایو اختلاف وي هلته به د زیاتو رایو لوری غوره بلل کیږي.

دلته یوه بله خبر هم دیادولو ده چې نن په ځینو مجلسونو کې دا خبره وړاندې کیږي چې په یوه مسئله کې د شورا د غړو اختلاف راشي او په دواړو خواو کې رایې برابرې وې؛ نو د مجلس مشر چې کوم لوري ته وي هغه رایه دې غوره وګڼل شي. دا خبره د ترجیح رایې ( (casting vote سره هم تعبیرېږي



معنا دا چې په دې سره د مجلس مشر د یوې بلې زیاتې رایې حق ورکړ. د دې کړنلارې بنسټ هم د حضرت عمر رضی الله عنه په لارښوونو کې شته، په یو روایت کې دي چې کله نوموړي له ځانه وروسته د خلیفه ټاکلو شپږکسیزه شورا وټاکله؛ نو هغو ته یې وویل:

"وإن اجتمع رأى ثلاثة وثلاثة فاتبعوا صنف عبدالرحمن ابن عوف." (۱)

که د درېو کسانو رایې یوې خواته اود درېوو رایې بلې خواته شوې ؛نو بیا د هغو رایو پلوي وکړئ چې عبد الرحمن ابن عوف پکې وي.

دغه راز په شورا کې دې هغه افراد هم ورګډ کړل شي چې په مشوره کې ګډون لري خو د رایو د شمېر پر وخت یې رایې نه شمېرل کیږي ،داسې خلکو ته په اوس وخت کې(**Nan-voting members**) "رایه نه اچونکي غړي " وایي،د دې بنسټ هم د حضرت عمر رضی الله عنه په هغو لارښوونو کې شته چې شپږ کسیزه شورا ته یې کړې وي ، نوموړي په شورا کې د خپل زوی عبد الله ابن عمر رضی الله عنه د ګډون اجازه هم ورکړې وه ، خو د هغه په اړه یې داسې ویلي و: "یشهدكم عبدالله ابن عمر وليس له من الأمر شيء "

عبد الله به هم درسره ګډون کوي ،خو په دې معامله کې به د هغه هیڅ اختیار نه وي. (۲)

۱: [طبقات ابن سعد :۳ ۵۸۱]

۲ : {صحیح البخاری کتاب المناقب باب قصة البیعة والاتفاق علی عثمان ،حدیث شمیره ۳۷۹۹}

## ۵. د شورا صفات

د شورا مجلس په لړ کې درېمه خبره دا ده چې ایا د شورا غړو ته هم ځیني صفتونه ضروري دي او که یه؟ په دې تړاو مخکې موږ یادونه وکړه چې د خلیفه ټاکل د اهل حل او عقد له خوا کیږي او همدا اهل حل او عقد به د شورا غړیتوب لري، له دې پخپله څرګنده شوه چې د اهل حل او عقد شورا کې هر معلوم او نامعلوم تن ګډون نشي کولی، د دوی د پاره هرومرو باید څه صفتونه وټاکل شي چې ځیني به یې بېخي بدیهي بڼه ولري، د بېلګې په ډول د شورا غړي باید د حکومت او ریاست د معاملاتو پوهه او بصیرت ولري، باید امانت پاله او دیندار وي. او د نورو صفتونو لپاره شریعت کوم ځانګړي شرطونه نه دي ایښي بلکې دا یې د هرې زمانې د حالاتو سره سم د هغې زمانې هوښیارانو او د پوهې څښتنانو ته پرېښې دي. د اهل حل او عقد کلمه پخپله ښیي چې باید داسې خلک وي چې د دوی په هوښیارتیا، امانت پالنه او دینداري باندې په ټولیزه توګه د امت باور وي. په قبائلي ژوند کې چې به داسې خلک ټاکل کېدل د هغوی د ټاکلو د پاره د کومو ځانګړو قوانینو اړتیا نه وه، خو په اوس وخت کې هغه حالات ندي پاتي له همدې امله نن د داسې خلکو د ټاکلو د پاره ځانګړې ټاکني ته اړتیا ده، د دې خلکو غوره کول به د رایو پر بنسټ کیږي یا دې د دوی د ټاکلو د پاره د ټاکنو کومه ځانګړې اداره (electoral college) وي، په دې هکله هم شریعت کوم ټاکلي او دائمي شرطونه ندي ایښي؛ که په یو هېواد کې د تعلیم او پوهې کچه لوړه وه نو د رایې ورکولو پر بنسټ هم د دوی ټاکنه کېدلای شي او که د ولس حالاتو ته په کتني سره دا مناسبه وګڼل شي چې پوړۍ په پوړۍ ټاکني دې وشي؛ نو په دې اړه هم د شریعت له پلوه داسې کوم بندیز نه تر سترګو کیږي.



## ۶. په شورا کې دمېرمنو غړیتوب

پوښتنه دا ده چې مېرمن کولی شي د شورا غړیتوب وکړي که څنګه؟ په دې هکله هم د اوسني پېر عالمان چې پر اسلامي سیاست یې ګڼ شمېر کتابونه لیکلي دي بېلا بېل نظرونه لري، یوه ډله عالمان وایي چې مېرمني کولی شي په شورا کې برخه واخلي، د دوی استدلال کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېر ځله له مېرمنو سره مشورې کړې دي، په دې تړاو د ام سلمه رضی الله عنها کیسه ډېره یادیږي، د حدیبیې سولې پر مهال رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وو ته امر وکړ چې قرباني وکړئ، حلق وکړئ او احرامونه خلاص کړئ، درې ځله دا اعلان وشو؛ خو هیچا پلې نه کړ، دا یوه غیر عادي پېښه وه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په یوه اشاره سربښندونکي صحابه د هغه د بیا بیا اعلان سره سره دې خبرو منلو ته نه تیاریږي، رسول الله صلی الله علیه وسلم خېمې ته ننوت او دا خبره یې له ام سلمه رضی الله عنها سره شریکه کړه، هغې مشوره ورکړه چې ددې پر ځای چې ته دوی ته بیا ووایې ښه به دا وي چې لومړی خپل څاروی قرباني کړې او یو تن را وغواړې خپل سر پرې وخریې، رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې مشوره عمل وکړ، صحابه وو رضوان الله علیهم چې دا کار ولید؛ نو یو له بل سره ودرېدل او قرباني او حلق یې وکړ. (۱)

که څه هم په دې کیسه کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د ام سلمه رضی الله عنها په خبره عمل وکړ؛ خو له دې دا استدلال کول چې مېرمن دې د شورا مستقل غړیتوب ولري ډېر کمزوری دی.

۱) صحیح البخاری کتاب الشروط حدیث ۲۷۳۲

ددې ډلې دوهم دليل دادى چې کله حضرت عمر رضى الله عنه د خليفه ټاکلو د پاره شپږ کسيزه شورا وټاکله، په هغو کې صحابه وو درې کسانو عبدالرحمن بن عوف، عثمان بن عفان او على بن ابى طالب رضى الله عنهم ته اختيار ورکړ، ابن عوف وويل: زه خلافت نه کوم او غواړم د عثمان بن عفان او علي رضي الله عنه په اړه پخپله د خلکو رايې معلومې کړم او له هغې وروسته په دوى کې يو تن وټاکم، دا خبره د شورا نورو غړو هم خوښه کړه؛ نو عبدالرحمن بن عوف درې ورځې وګرځېد تر څو د خلکو رايې معلومې کړي ، په دې اړه د تاريخ کتابونه داسې وايي: ثم نهض عبدالرحمن ابن عوف رضى الله عنه يستشيرالناس فيهما ويجمع رأى المسلمين حتى خلص إلى النساء المخدَرات فى حجابهنَ.(١)

بيا عبدالرحمن ابن عوف رضى الله عنه پاڅېد او د دوى دواړو (عثمان او على رضى الله عنهما ) په اړه يې له خلکو سره مشورې پيل کړې او د مسلمانانو رايې يې راټولې تر دې چې له مېرمنو سره يې هم وليدل چې مخونه يې په پړونو پټ ول.

د دې ډلې عالمانو له نظره چې له مېرمنې رايه اخېستل کېږي؛ نو که هغه په شورا کې غړيتوب وکړي پروا نه لري؛ خو په دې شرط چې بشپړ حجاب به مراعت کوي ، خو دا استدلال هم ډېر قوي نه دى ځکه په دې روايت کې داهم دي چې: "وحتى سئل الولدان في المكاتب." (٢)

او تر دې چې هغه په ښوونځيو کې له ماشومانو هم پوښتنې وکړې.

اوس نو که په دې سره استدلال کېدلى شي؛ نو بيا خو دې د ښوونځي ماشومانو ته هم د غړيتوب حق ورکړل شي، څرګنده ده چې له دې استدلال نشي کېدلى.

١) البداية والنهاية ج٥ص٢٢٧طبع دارالفکر
٢) البداية والنهاية ج٥ص٢٢٧طبع دارالفکر



بله ډله عالمان بيا په دې باور دي چې مېرمنې ته د شورا غړيتوب ورکول نا روا دى، دوى له هغه حديث نه استدلال کوي چې مخکې تېر شو ، په هغه کې و: "وأموركم إلى نساءكم فبطن الأرض خيرلكم من ظهرها. "

او چې کله مو خپلې چارې مېرمنو ته وسپارلې؛ نو ستاسو لپاره د ځمکې له مخ نه د ځمکې نس غوره دى.

خو له دې حديث نه استدلال کول هم تر پوښتنې لاندې دى، ځکه چې په حديث کې دا کار بد ګڼل شوى دى چې ټولې پرېکړې مېرمنو ته وسپارل شي او د هغوى رايه وروستۍ پرېکړه وګرځول شي او په هره معامله کې سړى د مېرمنې تابع وګرځي. خو له دې نه دا خبره راوېستل سهي نه برېښي چې له هغې نه هيڅ مشوره اخېستل روا نه ده.

لنډه دا چې په دې مسئله کې دواړې خواوې خپل دلائل لري ، خو داسې کوم څرګند دليل هم نشته چې مېرمنې ته دې د شورا غړيتوب نه ورکول کېږي . خو دا خبره منل شوې چې که مېرمنې ته په شورا کې د ګډون اجازه ورکول کېږي؛ نو شرعي پرده به هرومرو په پام کې نيسي او دا کار د مېرمنې لپاره تر ټولو لومړى او لازم قدم دى.

## ۷. په شورا کې دنا مسلمانو خلکو ګډون

څلورمه مسئله دا ده چې په شورا کې نامسلمان وګړی هم غړیتوب کولای شي که څنګه ؟ په دې اړه الله تعالی فرمایي: يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ ۚ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۖ وَ مَا تُخْفِيْ صُدُوْرُهُمْ اَكْبَرُ (۱)

ژباړه: اې مؤمنانو ! له خپلو (مؤمنانو ) پرته مو څوک دراز ملګري مه نیسئ. دوی د هیڅ فساد او ضرر کمی او سپما درباندې نه کوي ، هغه څه خوښوي چې تاسو پرې کړیږئ، دښمني یې له خولو هم ښکاره شوې خو چې څه یې په سینو کې پټ ساتلي تر دې هم ستر دي.

ځیني عالمان د دې ایت پربنسټ استدلال کوي چې نامسلمانه خلکو ته د شورا غړیتوب ورکول نا روا دی، خو دا استدلال ډېر څرګند نه دی. مفسرین د دې آیت په تفسیر کې وايي: د دې آیت مطلب دا دی چې کوم کافران له مسلمانانو سره دښمني کوي هغوی په خپلو ځانګړو معاملاتو کې د راز ملګري مه نیسئ. علامه الوسي رحمه الله د دې آیت په تفسیر کې ګڼ روایتونه رانقل کړي دي، په هغو کې دي چې ځینو مسلمانانو به د جاهلیت د پخوانیو ملګرتیاو له امله له ځینو یهودو سره داسې اړیکې ساتلې چې په هغو سره به د مسلمانانو یو لړ رازونه هم افشا کېدل. او له ځینو روایتونو بیا څرګندیږي چې په دې آیت کې مسلمانان له منافقانو سره د راز ملګرتیا څخه منع شوي دي. (۲)

او دا خبره ښېخي څرګنده ده چې کوم خلک د مسلمانانو دښمنان دي له هغوی سره نه راز شریکول روا دي او نه هم هغوی ته په شورا کې برخه ورکول روا دي.

۱) سورة آل عمران: ۱۱۸

۲) روح المعاني: ج۴ ص ۳۷



خو هغه کافران چې په اسلامي هېواد کې ژوند کوي او د اسلامي ریاست امن غوښتونکي وي، فقهاوو هغوی ته په شورا کې د ګډون اجازه ورکړې ده. حضرت عمر رضی الله عنه به پخپل پیر کې وخت ناوخته ذمیانو ته هم په شورا کې د ګډون بلنه ورکوله ، او دا خبره امام سرخسي رحمه الله په خپل کتاب مبسوط کې را نقل کړې ده. علامه سرخسي رحمه الله د حضرت عمر رضی الله عنه د شورا تر یوې کیسې وروسته وایي: وفيه دليل على أن لا بأس بإحضار بعض أهل الكتب مجلس الشورى فإن النصراني الذي قال ما قاله قد كان حضر مجلس عمر رضى الله عنه للشورى ولم ينكر عليه . (۱)

له دې کیسې معلومیږي چې ځیني اهل کتاب هم شورا ته راغوښتل کېدلی شي ځکه هغه نصراني چې عمر رضی الله عنه ته یې څه ویلي و ، هغه مهال نو موړی په شورا کې ناست و او حضرت عمر رضی الله عنه یې ناسته بده و نه ګڼله.

په ښکاره د ذمیانو د راغوښتلو موخه د هغو مسائلو په اړه څېړنې او بحث کول و چې له دوی سره یې تړاو درلود. له دې یوازې دا معلومیږي چې د مسلمانانو په ټولنیزو کارونو کې به د دوی هیڅ کار نه وي؛ خو پخپله د دوی او مباحو کارونو په اړه که شورا ته راوغوښتل شي او رایه ترې واخېستل شي؛ نو په دې کې کومه ستونزه نشته.

۱) المبسوط للسرخسي ج۲۴ ۷۱

## ۸. قانون جوړونه

نن په نړۍ کې د قانون جوړوني دنده د پارلمان په غاړه ده ځکه ورته مقننه هم وايي، د سیکولر جمهوریت په قانون جوړونه کې پر پارلمان هیڅ ډول بندیز نشته پرته له هغو بندیزونو چې اساسي قانون یا دستور یې وربانديې ولګوي او دا قانوني بندیز هم پارلمان یا د قانون جوړونې اداري پرې لګوي، او پارلمان چې هروخت وغواړي دا بندیز د دستوري سمونې له لارې لغوه کولای شي له همدې امله پر پارلمان چې د هېلو کور ګڼل کېږي هیڅ ډول بندیز نشته.

د اسلامي دولت تر ټولو غوره قانون قرآن کریم او د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث دي، دا نه بدلېدونکی قانون دی؛ نو هرومرو باید هرډول قانون جوړونه یوازې ددوی تابع وي، ددې اصولو لاندې په اسلامي دولت کې درې ډوله قانون جوړونه کېدلای شي:

(۱) لومړی ډول دا چې په قرآن کریم او حدیثو کې کوم څرګند احکام ذکر شوي چې په تشریح او تعبیر کې یې د اختلاف هیڅ ځای نشته، هغه دې د هېواد د قانون په توګه نافذ کړل شي او ددې د نافذولو دوه لاري دي: لومړی دا چې دا احکام د تدوین شوي قانون (**codified low**) په بڼه تحریر کړل شي او پر ټولو محکمو لازم وګرځول شي چې د تدوین شوي قانون سره سم پرېکړې وکړي. دوهمه لاره یې داده چې ددې احکامو د تدوین پر ځای پر محکمو لازم کړل شي چې ټولې پرېکړې د قرآن او حدیث سره سم کوي، بیا د محکمو دنده ده چې په هره قضیه کې قرآن او حدیث ته رجوع وکړي ، د هغو په حکمونو ځان پوه کړي او بیا له هغو سره سم خپلې پرېکړې کوي. څرګنده ده چې په دې دوهم صورت کې په ځانګړي توګه دا اړینه ده چې د محکمې



قاضیان به په قرآن کریم او حدیث بشپړه پوهه ولري تر څو دوی پخپله دې احکامو ته ورسیږي.

(۲)– د قانون جوړوني دوهم ډول د هغو شرعي احکامو په اړه دی چې په قرآن او حدیث کې یې څرګنده یادونه نه وي شوې بلکې په اجتهاد او څېړنې پورې تړلي وي، یا یې د نظر اختلاف ځای وي ، دې دواړه ډوله قوانینو ته دې قانوني بڼه ورکړل شي. څرګنده ده چې په داسې کار کې اجتهاد او استنباط یا د نظر د اختلاف له امله یوې خواته ترجیح ورکول اړین وي، ددې لپاره هم همغه دوه لارې دي: لومړی دا چې دا ډول احکام دې په ځانګړي ډول تدوین کړل شي او د لیکلي قانون (**Statute low**) په توګه دې نافذ کړل شي. او دوهمه دا چې دیو لنډ قانون له لارې دې محکمې مکلفې وګرځول شي چې په دې ډول احکامو کې یا پخپله یو دریځ غوره کړي او د هغه سره سم دې فیصلې کوي، یا دې د فقهاوو د بېلابېلو مذهبونو مثلا د حنفي فقه په منلو مکلف وګرځوي چې په هره معامله کې به د حنفي فقه سره سم فیصله کوي. خو په یوه مسئله کې به د حنفي فقهي دریځ څنګه معلومیږي ؟ دا خبره دې پخپله محکمې د کتابونو په مټ پیدا کړي. څرګنده ده چې دا دویم صورت هغه مهال پلي کېدلی شي چې د محکمو قاضیان په اسلامي علومو کې بشپړ مهارت ولري، له دې پرته دا کار عملي کول نا شونی دی او که پر دې عمل ونه کړي؛ نو بې شکه چې د سترو نېمګړتیاو وېره به وي.

د اسلامي تاریخ په پیل کې په لومړي صورت عمل کېده، قاضیان صاحبان د لوی علم څښتنان ول او هره پرېکړه به یې له خپلې پوهې سره سم کوله ؛ خو چې د وخت په تېرېدو د قاضي صاحبانو د پوهې کچه ټیټه شوه؛ نو بیا د هر قاضي تر څنګ مفتیان وټاکل شول او قاضیانو به له هغوی فتواوې اخېستې او بیا به یې د هغو په رڼا کې خپلې فیصلې کولې.

نن د خلکو د بدو عملونو او ناسمو کړنو له امله شوني ده د نامدون قانون په نافذولو کې بدو اعمالو ته لارې پرانېستل شي او له امله يې ډېرې نېمګړتياوې رامنځ ته شي؛ نو ځکه اوس مهال قانون تدوينول او نافذول ډېر مناسب دي. او څرګنده ده چې د داسې کار دپاره د تکړه علماوو يوه ټولګي ته اړتيا شته چې ترخپل منځي مشورو وروسته دا احکام په قانوني بڼه مدون کړي. او همداسې کار د عثماني خلافت په وروستيو کې د تکړه علماوو يو لوی ټولګي کړی و، هغوی د "مجلة الاحكام العدلية" په نوم حنفي فقه مدونه کړه او هغه د ډېرې مودې دپاره په اسلامي هيوادونو کې د قانون په توګه نافذ پدله . خو د داسې ډول تدوين دپاره ډېر وخت ته هم اړتيا شته؛ نو تر کومه وخته چې قانون په مدونه بڼه جوړيږي تر هغو په عبوري توګه لومړی صورت هم غوره کېدلای شي.

اوس په ډېره ټينګه غوښتنه کيږي چې دا دواړه ډوله قانون جوړونو دنده هم بايد يوائې پارلمان ته وسپارل شي يعني يوازې پارلمان دې دا پرېکړه وکړي چې د قرآن او سنت دلارښوونو څه غوښتنه ده. دا خبره هغه وخت د منلو وړ ده چې د پارلمان غړي د قرآن او حديث د علومو پربنسټ وټاکل شي، داسې ټاکني په اوس وخت کې نشته او نه هم کېدلی شي، په عامه توګه د پارلمان غړي نه يوازې دا چې له قرآن او حديثو ناخبره دي بلکې زياتره داسې خلک دي چې د قرآن او حديثو وړتيا هم نه لري؛ نو څنګه به پردوی باندې د قرآن او حديثو د تشريح باور وشي!؟ څرګنده ده چې دا کار بيخي ناشونی دی.

(۳)- دريم ډول قانون جوړونه د هغو مباح کارونو په اړه ده چې په قرآن او حديث کې کوم ټاکلی حکم نه لري. اوس مهال چې په پارلمان کې کوم قوانين جوړيږي زياتره له همدې ډول سره تړاو لري. د بېلګې په ډول د رسمي مامورينو معاشونه، د مراعت قوانين، د ښاروالۍ قوانين، د پوځ د نظم او ضبط په اړه قوانين او داسې نور.



شوني ده په دې قوانينو کې کومه وړه خبره له شريعت سره ټکر ولري، نو بايد د قوانينو تر نافذولو وړاندې يې علما وګوري ترڅو په دې قوانينو کې هم د شريعت خلاف کومه جزئي خبره داخل نه کړل شي.

اوس په نړۍ کې په عامه توګه د قانون جوړونې ټول کارونه په پارلمان کې تر سره کيږي، بيا چې کله کوم قانون پارلمان تصويب کړي؛ نو يوائې د خاتمې پورې دپاره يې ولسمشر يا پاچا ته وړليږي او هغه پرې لاس ليک کوي او که له قانون سره پر کوم مهم ټکي اختلاف ولري؛ نو زيات نه زيات د بيا کتنې لپاره يې بېرته پارلمان ته وړليږي او که پارلمان د دوهمې کتنې وروسته بيا هم په خپله رايه ولاړ وي؛ نو بيا ولسمشر يا پاچا پر هغه باندې په لاس ليک کولو مجبوره وي.

په اسلامي دولت کې د تېر لومړي او دوهم ډول قانون جوړونې دپاره په اسلامي علومو کې مهارت شرط دی، په عامه توګه د پارلمان په غړو کې هغه قابليت نشته چې شريعت يې غوښتنه کوي چې د همدې په مټ د اسلامي احکامو سهي او مستنده تشريح وکړل شي، له همدې امله د يوې داسې ادارې شتون ضروري دی چې غړي يې د اسلامي شريعت علماء وي او هغوی د شريعت د سهي اصولو سره سم د اسلامي احکامو د تشريح او تعبير دنده تر سره کړي. او په دې اداره کې دژوند د بېلا بېلو برخو ماهرين هم په دې موخه ګډون وکړي چې په مختلفو برخو کې د عملي صورت حال څېړنه وکړای شي؛ خو د دې څېړنې وروسته به د شرعي احکامو تعين هغه څوک کوي چې د شريعت مأخذونو (قرآن، حديث، اجماع او قياس) پر اصولو بشپړه پوهه ولري. بيا به دې ادارې ته د مخکيني دوه ډوله قانون جوړونې اجازه ورکول کيږي يا به بيا د قانون د تعين کولو وروسته د هغه رسمي تنفيذ د شورا مجلس يا پارلمان کوي او که پارلمان د دې ادارې پر کوم وړانديز نيوکه لري؛ نو د بيا کتنې دپاره دې بېرته وروليږي او هغه اداره دې بېرته له سره

ددې نېوکو ځېړنه وکړي؛ نو بیا په خپل وړاندیز کې بدلون را وستلای شي. یا دې دهغو نېوکو معقول ځوابونه پارلمان ته وروليږي؛ نو له دې وروسته شورا یا پارلمان کولای شي دا دقانون په توګه نافذ کړي.

اوس مهال پردې وړاندیز نېوکه کیږي چې په دې سره د قانون جوړوني ټول واک د علماوو لاس ته لویږي چې دا دپاپیت یا تیو کراسي یوه بڼه ده. ددې نېوکې ځواب ما مخکې دتیوکراسي په بحث کې وړاندې کړ اوزما په کتاب (نفاذ شريعت اوراس کا طريقه کار) کې هم پر دې موضوع پوره بحث شوی دی؛ خودلته به يې لنډه يادونه داسې وکړو چې په هره معامله کې دهغې ماهرينو ته کتل کيږي او ترکومه چې دقرآن اوحديث دپوهې معامله ده په دې کې د علماوو وينا مستنده ده، پر دې دپاپيت ټاپه لګول نا معقول کار دی او په دې لړ کې مورږ د اسلام او عيسائيت توپير په "تېوکراسي" کې په ځرګند ډول بيان کړ. بلکې په دې تړاو چې هرڅوک د اهليت صفتونه ولري هغه ته عالم ويل کېدلی شي.

خو دريم ډول قانون جوړونه مخامخ دشورا مجلس اوپارلمان پخپله کولی شي. خو ددې لپاره چې کومه جزئي مسئله خوبه دشريعت له کوم حکم سره ټکر نه لري قانون جوړونه دې د تصويبولو مخکې همدې ادارې ته ولېږدول شي.

په اوسني پيرکې ولسمشر يا پاچا اړدی چې دپارلمان له خوا پر هر تصويب شوي قانون لاسليک وکړي، او دا خبره دضمير دازادۍ خلاف ده نو بايد موکه ورکړل شي چې دهېواد ولسمشر د لاسليک څخه انکار وکړای شي او په داسې وخت کې دې دپارلمان مشر يا سپيکر په لاسليک قانون نافذ کړل شي ترڅو داسې حالت رامنځ ته نه شي چې "ملکې ويکټوريا " ته منسوب دی، هغې پر يو قانون دلاسليک پر مهال ويلي و: "زما په فکر دا خبره سهي نه ده ؛خو لاسليک ورباندې کوم".



له دې پرته په ننني نړۍ کې ډيرې قانوني ستونزې شته ، قانون د تصويبولو تروروستۍ شېبې پورې له دومره ډېرو مرحلو راتېرېږي چې دشريعت له پلوه پکې څه ناڅه نېمګړتياوې پاتي وي.نوځکه دا خبره هم ضروري ښکاري چې هر ولسي وګړي ته دې دا حق ورکړل شي چې د يو قانون له قرآن اوحديث سره دټکر پر وخت محکمې ته خبر ورکړي، او په دې محکمه کې به دقرآن او حديث تکړه ماهرين موجود وي ، او هغوی دداسې شکايت داورېدو دپاره دشکايت کوونکي اودهغه په وړاندې حکومت ته دخپل دريځ دروښانه کولو موکه ورکړي، او د دواړو خواوو د دلائلو اورېدو وروسته پرېکړه وکړي چې شکايت سهي دی او که څنګه ؟که شکايت پرځای وي ،نوحکومت ته دې دقانون بدلولو امر صادر کړي ، دقضا اورېدو اختيار کټ مټ داسې دی لکه دامريکا په نظام کې دپارلمان له خوا د منل شوي قانون دلغوه کولو اختيار چې له قضا سره دی.زمونږ په هېواد (پاکستان) کې دهمدې کار لپاره وفاقي شرعي عدالت او د سترې محکمې يوه شرعي څانګه جوړه شوې ده؛ خو دهغوی په ترکيبي جوړښت کې ځينې نېمګړتياوې شته ، لومړۍ دا چې په دې کې بايد دقرآن او حديث تکړه عالمان موجود وي چې اوس مهال دا نشته او دوهم دا چې کوم علماء د دې محکمې غړي وي دهغوی ټاکل دلنډي مودې لپاره وي او د ولسمشر ترخوښې پورې موقوف وي، ددې دپاره حکومت اختيار لري چې که ددې محکمې کومه پرېکړه ددوی دخوښې پر ضد وي کولای شي قاضيان لرې کړي او له خپلې خوښې سره سم چارې پرمخ بوزي اوپه ماضي کې همداسې شوي دي. که دا نېمګړتياوې لرې کړل شي؛ نو رښتياهم چې دا اداره کولی شي قوانين اسلامي ډانچې ته په اچولو کې بشپړ رول ولوبوي.

## ۹. دامیر اطاعت او حدود یې

د قرآن او حدیث حکم دادی چې پر ولس دامیر اطاعت واجب دی، که یو شخص د تېر تفصیل سره سم امیر یا پاچا شي؛ نو اوس که هغه د قرآن او حدیث دلارښوونو سره سم ژوند کوي او احکام جاري کوي؛ نو دده اطاعت واجب دی. الله تعالی فرمائي: يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ أُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ (۱)

ژباړه: اې مؤمنانو ! د الله حکم و منئ او د رسول ومنئ او د خپلو چارواکو.

په دې ایت کې دالله تعالی او د هغه استازي له اطاعت وروسته د صحابه وو (راشدینو خلفاوو او دهغوی دنمائنده ګانو) د اطاعت حکم شوی دی. له دې څرګندېږي چې دکومو احکامو لارښوونه الله تعالی او د هغه رسول کړې ده په هغو کې به د هغو اطاعت کېږي چې د امیر په ګډون پر ټولو واجب دی؛ نو دامیر داطاعت دوه اړخونه دي.

لومړی دا چې کله امیر د یو مباح کار حکم وکړي؛ نو هغه کار په شرعي توګه پر ولس واجب ګرځي له همدې امله فقهاوو لیکلي چې کله امیر ووایي نن ورځ ټول روژه ونیسئ ؛ نو د دې ورځې روژه پر ولس واجب ګرځي. علامه ابن عابدین شامي رحمه الله دیو شمیر فقهاو په حواله وایي: "طاعة الإمام في غير معصية واجبة،فلوأمر بصوم يوم وجب ." (۲)

کوم کار کې چې ګنا نه وي په هغه کې د امیر اطاعت واجب دی؛ نو که د یوې ورځې دروژې نیولو امر وکړي، په هغه ورځ روژه واجبېږي.

۱) سورة النساء:۵۹

۲) ردالمحتار کتاب الدعوا ،ج۵\ص۴۲۲.طبع دارالفکربیروت



دغه راز که امیر د یو مباح کار څخه خلک منع کړي ،نوله هغه لاس اخېستل هم واجب ګرځي، معنا دا چې اوس دغه مباح کار نا روا شو. ددې مطلب دا نه دی چې د مباح شرعي حیثیت بدلیږي ، د شریعت له مخې هغه کار اوس هم مباح دی ، خو دامام د اطاعت له امله واجب، یا نا روا شي.

له دې څرګنده شوه چې د شریعت له مخې دچارواکو ترافیکي قوانینو منل هم پر خلکو لازم شول.

خو له دې سره سره فقهاوو داهم ویلي، چې: "تصرف الإمام بالرعية منوط بالمصلحة" (۱)

پر خپل رعیت باندې د امیر تصرف په مصلحت پورې تړلی دی.

معنا دا چې دا احکام هغه وخت واجب الاطاعت ګرځي چې کله امیر دعامه مصلحت له امله حکم جاري کړي ، او که دمصلحت پر ځای خلکو ته دتکلیف رسولو او پرهغوی دظلم کولو دپاره احکام جاري کړي؛ نو بیا د داسې حکمونو منل واجب الاطاعت نه پاتي کیږي.

دا اصول دقرآن کریم له هغه ایت نه اخیستل شوي چې الله تعالی پکې داود علیه السلام ته داسې لارښوونه کړې ده: يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ. (۲)

ژباړه : اې داوده ! ته مونږ په ځمکه کې خلیفه ټاکلی یې؛ نو د خلکو ترمنځ په حقه فیصله کوه.

دغه راز په یو روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دیو لښکر دلېږدولو پر وخت صحابه وو ته وفرمائل چې دخپل امیر اطاعت کوئ. د سفر

۱) الاشتاه والنظائر ج۱ص۱۲۳

۲) سورة ص:۲۶

پر مهال امیر په څه خبره خواشینی شو او خلکو ته یې وویل چې ایا رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسو ته نه و ویلي چې دامیر اطاعت کوئ ؟ خلکو ورته وویل: هو ! همداسي ده. نو هغه لښکر ته امر وکړ چې اور بل کړي، خلکو اور بل کړ، چې کله اور ولګېد او یو څه ګرم شو ؛ نو خلکو ته یې امر وکړ چې اوس نو اور ته ورټوپ کړئ ! صحابه حیران شول چې اوس څه وکړو. ځینو خو لا دا اراده هم وکړه چې اور ته به ور لوېږي ؛ خو نورو ترې اېسار کړل او ویل یې چې مونږ خو له اوره راتښتېدلي یو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته مو پنا راوړې، دوی په همدې اړدوړ کې و چې اور مړ شو او د امیر غوسه هم سړه شوه . کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له دې پېښې خبر کړل شو ؛ نو ویې فرمایل: "ولو دخلوها ما خرجو منها أبدا إنما الطاعة في المعروف ." : (۱)

که دا خلک اور ته ورلوېدلي وای؛ نو کله به هم ترې راوتلي نه وای. ترې راوتلي اطاعت خو په نېکو کارونو کې دی.

د امیر د اطاعت دوهم اړخ دا دی هغه معاملات چې په هغو کې دفقهاوو اختلاف وي، یو کار دیوه مجتهد په مذهب روا وي او دبل مجتهد په مذهب نا روا وي، ددې په اړه چې امیر کوم حکم جاري کړي؛ هغه متعین ګرځي چې فقهاء یې داسې تعبیرکوي: "حکم الحاکم رافع للخلاف " (دامیر امر اختلاف له منځه وړي ) که په یوه مسئله کې اختلاف و ؛ خو امیر یو حکم صادر کړ؛ نو همغه حکم به نافذیږي او پر ټول ولس لازم دي چې پر هغه دریځ عمل وکړي چې امیر یې ځانګړی کړي. دبېلګي په ډول دا ختر لمانځه په کړنلاره کې دا اختلاف دی چې دحنفي مذهب سره سم په هر رکعت کې درې درې تکبیرونه دي، له عامو لمونځونو یې شپږ تکبیرونه زیات دي او همدا طریقه له عبدالله

1 )صحیح البخاری کتاب الاحکام حدیث ۷۱۴۵ او کتاب المغازي ،باب سریة عبدالله ابن خذاقة حدیث ۴۳۴۰



ابن مسعود رضی الله عنه نه رانقل شوې ده، خو دعبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه بیا په بل ډول نقل شوی دی ، هغه وایي په لومړي رکعت کې شپږ او په دوهم رکعت کې پنځه تکبیرونه دي او همدا دامام شافعي رحمه الله مذهب دی، او امام محمد او امام ابویوسف سره له دې چې حنفیان دي؛ خو په دوهم روایت به یې عمل کاوه، ځکه چې هارون الرشید هغوی ته دخپل نیکه عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما دمذهب سره سم دعمل کولو امر کړی و. علامه ابن عابدین رحمه الله لیکي: "قال فی الظهیریة : وهو تأویل ماروی أبو یوسف ومحمد فإنهما فعلاذلک لأن هارون أمرهما أن یکبر بتکبیر جده ففعلا ذلک إمتثالا له لامذهبا واعتقادا." (۱)

په فتاوا ظهیریه کې ویل شوي چې امام ابو یوسف او محمد رحمهما الله چې داسې کړي دي دهغې لامل دا و چې هارون الرشید ورته دخپل نیکه د تکبیرونو ویلو امر کړی و ؛ نو هغوی د امیر د حکم منلو په موخه داسې کړي ول ، مذهب او عقیده یې داسې نه وه.

خو دا ټولې خبرې هغه مهال دي چې دامیر امر یا دمباحو کارونو په اړه وي او یا د داسې مسئلې د یوه اړخ په اړه وي چې په هغې کې د امامانو اختلاف وي، او که چېرې امیر داسې امر صادر کړي چې هغه دشریعت دسهي او اجماعي حکم خلاف وي هغه مهال بیا قاعده داسې ده چې: "لاطاعة لمخلوق فی معصیة الخالق " دخالق په نا فرمانۍ کې دمخلوق اطاعت ناروا دی. او دا اصول لومړی د قرآن کریم له هغه ایت نه اخیستل شوي چې په هغه کې الله تعالی دمور او پلار سره دنیک چلند امر کړی، الله تعالی فرمایي: "وَ اِنْ جَاهَدٰكَ عَلٰٓى اَنْ تُشْرِكَ بِيْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ١ فَلَا تُطِعْهُمَا وَ صَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا." (۲)

1 ) ردالمحتار باب العبدین ج۲ص۱۷۲.
2 ) سورة لقمان:۱۵

او که هغوی پر تا زور واچوي چې ماسره هغه څه شریک کړې چې تاسره د هغه څه علم نشته؛ نو بیا د هغوی مه منه؛ خو په دنیا کې ښه گوزران ورسره کوه.

دغه راز رسول الله صلی الله علیه وسلم دامیر داطاعت په لړ کې په ځانگړي توگه دا اصول ټاکلي دي: "السمع والطاعة على المرءالمسلم فيما أحب وكره، ما لم يؤمر بمعصية فإذا أمر بمعصية، فلا سمع ولا طاعة ." (۱)

پر مسلمان واجب دي چې که خوښه یې وي او که نه وي (د امیر) خبره واوري او ویې مني، ترڅو ورته د گناه امر نه وي شوی او که د گناه امر ورته وشي؛ نو بیا نه منل دي او نه اوریدل.

په داسې وخت کې که امیر د معصیت حکم وکړي؛ نو د گوښه کولو وړ گرځي چې ددې تفصیل به درته پخپل ځای کې وړاندې شي او کوم حکم چې د امیر د امر دی همغه د شورا او پارلمان له خوا د جاري شویو احکامو او قوانینو هم دی. د همدې دپاره مخکې دا وړاندیز وشو چې داسې یوې محکمې ته اړتیا شته چې د هغې په مټ پر گناه د مجبورولو قوانین تبدیل کړای شي.

۱) صحیح البخاری باب السمع والزاعة للامام حدیث ۷۱۴۴



## ۱۰. د تنقید ازادي

د امیر اطاعت معنا دا نده چې گواکې د هغه پر هر ډول اقدام دې هیڅ نیوکه نه کیږي. ددې برعکس په یو سهي اسلامي دولت کې هر وگړی حق لري په آزاده توگه پر امیر نیوکه وکړي، په تیره بیا هغه مهال چې د هغه کوم حکم یا اقدام د قرآن او حدیث له حکم سره ټکر ولري؛ نو په داسې وخت کې نه یوازې دا چې پر هغه نیوکه کولای شي بلکې د محکمې له لارې یې گوښه کولای هم شي، ځکه چې په اسلام کې امیر له فطرت نه پورته هستي نده چې گناه به نه ترې کیږي ځکه خو ورته د مشورې کولو امر شوی دی او د مشورې کولو مطلب همدا دی چې هر شخص دې په ازاده توگه خپله رایه څرگنده کړي ، او له هغه سره دې دا اند ښښنه نه وي چې په دې به امیر خپه شي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم عامو مسلمانانو ته امر کړی چې کله د چارواکو کومه غلطه کړنه ووینې ، نو ددې پر ځای چې د هغه ملاتړ وکړي د سمې لارې ور ښوولو کوښښ دې وکړي. کعب ابن عجره رضی الله عنه وایې: " خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم و نحن تسعة ، فقال : إنه سيكون بعدي أمراء من صدّقهم بكذبهم وأعانهم على ظلمهم، فليس مني ولست منه وليس بوارد عليّ الحوض ، ومن لم يصدّقهم بكذ بهم ولم يعنهم على ظلمهم فهو منيّ وأنا منه ، وهو وارد عليّ الحوض ." (۱)

یو ځل موږ نهه (۹) تنه ولاړ وو رسول الله صلی الله علیه وسلم راووت او ویې ویل: "له ما وروسته به داسې امیران راشي چې که څوک د هغوی دروغ رښتیا وگڼي او د ظلم ملاتړ یې وکړي؛ نو هغه زما نه دی او نه زه د هغه یم او نه هم ماته په کوثر حوض کې را تلای شي، او څوک چې د هغوی دروغ رښتیا

۱) سنن النسائی کتاب البیعة ذکر الوعید لمن اعان امیرا علی الظلم ، حدیث ۴۲۱۲

ونه ګنې او نه يې هم د ظلم ملاتړ وکړي ؛ هغه زما دی او زه د هغه یم او ما ته به د کوثر حوض ته هم راځي.

او دابو سعید خدري رضي الله عنه په روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: "مابعث الله من نبيّ ولا استخلف من خليفة إلا كانت له بطانتان بطانة تأمره بالمعروف وتحضه عليه وبطانة تأمره بالشر وتحضه عليه فالمعصوم من عصم الله تعالى."(۱)

الله تعالی چې څومره پیغمبران رالیږلي دي او یا یې خلفاء مشران کړي دي ، دهغو به دوه ډوله مشاورین وو ، یو هغه مشاور چې هغه ته به یې نېکي مشورې ورکولې او نېکۍ ته يې هڅاوه ، او دوهم هغه مشاور چې هغه ته به يې بدې مشورې ورکولې او بدي ته يې هڅاوه؛ نو هغه څوک بچ دی چې الله تعالی يې خوندي وساتي.

دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما په روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: "من حضر إماما فليقل خيرا أو ليسكت"(۲)

څوک چې له کوم امیر سره وي ؛ نو نیکې خبرې دې ورته کوي او یا دې چپ اوسي.

او د ابوسعید خدري رضی الله عنه په روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: "إن من أعظم الجهاد كلمة عدل عند سلطان جائر" (۳)

۱) صحيح البخارى كتاب الاحكام باب بطان: الامام حديث ۷۱۹۸
۲) رواه الطبراني فى الأوسط وفيه صالح ابن محمد ابن زياد وثقه أحمد وغيره وضعفه جماعة وبقية رجاله رجال الصحيح. مجمع الزوائد كتاب الخلافة باب الكلاما لحق عند الائمة ، حديث ۹۱۲۷
۳) سنن الترمذى كتاب الفتن حديث ۲۱۷۴ قال ابو عيسى وفى الباب عن ابى أمامة وهذا حديث حسن غريب من هذا الوجه



د ظالم پاچا په مخکې د عدل خبره کول هم ستر جهاد دی.(۱)

عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: "لاينبغى لإمرء يقوم مقاما فيه مقال حق إلا تكلم به فإنه لن يقدم أجله ولا يحرمه رزقا هوله"(۲)

که څوک په داسې ځای کې وي چې هلته د حق ویلو موکه وي؛ نو هرومرو دې حق ووایي ځکه چې د ده مرګ څوک د لیکل شوي وخت نه نشي رامخکې کولی او نه يې هم څوک له خپلې ټاکلې روزۍ بې برخې کولی شي.

په بل روایت کې ابو سعید خدري رضی الله عنه وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: "لا يحقرن أحدكم نفسه. قالو : وكيف يحقر نفسه؟ قال أن يرى أمرالله فيه مقالا فلايقول به فيلقى الله تبارك وتعالى وقدأضاع ذلك فيقول : ما منعك ؟ فيقول : خشية الناس . فيقول: فإياي كنت أحق أن تخشى." (۳)

له تاسو دې څوک ځان نه سپکوي. صحابه وو وپوښتل: څنګه ځان سپکوي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک داسې یو کار ووینې چې په هغه کې د الله تعالی لپاره څه وینا وي؛ خو هغه يې بیا هم ونه وایي ،نو دی به په داسې وخت کې له الله تعالی سره مخ کیږي چې موکه به يې له لاسه

۱) دا حديث په مختلفو الفاظو په ابو داؤد كتاب الملاحم حديث ۴۳۴۴ او ابن ماجه کې هم شته
۲) الثانى والخمسون من شعبة الايمان للبيهقى حديث ۷۵۷۹ دار الكتب العلمية
۳) رواه ابو داود الطيالسي بسند صحيح واللفظ له دابويعلى الموصلى وعنه ابن حبان فى صحيحه ...ورواه احمد بن منبع وعبدابن حميدوابن ماجه مختصرا اتحاف الخيرة الميرة بزوائد المسانيد العشرة ،كتاب الفتن باب الامر بالمعروف والنهى عن المنكر حديث ۷۴۰۲ دار الوطن الرياض:

ورکړې وي؛ نو الله تعالى به ورته ووايي چې ته (له حق ويلو) چا منع کولې؟ دى به ورته ووايي: له خلکو ډارېدلم. الله تعالى به ورته وايي: زه د دې ډېر وړ وم چې را څخه ډارېدلى واى.

د همدې حديثونو په رڼا کې به راشدينو خلفاوو خلکو ته بلنه ورکوله چې پر دوى نيوکه وکړي، او داسې نيوکې يې په عملي توگه په ورين تندي اوريدلي دي. ابوبکر صديق رضى الله عنه چې له خليفه ټاکل کېدو وروسته تر ټولو لومړى کومه وينا وکړه هغه د راشدينو خلفاوو لپاره د بنسټ ځاى لري. هغه پخپله لومړنۍ وينا کې وويل: "أيها الناس! فإني قد وُليت عليكم، ولست بخيركم، فإن أحسنت فأعينوني وإن أسأت فقوّموني. الصدق أمانة والكذب خيانة والضعيف منكم قوي عندي حتى أزيح علته إن شاء الله، والقوي فيكم ضعيف عندي حتى آخذ منه الحق إن شاء الله... أطيعوني ماأطعت الله ورسوله، فإذا عصيت الله ورسوله فلا طاعت لي عليكم."(۱)

اې خلکو ! زه ستاسو د چارو سمبالولو نکى وټاکل شوم او زه تر تاسې غوره نه يم. نو که ما ښه کار کاوه تاسو مې اطاعت کوئ او که مې بد کار کاوه؛ نو ماته ښه لار را ښياست. رښتيا ويل امانت دى او دروغ ويل خيانت دى او ستاسو کمزورى زما په وړاندې زورور دى زه به إن شاءالله له هغه سره په کړاوونو لرې کولو کې مرسته کوم او ستاسو زورور زما په وړاندې کمزورى دى او زه به دخداى په خوښه حق ترې اخلم. ترڅو چې زه د الله او رسول اطاعت کوم تاسو زما اطاعت کوئ او که ما د الله او رسول له اطاعته سر غړونه وکړه؛ نو بيا پر تاسو زما اطاعت نشته.

۱) البداية والنهاية ج۹ مخ۴۱۴



په دې لنډه او هراړخيزه وينا کې ابوبکر صديق رضي الله عنه د اسلامي دولت د امير ځاى او د هغه صفات په څرگندو ټکو کې بيان کړل او نو موړي پخپله پر ځان د نيوکې بلنه ورکړه چې تر ده وروسته به عادلو خليفه گانو تل پر همدې اصولو عمل کاوه.

يو ځل حضرت عمر رضي الله عنه په يوه وينا کې خلکو ته وويل: " فإني واحد كأحدكم وأنتم اليوم تقرون بالحق ، خالفني من خالفني ووافقني من وافقني ولست أريد أن تتبعواهواي" (۱)

زه ستاسې په څېر يو انسان يم او نن تاسو په حقه اقرار کوئ ، تاسو کولى شئ زما سره په يوه خبره کې مخالفت يا موافقه وکړئ ، او زه نه غواړم چې تاسو زما په خواهشاتو پسې ولاړ شئ.

حضرت عمر رضي الله عنه به تل پر خپل ځان نيوکې په ورين تندي اورېدلې. حسن بصري رحمه الله وايي: يو ځل يو تن حضرت عمر رضي الله عنه ته وويل: "إتق الله يا عمر!" اې عمره! له الله وډار يږه (دا جمله په عام ډول پر يو چا د تنقيد پر وخت کارول کيږي) هغه څوځله دا جمله وکاروله؛ نو يو تن ودرېد ورته يې وويل چې تا اميرالمؤمنين سره ناوړه چلند وکړ. حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل: "دعه لا خير فيهم إن لم يقولوها لنا ولا خير فينا إن لم نقبل" (۲)

پرېږده ! که دوى دا خبره مونږ ته ونکړي؛ نو په دوى کې خير نشته او که مونږ يې ونه منو ؛ نو په مونږ کې خير نشته.

۱) كتاب التخريج لابى يوسف رحمة الله عليه الفئ والخراج۳۵مخ
۲) كتاب الخرلج لابى يوسف۱۲مخ

دا رنګه حضرت عمر رضي الله عنه یو ځل خلکو ته په یوه وینا کې خبر داری ورکړ چې د مېرمنو ډېر مهر دې نه اخلي او ویې وویل چې پیغمبرعلیه السلام د خپلو بیبیانو د پاره څو مره مهر ټاکلی و ، نن که څوک تر هغه زیات مهر واخلي؛ نو کومه اندازه چې تر دې زیاته وي هغه به بیت المال ته سپارل کیږي ، نو موږي چې کله خپله وینا پای ته ورسوله؛ نو د قریشو یوه مېرمن راغله او ورته یې وویل: اې امیر المؤمنین ! د الله تعالی کتاب زیات حق لري چې پېروي یې وشي او که ستا خبره؟ عمر رضي الله عنه ورته وویل: نه !د الله تعالی کتاب زیات حق دار دی. مېرمنې ورته وویل: اوس تا خلک له زیات مهر ورکولو څخه منع کړل ، او الله تعالی په خپل کتاب کې فرمایي :" وَ اٰتَیْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوْا مِنْهُ شَیْئًا "(او د هغوی کومې یوې ته مو که ډېر مال هم ورکړی وي نو بېرته به هیڅ شی نه ترې اخلئ) حضرت عمر رضي الله عنه چې دا خبره واورېدله؛ نو ویې ویل: تر عمر هر څوک په دین ښه پوهیږي ،بیا منبر ته وخوت او خپله مخکینۍ خبره یې بېرته واخیستله.(۱)

حضرت عمر رضي الله عنه غوښتل د نبوي جومات د توسیع لپاره د جومات تر څنګ د عباس ابن عبد المطلب رضي الله عنه کور په بیه واخلي، خو عباس رضي الله عنه د کور له ورکولو څخه انکار وکړ، عمر رضي الله عنه غوښتل عباس اړباسي چې دې کار ته غاړه کېږدي، هغه نه راضي کېدلو ، په پای کې دواړه پر دې سلا شول چې فیصله به ابی ابن کعب رضي الله عنه کوي، هغه د دریمګړي په توګه د عباس رضي الله عنه په پلوي فیصله وکړه، وروسته بیا عباس رضي الله عنه خپل کور پرته له کوم قیمته نبوي جومات ته وقف کړ.

د عباس رضي الله عنه د کور ناوه پر هغه لار را پرېښودل شوې وه چې حضرت عمر رضي الله عنه به جومات ته تللو. یو ځل حضرت عباس رضي الله

۱) السنن الکبری للبیهقی ،کتاب الصداق ج۷مخ۲۳۳



عنه د مرغۍ بچې حلال کړ چې څو څاڅکې وینه یې له همدې ناوې څخه لارې ته وڅڅېدله، په دې وخت کې حضرت عمر رضي الله عنه د جمعې لمانځه ته روان و او وینه یې پر جامو ولویده؛ نو بېرته وګرځېد جامې یې بدلې کړې او امر یې وکړ چې دا ناوه دې له دې ځایه لرې کړل شي، پردې کار حضرت عباس رضي الله عنه خپه شو او ویې ویل چې دا ناوه پیغمبرعلیه السلام پردې ځای ایښې وه، حضرت عمر رضي الله عنه چې دا خبره واورېده ؛ نو سخت وډار شو او حضرت عباس رضي الله عنه ته یې وویل: زه تا ته قسم درکوم چې زما پر اوږو به درېږې او ناوه به بېرته پر هماغه ځای ایږدې چې بیا همداسې وشول، عباس د عمر رضي الله عنه پر اوږو ودرېد او ناوه یې بېرته پر خپل ځای کېښوده. (۱)

هغه ناوه تر ننه د نبوي جومات په لوېدیځه برخه کې خوندي ده.

دا سې پېښې یوازې په راشدینو خلفاو پورې ځانګړې نه دي ،بلکې تر هغوی وروسته نورو عادلو خلفاوو هم د هغوی پر پلونو پل ایښی دی، هغوی به پر خپل ځان تنقید په سړه سینه اورېده او غاړه یې ورته ایښوده ، په تاریخ کې د دوی هم ډېرې بېلګې شته چې د ځینو یادونه یې دلته اړینه بولم.

په ۴۲۹ هجري کې خلیفه جلال الدوله په خپلو القابو کې "شهنشاه اعظم ملک الملوک " د زیاتولو فرمان صادر کړ چې بیا به د جمعې په خطبو کې د نوموړي له نوم سره دا القاب هم یادېدل، ځینو علماوو له دې کار سره مخالفت وښود او ځینو نورو بیا ویل چې د دنیایي پاچایانو لپاره داسې القاب کارول روا دي. خو علامه ابو الحسن ماوردي رحمه الله دا کار سخت وغنده او بېخي ناروا یې وباله، او ویل یې چې شهنشاه یا ملک الملوک یوازې الله ته ویل کیږي انسان ته داسې ډول القاب کارول د شریعت خلاف

۱) طبقات ابن سعد ج۴ مخ۱۹،۱۸

کار دی. علامه ماوردي رحمه الله له جلال الدوله سره ډېرې ښې اړیکې لرلې ، کله چې دده دا فتوا خپره شوه ؛ نو جلال الدوله دی ورو غوښت او ورته یې وویل چې زما له تا سره کومې اړیکي دي دهغو پربنسټ که تا دچا مراعت ساتلی؛ نو زما لحاظ به دې کړی و ؛ خو تا چې کومه فتوا ورکړې هغه دې یواځې ددین پر بنسټ ورکړې ده، له همدې امله زما په زړه کې ستا قدر او لوړوالی له پخوا نه نور هم زیات شو.(۱)

تردې لا زیاته نازکه مسئله هغه مهال رامنځته شوه چې کله د شیخ عزالدین ابن عبد السلام په زمانه کې نوموړي ته معلومه شوه چې یو شمېر ترکي وزیران په حقیقت کې د چا غلامان دي او دوی له خپلو بادارانو دازادۍ اخېستلو پرته وزیران شوي دي او اوس دا هم معلومه نده چې دوی دچا غلامان ول. شیخ عزالدین رحمه الله فتوا صادره کړه چې ددوی دا فکر چې موږ ازاد یو د اسلامي شریعت سره سمون نه خوري ، نو څکه دوی د دې چوکیو اهل ندي ، او ددې یوازینی حل دادی چې دا وزیران دې له سره وپلورل شي او دهغوی قیمت دې بیت المال کې داخل کړل شي او بیا دې همغه پېرودونکي دوی ازاد کړي. دشیخ دا وړاندیز منل وزیرانو ته ډېر ګران وو او پخپله پاچا هم په دې اړه ډېر فکر مند و ، خو بالاخره پاچا او وزیرانو دنوموړي فتوا ته سر ټیټ کړ او ویې منله ،او هغه وزیران یې لیلام او په ډېره لوړه بیه و پلورل شول او قیمت یې په بیت المال کې داخل کړل شول.(۲)

۱) طبقات الشافعیة الکبری للسبکي ،ترجمةعلی ابن محمد بن حبیب ابوالحسن الماوردی ج۵مخ۲۷۱
۲) طبقات الشافعیة الکبری للسبکی .ترحمةعبدالعزیز ابن عبدالسلم ج۸ مخ ۲۱۲



## ۱۱. د تنقید او سپکاوي ترمنځ توپیر

د اسلامي لاربښوونو له مخې چېرې چې عوامو ته نه یوازې دتنقید اجازه بلکې دهغه هڅونه شوې ده ، نو ورسره ورسره دا خبره هم په پام کې نېول شوې ده چې دتنقید او سپکاوي ترمنځ دې توپیر وشي، تنقید روا او دثواب کار دی؛ خو توهین یا سپکاوی بیا نا روا کار دی. یوځل ابن عامر ولید چې د یو ډله مسلمانانو مشر و ، نرۍ جامې اغوستي وې؛ نو یو سړي وویل: "دغه دی ! زموږ امیرته وګورئ، دفاسقانو جامې یې اغوستي دي، هغه مهال ابوبکرصدیق رضي الله عنه هم هلته موجود و ، هغه چې دا خبره واورېده ورته ویې ویل: چپ شه ! ما له پیغمبرعلیه السلام نه اورېدلي چې: "من أهان سلطان الله في الأرض أهانه الله." (۱)

څوک چې دځمکې پر مخ دالله دپاچا سپکاوی وکړي الله به هغه سپک کړي.

د ابوبکر صدیق رضي الله عنه همدا حدیث امام احمد رحمه الله په دې الفاظو رانقل کړی دی: "من أكرم سلطان الله في الدنيا أكرمه الله يوم القيامة ومن أهان سلطان الله في الدّنيا أهانه الله يوم القيامة."(۲)

څوک چې په دنیا کې دالله تعالی دپاچا قدر وکړي الله به په قیامت کې دده قدر وکړي او څوک چې په دنیا کې دالله د پاچا سپکاوی وکړي الله به په قیامت کې د هغه سپکاوی وکړي.

که څه هم د دې حدیث په سند کې خبره شته ، خو ډېری محدثینو په بېلابېلو سندونو رانقل کړی دی، اود حدیث مضمون دومره منلی دی چې

۱) رواه الترمذی،وقال:حدیث غریب ابواب الفتن ،حدیث ۲۲۲۴
۲) مسند احمد ج۳ص۷۹ .حدیث ۲۰۴۳۳

دوا کمن سپکاوی کول ناروا گرځول شوي دي. د تنقید موخه داده چې د یو چا د سپکاوي پر ځای دې د خیر په نیت د هغه اصلاح وشي، تنقید باید یوازې د الله تعالی د رضا لپاره وي او د چا سپکاوی ترې مقصد نه وي او نه هم په خلکو کې د خپلې زړورتیا او رښتینولی ښکاره کول وي. د عیاض ابن غنم رضي الله عنه د روایت له مخې پیغمبر علیه السلام وویل:"من أراد أن ینصح لذي سلطان بأمر فلایبدله علانیة ولکن لیأخذ بیده فیخلوبه فإن قبل منه فذاک وإلا کان قدأدی الذي علیه." (۱)

که څوک غواړي کوم چارواکي ته نصیحت وکړي؛نو په ښکاره دې نه ورته وایي؛ بلکې له لاسه دې ونیسي بیل دې کړي او ورته ودې وایي، که هغه ومنله خو ښه او کنه نو ده خپل مسؤلیت ادا کړ.



## ۱۲. بیت المال یو امانت دی

د حکومت نظام چلولو د پاره د حکومتي خزانې شتون اړین دی. په اسلامي ریاست کې د بته بیت المال وایي. کله چې د اسلام رښتونی دین پر نړۍ راښکاره شو، هغه مهال په نړۍ کې داسې دود و چې د حکومت خزانه به ټوله د پاچایانو په ولکه کې وه، د دې د وارداتو وسائل به هم د پاچا له خوا ټاکل کېدل، او چې څه ډول او څومره به یې خوښه وه هغومره مالیه به یې پر خلکو اېښودله او خپله خزانه به یې ډکوله، او د خزانې په لگښت کې هم نه یوازې دا چې پاچا خپلواکه و، بلکې هغه یې خپله ذاتي ملکیت گڼله او په خپله عیاشۍ به یې لگوله.

۱) رواه احمد مجمع الزوائد کتاب الخلافة باب النصیحة للائمة وکیفیتها حدیث ۹۱۲۱، ۹۱۲۲



په لومړي ځل اسلام د بیت المال په اړه اصول و ټاکل چې دا د واکمن په لاس کې د ټول ولس امانت دی، او په پوره احتیاط به یې د ولس په گټه مصرفوي. د دې د پاره اسلام لومړی د حاصلاتو یو ترلی نظام و ټاکه چې د بیت المال حاصلات به یوازې له معلومو حاصلاتو لاس ته راوړل کیږي، لکه: زکات، عشر، خراج، جزیه، د غنیت مال، د فيء مال او لقطه (هغه ورک شوی مال چې څښتن یې مالوم نه وي) او داسې نور ، بیا له دې مختلفو لارو د حاصلاتو د لگښت د پاره یې بېل بېل اصول و ټاکل. د بېلگې په ډول د زکات او عشر لگښت بیل دی، او د خراج او مالیې او نورو لگښت بیل دی او فقهاء کرامو د قرآن، حدیثو او راشدینو خلفاوو د تگلارو په رڼا کې د حاصلاتو او لگښتونو حکمونه په مفصله توگه مدون کړي دي. پر دې موضوع باندې دامام ابویوسف رحمه الله او امام یحیی بن آدم رحمه الله "کتاب الخراج" او د امام ابوعبید قاسم بن سلام رحمه الله کتاب په ځانگړي ډول بنسټیز مأخذونه گڼل کیږي.

حضرت عمر رضی الله عنه په یوه وینا کې د بیت المال د مقام په اړه داسې وویل: " إني لا أجد هذا المال یُصلحه إلاّ خلال ثلاث: أن یؤخذ بالحق، ویُعطی في الحق، و یُمنع من الباطل. وإنما أنا ومالکم کوليّ الیتیم، إن استغنیت استعفت، وإن افتقرت أکلت بالمعروف." (۱)

زما په فکر د دې مال د سمې ساتنې د پاره درې خبرې ډېرې اړینې دي: لومړی دا چې په حقه لار دې واخیستل شي، دویم دا چې په حق کارونو کې وکارول شي. دریم دا چې دا دې د باطل څخه و ساتل شي، او زه او ستاسو مال داسې یو لکه د یتیم مال ساتونکی. که ماته د بیت المال اړتیا نه وه؛ نو زه به د دې څخه د لږ شي اخیستلو هم ځان وساتم، او که اړتیا راته پېښه شوه؛ نو دومره به اخلم څومره چې راته ټاکل شوی دی.

۱) کتاب الخراج لأبي یوسف رحمه الله، تقبیل السواد، ص۱۱۷.

د ابن سعد په يوه روايت کې دا هم دي، چې: "إن أيسرت، قضيت"(۱)

که وروسته پر ما پراخي راغله نو (کوم مال چې مې له بیت المال نه اخیستی) بېرته به يې ورکړم.

راشدينو خلفاوو به د بيت المال په امانت کې ډېر احتياط او تقوا کوله، د دوی کیسې په ټول انساني تاريخ کې يوه بې ساري بېلګه ده. په پيل کې چې د خلفاوو څومره معاشونه و د هغو تفصيل عطاء بن يسار داسې بيانوي: "لما استخلف أبوبكر، اصبح غاديا إلى السوق، وعلى رقبته أثواب يتّجر بها، فلقيه عمر بن الخطاب و أبوعبيدة بن الجراح، فقالا له: أين تريد يا خليفة رسول الله؟ قال: السوق. قالا: تصنع ماذا وقد وليت أمر المسلمين؟ قال فمن أين أُطعِم عيالي؟ قالا له: انطلق حتّي نفرض لك شيئا، فانطلق معهما، ففرضوا له كلّ يوم شطر شاة وما كسوه في الرأس والبطن."(۲)

کله چې ابوبکر صديق رضی الله عنه خليفه وټاکل شو؛ نو د لومړۍ ورځې په سهار يې څه رخت پر اوږه کړ او بازار ته روان شو، څو (د خپل پخواني معمول سره سم) خپل تجارت پر مخ بوزي. په لار کې ورسره عمر او ابوعبيده بن جراح مخ شول، ويې پوښتل: اې د رسول الله خليفه! چېرې ځې؟ ده ورته وويل: بازار ته ځم. دواړو ورته وويل: هلته څه کوې، دلته تا ته د مسلمانانو معاملات درسپارل شوي دي؟ ابوبکر ورته وويل: نو بيا زه خپلې کورنۍ ته خواړه له کومه کړم؟ دوی ورته وويل: راځه چې موږ درته د بيت المال نه څه معاش وټاکو؛ نو ابوبکر له دواړو سره روان شو او د هغوی ورته هره ورځ د وزې څلورمه برخه او د سر او بدن پټولو لپاره جامې وټاکلې.

۱) طبقات ابن سعد، ذکر خلافت عمر ج۳ص:۲۵۲.
۲) طبقات ابن سعد، ذکر بيعة أبي بکر رضي الله عنه، ج۳ص۱۲۸.



په همدې توګه به ابوبکر صديق رضی الله عنه له بيت المال نه خپل لګښت تر لاسه کاوه، خو د حسن بصري رحمه الله روايت له مخې ابوبکر صديق رضی الله عنه دا معاش په مات زړه ومنلو او ورسره يې دا هم وويل: "ويح عمر! إني أخاف أن لا يسعني أن آكل من هذا المال شيئا."

پر عمر افسوس! زه وېره لرم چې ما ته به د دې مال نه څه خوړل روا نه وي.

حسن بصري رحمه الله ورپسې داسې وايي: "فأنفق في سنتين وبعض أخرى ثمانية آلاف درهم، فلما حضره الموت قال: قدكنت قلت لعمر: إنّي أخاف أن لا يسعني أن آكل من هذا المال شيئا، فإذا أنا متُّ، خذوا من مالي ثمانية آلاف درهم وردُّوها في بيت المال. فلما أُتي بها عمر، قال: رحمه الله أبابكر، لقد أتعب من بعده تعبا شديدا."(۱)

د دوو کلونو او څه برخه درېيم کال په موده کې (چې د ابوبکر د خلافت ټوله موده وه) هغه اته زره درهم مصرف کړي وو. خو کله چې د نوموړي د مړينې وخت رانژدې شو نو ويې ويل: ما عمر ته ويلي و، زه اندېښمن يم چې ما ته به د دې مال څخه لګښت کول روا نه وي؛ نو کله چې زه مړ شوم زما له مال نه اته زره درهمه راوړئ او بيت المال ته يې حواله کړئ. حضرت عمر رضی الله عنه چې کله دا وصيت واورېد؛ نو ويې ويل: پر ابوبکر دې الله رحم وکړي، له ځانه وروسته خلک يې په لوی مشقت کې واچول.

او حضرت عمر رضي الله عنه چې له بيت المال نه څه اخيستل، هغه پخپله په داسې ټکو بيانوي: "أنا اخبركم بما أستحلّ منه، يحلّ لي حلّتان، حلّة في الشتاء، وحلّة في القيظ، وما أحجّ عليه وأعتمر من الظّهر، وقوتي وقوت أهلي كقوت رجل من قريش ليس بأغناهم ولا بأفقرهم، ثمّ أنا بعدُ رجل من المسلمين يصيبني ما أصابهم."(۲)

۱) کنزالعمال، ج۵ص۵۹۹، ۶۰۰، برقم۱۴۰۲۲
۲) طبقات ابن سعد، ذکر استخلاف عمر رضي الله عنه،ج۳ص۲۵۲.

زه تاسو په دې خبروم چې ځان ته د دې بیت المال نه څومره شی روا بولم؟ زما د پاره دوه جوړه کالي روا دي، یوه جوړه په ګرمۍ او یوه په سخته یخنۍ کې، او یوه سپرلۍ چې حج او عمرې ته پرې ولاړ شم، او زما او زما د کورنۍ خواړه دا سې دي لکه د قریشو د یوې داسې کورنۍ چې نه ډېره شتمنه او نه ډېره نیستمنه وي. له دې پرته زه د مسلمانانو د یو عام تن په څېر یم، څه چې هغه ته رسېږي هغه به ما ته هم رسیږي.

له دې سره سره د مسلمانانو د حال اخېستلو حال به دا و چې کله د "رمادې" په کال وچکالي راغله؛ نو حضرت عمر رضی الله عنه د غوښې او غوړو خوراک پرېښود، او خپل اولاد یې هم ترې منع کړ. ډوډۍ به یې یوازې په تیلو کې پورې کوله، چې له امله یې د اسهال ناروغي پرې ولګېده؛ خو خپل نس ته به یې ویل: ترڅو چې خلک له وچکالۍ نه وي خلاص شوي تر هغو به له دې پرته بل څه و نه وینې.(۱)

د راشدینو خلفاوو د احتیاط چې کومې بېلګې دي هغه رښتیا هم د ړنا یو ثلي دی. خو د دې مانا دا نه ده چې خلیفه یا کوم واکمن به تر دې زیات معاش نشي اخېستلی څومره چې دوی اخېستی. اصلي خبره داده چې هغوی د معاش په نوم پر بیت المال بوج نه راوست، د زیاتي لګښتونو د پاره یې خپل معاشونه زیات نه کړل، که څه هم خپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه رانقل شوي چې د مکې د حاکم حضرت عتاب بن اسید رضی الله عنه معاش یې څلویښت اوقیې سپین زر ټاکلی و.(۲) په کال کې څلویښت اوقیې شپاړس سوه درهمه کیږي. له دې څرګندیږي چې د معاشونو کوم ځانګړی مقدار شریعت نه دی ټاکلی. د حالاتو سره سم په دې کې کمی او زیاتی راتلی شي؛ خو شرط یې دا دی چې په دې پلمه نور بې ځایه او اضافي لګښتونه ونه شي.

---

۱) طبقات ابن سعد ج۳ ص۲۹۲.
۲) السنن الکبری للبیهقي، کتاب قسم الفیء ج۶ ص۳۵۵.



## د مالیې (ټیکس) شرعي حکم

د بیت المال د وارداتو چې کومې ذریعې شریعت ټاکلي دي، لکه: زکات، عشر، خراج، جزیه او د غنیمت او فيء مال او دغه راز ورک شوی مال، له دې پرته پر عوامو مالیه یا ټیکس وضع کولو کې اسلامي شریعت ډېر حساس دی. په عامو حالاتو کې داسې ټیکس لګول شریعت ظلم بللی دی او په دې اړه په حدیثونو کې ډېر وعیدات راغلي دي. خو که پر یوه هیواد کله داسې وخت راشي چې د هیواد او ولس د ټولنیزو اړتیاوو پوره کولو د پاره د بیت المال بودیجه بسنه نه کوي؛ نو دا صورت شریعت یوه استثنا ګڼلې ده، او په ډېر احتیاط یې د اړتیا تر کچې د ټیکس لګولو اجازه ورکړې ده چې په اصطلاح ورته "ضريبة النائبه" وایي. خو دا هر څه هغه مهال چې واکمن له خپل عیاشي او بې ځایه مصرفونو ځان وساتي، په ښه نیت د رښتونې اړتیا سره سم څه ناڅه ټیکس وضع کړي، له دې امله چې پر واکمنو پوره ډاډ کول ګران دی؛ نو په عامه توګه فقهاء دا مسئله په ډاډه زړه نه بیانوي، او دا هم وایي چې باید د دې تشهیر و نه شي تر څو ظالم واکمن له دې څخه ناروا ګټه وانه خلي. علامه ابن عابدین رحمه الله یې داسې بیانوي: قال أبوجعفر البلخي: مایضربه السلطان علی الرعیّة مصلحة لهم یصیر دینا واجبا وحقّا مستحقّا کالخراج، وقال مشایخنا: وکلّ مایضربه الإمام علیه لمصلحة لهم فالجواب هکذا، حتي أجرة الحرّاسین لحفظ الطریق واللّصوق، ونصب الدروب، وأبواب السِّکك، وهذا یُعرف ولا یُعرَّف خوف الفتنة. ثم قال: فعلی هذا مایؤخذ في خوارزم من العامة لإصلاح مسنّاة الجیحون أو الرّبض ونحوه من مصالح العامّة دین واجب لا یجوز الامتناع عنه، ولیس بظلم، ولکن یعلم هذا الجواب للعمل به وکفّ اللسان عن السلطان وسُعاته فیه، لا للتشهیر حتّی لا یتجاسروا في الزیادة علی القدر المستحَقّ. اه

ابو جعفر بلخي رحمه الله وايي چې امير د خپل رعيت د مصلحت د پاره پر هغوی کوم ټيکس وضع کړي "نو دا هم د خراج په څېر يو واجب حق ګرځي او زمونږ مشائخو ويلي دي: امير چې د خپل ولس د مصلحت په خاطر پر هغوی کوم ټيکس ولګوي، د هغې حکم هم همدا سې دی، تر دې چې له غلو د لارې ساتونکو، او د لارو جوړونو او د لويو لارو د دروازو جوړولو أجرت هم همدا حکم دی، او دا خبره بايد له ياده ونه ايستل شي. خو له دې امله چې د فتنې وېره ده؛ نو ځکه بايد دا خبره ډېره مشهوره نه کړل شي. بيا هغه وويل چې د دې اصولو سره سم په "خوارزم" کې د عامو خلکو څخه د جيحون سيند غاړو او فصلونو د ډېوالونو د بيا جوړونې او د بېته ورته نورو مصلحتونو د پاره چې ولس ته کومه حق الزحمه ورکول کيږي، دا يوه ديني فريضه ده چې له دې څخه تېښته ناروا ده، او دا ظلم هم نه دی؛ خو دا مسئله عملي کول او د پاچا او د هغه د کارکونکو په اړه له بدو ويلو د ځان ساتلو په موخه بايد په علم کې وساتل شي، خو دا د شهرت خبره نه ده چې په دې سره چارواکي د زياتو غوښتنو جرأت وکړي.

علامه شامي رحمه الله د دې عبارت رانقل کولو وروسته داسې وايي:"قلت: وينبغي تقييد ذلك لما إذا لم يوجد في بيت المال مايكفي لذلك.

دا مسئله بايد له دې شرط سره وتړل شي چې کله په بيت المال کې دومره څه نه وي چې د دوی اړتياوې پوره کړای شي.(۱)

په يو حديث کې راځي، رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلي دي:"لايدخل الجنة صاحب مكس." (۲)

د مکس اخېستونکی به جنت ته داخل نه شي.

۱) رد المحتار، کتاب الزکوة، قبل باب المصرف ج۳ص۳۳۶، ۳۳۷.
۲) سنن ابوداود، کتاب الخراج، حديث:۹۲۳۷.



د مکس ترجمه په عامه توګه په ماليې سره کيږي. د دې حديث پر بنسټ کله ناکله ويل کيږي چې دا حديث هرډول ماليې ناروا ګرځولي؛ نو په دې کې هغه ماليه هم شامله ده چې مخکې يې علامه ابن عابدين رحمه الله يادونه وکړه، خو په حقيقت کې داسې نه ده، د "مکس" ترجمه محدثينو او فقهاوو په مختلفو طريقو سره کړې ده. امام ابوعبيد قاسم بن سلام رحمه الله د دې په تشريح کې داسې وايي: "كان له أصل في الجاهلية، يفعله ملوک العرب والعجم جميعا فكانت سنتهم أن يأخذوا من التجار عشر اموالهم إذا مرّوا بها عليهم. "(۱)

د دې اصل د جاهليت په زمانه کې و، چې پر دې به ټولو عربو او عجمو عمل کاوه، او په دې اړه د دوی تګلاره داسې وه چې کله به تجاران د دوی پر سېمه تېرېدل؛ نو دوی به له هغو د مال لسمه اخېستله.

او امام طحاوي رحمه الله د دې په څېرنه کې داسې وايي: " إن العشر الذي كان رسول الله صلى الله عليه وسلم رفعه عن المسلمين هو العشر الذي كان يؤخذ في الجاهلية."(۲)

کوم عشر چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ختم کړ، دا هغه عشر (لسمه) و چې د جاهليت په زمانه کې به اخېستل کېده.

څرګنده ده چې د جاهليت په زمانه کې پاچايانو پر خپلو رعيتونو کومې ماليې وربار کړې وې، هغه رښتيا هم ظلم و، نن هم چې حکومتونو له اړتيا پرته کومې ماليې پر خلکو اېښې دي چې علامه ابن عابدين رحمه الله يې مخکې يادونه وکړه، دا هم له شک پرته ظلم دی. خو ابن عابدين رحمه الله چې د "ضريبة النائبه" يادونه وکړه، دا د ولس پر رښتونې ضرورت او مصلحت

[1] کتاب الأموال لأبي عبيد، باب ذكر العاشر وصاحب المكس ج۲ص۲۰۱، تحت الحديث۱۴۶۲
[2] شرح معان الآثار للطحاوي، کتاب الزکواة، باب الزکواة هل يأخذها الإمام اولا ج۲ص۳۱.

مبني ده؛ نو ځکه باید دا د جاهلیت پر "مکس" باندې قیاس نه کړل شي چې په اړه یې سخت وعید راغلی دی.

امام غزالي رحمه الله پر دې مسئله ښه تفصیلي بحث کړی دی، نوموړي لومړی د هغو واکمنو بدي بیان کړې ده چې د خپل پوځ د بې ځایه لګښتونو د پاره یې مالیې وضع کړې دي، له هغه وروسته وایي: "فأما لو قدرنا إماما مطاعا مفتقِراً إلي تكثير الجنود لسدالثغور، وحماية الملك بعد اتساع رقعته وانبساط خطّته، وخلا بيت المال عن المال، وأرهقت حاجات الجند إلي مايكفيهم، وخلت عن مقدار كفايتهم أيديهم، فللإمام أن يوظّف علي الأغنياء مايراه كافيا لهم في الحال إلي أن يظهر مال في بيت المال، ثمّ إليه النظر في توظيف ذلك علي وجوه الغلاّت والثّمار كي لا يؤدّي تخصيص بعض الناس إلي إيغار الصدور، وإيحاش القلوب ويقع ذلك قليلاً من كثير لا يجحف بهم ويحصل به الغرض." (۱)

د دې خلاصه داده چې امام غزالي رحمه الله د داسې ډول مالیو د پاره لاندې شرطونه بیان کړي دي:

۱. داسې امیر به وي چې اطاعت یې واجب وي.

۲. د هیواد د دفاع د پاره ربښتیا هم سخته اړتیا وي.

۳. په بیت المال کې مال نه وي.

۴. دومره مالیه دې کېښودل شي چې یوازې اړتیا رفعه کړي، ترڅو په بیت المال کې پراخي راشي.

(۱) شفاء الغليل، الركن الأول، المسلك الرابع، بحث المصالح ص۱۱۳.



۵. د مالیې په وېش کې دې له انصافه کار واخیستل شي، داسې نه چې پر چا زیاته کېښودل شي او پرهمداسې بل تن دې کم کېښودل شي.

له دې امله چې په اوسنیو واکمنو کې د دې شرطونو سهي پابندي ګرانه برېښي؛ نو ځکه عالمان له داسې ډول مالیې لګولو څخه ګوښه کوي، او که د اړتیا پروخت اجازه ورکوي؛ نو له ډېرو شرطونو سره یې ورکوي. کله چې تاتاریانو پر اسلامي نړۍ یرغل پیل کړ، او پاچا ته د جګړې لګښتونو د پاره د مال اړتیا پېښه شوه؛ نو ده غوښتل له تجارانو پورونه واخلي او څه ناڅه مالیه ورباندې ولګوي. د دې د پاره هغه د عالمانو او قاضیانو غونډه را وبلله. هغه مهال د علماوو مشر شیخ عزالدین بن عبدالسلام رحمه الله و. هغه پاچا ته مخامخ داسې وینا وکړه:

"کله چې دښمن پر اسلامي هیواد برید وکړي؛ نو پر ټولو واجب ده چې له هغوی سره جګړه وکړي، او تاته روا ده له ولس نه دومره مالیه ټوله کړې چې ته کولی شې د هغې په مټ جهاد وکړې؛ خو په دې شرط چې په بیت المال کې څه پاتې نه وي، او خپلې ټولې ګېڼې وپلورې، او د لښکر هر پوځي په سپرلۍ او وسله بسنه وکړي، او هغوی په هیواد کې د عامو وګړو په څېر ژوند وکړي. خو که له پوځ سره تر ټولو غوره سامانونه موجود وي او بیا هم دوی له رعیت نه د مال غوښتنه کوي؛ نو د دې اجازه نشته." (۱)

دغه راز د تاتاریانو د فتنې پروخت د شام پاچا "ظاهربیبرس" د دښمن سره د مقابلې د پاره له خپل ولس نه د مالیې ټولولو اراده وکړه؛ نو علماوو د دې اړتیا پربنسټ اجازه ورکړه؛ خو علامه نووي رحمه الله پاچا ته وویل:

"ماته مالومه ده چې ته د "بندقار" د امیر غلام وې، او ستاسره هیڅ مال نه و، بیا الله تعالی پر تا احسان وکړ او ته یې پاچا کړې، او ما اورېدلي ستاسره

(۱) النجوم الزاهرة ج۷ص۷۲-۷۳، وطبقات الشافعیه للسبکی ج۸ص۲۱۵.

یو زر غلامان دي، او له دوی هر یوه سره د زرو کمربندونه دي، او له تاسره دوه سوه مېنځې دي چې په دوی کې له هرې یوې سره د گېڼو بنډلونه دي. اوس که ته دا هرڅه مصرف کړې، او له غلامانو سره د گېڼو کمربندونو پرځای یوازې د وړی جامې پرېږدي، او له مینځو سره یوازې کالي پرېږدي، گېڼې ورسره نه وي؛ نو زه فتوا درکوم چې ته کولی شې له خپل ولس نه مالیه ټوله کړې "(۱)

لنډه دا چې د ربنتونې اړتیا پر وخت د اړتیا ترکچې د مالیې لگولو اجازه خو ټولو علماوو ورکړې ده، بلکې امام الحرمین علامه جویني رحمه الله چې د نظام الملک طوسي رحمه الله په غوښتنه کوم کتاب لیکلی، او د الغیاثي په نوم یادیږي، په هغه کې نوموړي په ډېر تفصیل سره په یو شمېر برخو کې پر دې موضوع بحث کړی دی، تر دې چې ده ویلي که د بیت المال ځانگړې اړتیا وي بیا دې داسې ډول مالیې په ځانگړي ډول هم لگولی شي.(۲)

خو د دې د جواز سره سره علماوو دا اندېښنه تل په پام کې نیولې ده چې داسې نه دا اجازه بې ځایه وکارول شي. په ننني حکومتونو کې پر ولس باندې ناروا مالیې وضع کول عام دي؛ ولسي خزانې په ډېره بې رحمانه توگه کارول کیږي. د ولسي بودیجې زیاتره برخه د واکمنو پر عیاشیو او چړچو مصرف کیږي. بې شمېره داسې حاصلات شته چې د هغو هیڅ جواز نشته، بې ځایه کانفرانسونه او بې گټې سفرونو لگښتونه د نه منلو تر کچې رسېدلې. د واکمنو د ماڼیو او ودانیو لگښتونه تر کچې اوښتي دي، د تاسف ځای خو لا دادی چې اسلامي هیوادونه د ولسي خزانې په بې دریغه کارولو کې تر نامسلمانه هیوادونو ډېر ور اوښتي دي. که له بودیجې د دې بې ځایه او ناروا لگښتونو مخه و نیول شي ؛ نو پر ولس د څو چنده مالیې لگولو اړتیا به کمه شي.

(۱) حسن المحاضرة للسیوطي رحمه الله ج۲ص۱۰۵.

(۲) غیاث الامم فی تیارات الظلم للجویني رحمه الله ص۲۵۲تر۲۸۲ پورې.



خو د دې حقیقت څخه هم انکار نشي کېدلی چې نوي تمدن ډېر داسې ضروري حاصلات راپېدا کړل چې د عیاشۍ په تعریف کې نه شمېرل کیږي، بلکې په نن وخت کې د یو هیواد د سرلوړې او خپل عزت ساتلو د پاره اړین دي. پخپله امام غزالي رحمه الله پخپل زمانه کې ویلي چې د غنیمت د پنځمې پنځمه او د فیء مالونه د جهاد اړتیاوې نه پوره کوي.(۱)

نن حکومتونه زیاتره داسې خدمتونه برابروي چې له دې مخکې حکومتونو په ذمه داسې کارونه نه ول. د بېلگې په ډول: په هیواد کې د برېښنا او گازو فعالول، دغه راز نور زیات حکومتي اورگانونه چې مخکې هم وو ؛ خو لگښتونه یې دومره زیات نه وو ، نن د هغو لگښتونه لسگونه برابره زیات شوي دي، مثلا د دفاع د پاره د نوې ټیکنالوژۍ لاس ته راوړنه، د لویو لارو پخول، د ترانسپورټ نوي وسائل، زده کړه او روغتیا ، په دوی کې د هر یوه لگښتونه ربښتیا هم ډېر زیات شوي دي، او په زیاترو کې د زکات او عشر مال نه مصرف کیږي. له همدې امله که بې ځایه دودیز مصرفونه ختم هم کړل شي ؛ نو د پورتنیو کارونو د پاره د بیت المال حاصلات له مشهورو ځایونو څخه ټول لگښتونه پوره کول په ښکاره ډېر گران برېښي. ځکه چې د زکات او عشر بېلولو وروسته یوازې خراج، جزیه، د غنیمت او فيء مال پاتې کیږي. د خراج حاصلات د ځمکې پر خراجي کېدلو پورې تړلي دي، او د دارالاسلام په ځمکو کې اصل دادی چې عشري به وي. د جزیې ټاکلی مقدار دومره کم دی چې له هغې نه کومه لویه لاس ته راوړنه ډېره گرانه ده او د فيء او غنیمت مال خو د جهاد له لارې لاس ته راځي چې اوسني حالات تاسو ته ښه معلوم دي، په ننیو جگړو کې خو گټونکي هم د ستر اقتصادي بهران سره مخ کیږي. نو که نن چېرې سهي اسلامي حکومت قائم شي؛ نو زیات نه زیات پخپل لومړني دور کې دوی ته د "ضرایب النوائب" اړتیا پېښیږي.

(۱) شفاء الغلیل ص۱۱۳.

هو ! که رښتیا هم د تقوا او احتیاط څخه کار واخېستل شي، او بې ګټې لګښتونه بند کړل شي نو د دې اندازه به کمه شي، او بیا چې یوازې د الله تعالی د حکمونو پېروي وشي؛ نو د الله له لورې د داسې برکتونو هېله شته چې د حساب کتاب او د شمېر له کچې به وتلی وي. الله تعالی فرمایي: وَ لَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰى اٰمَنُوْا وَ اتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ .(۱)

ژباړه: او که چېرې د دې کلیو خلکو ایمان راوړی وای او تقوا یې کړې وای؛ نو پر دوی به مو د اسمان او ځمکې د برکتونو دروازې پرانېستلې وې.

## ۱۳. د نامسلمانه لږه کیو حقوق

په نننۍ نړۍ کې د اسلامي حکومت پر ضد دا تبلیغات هم په ډېر شور سره بدرګه کیږي چې په اسلامي ریاست کې د نامسلمانه لږکیو حقوق محفوظ نه دي، سره له دې چې دا تبلیغات بېخي بې بنسټه دي. دا سهي ده چې اسلام د الله تعالی سره د شریک نېولو پرته پر هغه د ایمان راوړلو یوه نړیواله بلنه ده؛ خو دا بلنه د دې د پاره ده چې خلک د پوهې په مټ د دلائلو په رڼا کې اسلام و مني. دا کار په زوره ترسره کول قرآن کریم په څرګندو ټکو منع کړی دی. الله تعالی فرمایي: لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى (۲)

ژباړه: په دین منلو کې زور نشته هدایت (سمه لار) له بېلارۍ نه څرګنده شوې دی، نو څوک چې د طاغوت (شیطان او بت) نه منکر شي او په الله ایمان راوړي؛ نو په داسې ټینګې کړۍ کې یې منګولې ولګولې چې شلېدل یې نشته.

[۱] سورة الاعراف:۹۶.
[۲] سورة البقره:۲۵۶.



نو هیڅ نامسلمانه وګړی باید په اسلام منلو مجبوره نه کړل شي، او نه په اسلامي تاریخ کې کوم اسلامي حکومت په دې اړه پر نامسلمانه خلکو زور کړی دی. تر دې چې زموږ په تاریخ کې داسې هم شوي دي چې یو واکمن ځینې خلکو ته ګواښنه وکړه او په زوره یې مسلمانان کړل. د هغه مهال مفتیانو چې دا کار ولید نو فتوا یې ورکړه چې دا خلک په زوره اسلام منلو ته اړ اېستل شوي دي؛ نو دوی حق لري بېرته خپل دین ته ور وګرځي، او په دې اړه قاضي ته تر ثبوت وړاندې کولو وروسته نو موږې پرېکړه وکړه چې دوی حق لري بېرته خپل پخواني دین ته د ورګرځېدو موکه ورکړل شي. له دې پرېکړې سره په هغو کې زیاتره خلک بېرته خپل دین ته ور وګرځېدل.(۱)

کله چې نا مسلمان افراد د اسلامي حکومت سره د وفا لوزنامه وکړي او د ریاست وګړی و شمېرل شي؛ نو د ده مال او ځان او عزت ساتل د اسلامي حکومت په ذمه دي، او د ده ښاري حقوق له مسلمان وګړي سره برابر دي، بلکې په اسلامي ریاست کې چې د نامسلمانه لږه کیو حقوقو کومه ساتنه کیږي په نورو مذهبونو کې د دې ساری څوک نشي موندلی. د اسلام په اصطلا کې د اسلامي دولت نا مسلمانه وګړي ته "معاهد" یا "ذمي" وایي، معاهد ورته ځکه وایي چې له ده سره تړون شوی چې په اسلامي دولت کې به د یو عام وګړي په څېر په امن کې اوسي، ذمي ورته له دې امله وایي چې له ده سره دا ژمنه شوې چې د ځان، مال او عزت خوندي ساتلو ذمه یې د اسلامي حکومت پر غاړه ده. په دې اړه له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ګڼ شمېر روایتونه رانقل شوي دي چې یو څو یې دلته راوړو: " ألا من ظلم معاهدا أو انتقصه أو كلفه فوق طاقته أو أخذ منه شيئا بغير طيب نفس فأنا حجيجه يوم القيامة" (۲)

[۱] البدایه والنهایه، د ۲۸۰ هجري پېښې ج۱۷ص۵۷۸.
[۲] سنن ابي داود، حدیث:۳۰۵۲، وفي اسناده کلام

واورئ ! چا چې له کوم معاهد سره ظلم وکړ، يا يې د هغه سپکاوی وکړ، يا يې د ده له وس نه بهر دی مکلف وګرځاوه، يا يې د ده له خوښې پرته کوم شی ترې واخېست؛ نو د قيامت په ورځ به زه د داسې تن پر خلاف وکالت کوم.

"من قتل معاهدا في غير كنهه حرّم الله عليه الجنة" (١)

چا چې کوم معاهد په ناحقه ووژه، الله تعالى به پرې جنت حرام کړي.

" من قتل مُعاهداً لم يرح رائحة الجنة، وإن ريحها يوجد من مسيرة أربعين عاماً"

چا چې معاهد ووژه هغه به د جنت بوی هم ونه ويني چې د هغه خوشبويي د څلوېښت کلونو په واټن کې هم محسوسيږي.

د نامسلمانه وګړو د حقوقو په اړه تر ټولو غوره سند هغه دی چې حضرت عمر رضی الله عنه د بيت المقدس عيسايانو ته ليکلی و، په هغه کې ويل شوي و: بسم الله الرحمن الرحيم. هذا ما أعطى عبدالله عمر أميرالمؤمنين أهل إيلياء من الأمان، أعطاهم أمانا لأنفسهم، وأموالهم، ولكنائسهم، وصلبانهم سقيمها وبريئها وسائر ملّتها: أنه لا تسكن كنائسهم، ولا تهدم، ولا ينتقص منها ولا من حيّزها ولا من صليبهم ولا من شيء من أموالهم، ولا يُكرهون على دينهم، ولا يضارّ أحدمنهم.(٢)

بسم الله الرحمن الرحيم. دا هغه امن ليک دی چې د الله بنده اميرالمؤمنين عمر د "ايليا" (بيت المقدس) خلکو ته ورکړی دی، نوموړي د دوی د ځان، د دوی د مال، د دوی د کليساوو، د دوی د صليبونو د ساتنې ژمنه ورکړې ده،

١) ابو داؤد، كتاب الجهاد، باب في الوفاء للمعاهد، حديث: ٢٧٦٠.

٢) تاريخ الأمم والملوک للطبري، د ١۵ هجري پېړۍ پېښې، ٣ټوک ٦٠٩ مخ، طبع دارالمعارف مصر.



که په ښه حالت کې وي او که په بد حالت کې، او د دوی ټولو مذهبي خلکو ته هم همدا امن ورکړل شوی دی چې د دوی په کليساوو کې به هيڅوک نه اوسيږي، نه به يې نړوي، نه به له دې څخه څه شی کمول کيږي او نه به يې په سامان کې کمی کيږي، دغه راز د دوی صليب نښې به هم نه کميږي او نه به هم د دوی مالونو کې څه کمی راځي، د دوی په دين کې به پر دوی باندې څوک زور نه کوي او نه به په دوی کې چا ته تکليف رسول کيږي.

حضرت عمر رضی الله عنه به پخپله د نامسلمانه خلکو د حالاتو څارنه کوله. يو ځل د بصرې نه مدينې ته يو هيئت راغی، عمر رضی الله عنه ورڅخه وپوښتل چې هلته خو به له نامسلمانه وګړو سره بد چلند نه کيږي؟ د هيئت غړو ورته وويل: نه! تر کومه چې موږ خبر يو هلته هغوی ته خپل حقوق ورکول کيږي.(١)

يو ځل عمرفاروق رضی الله عنه له يوه يهودي بوډا سره مخ شو، چې سوال يې کاوه، نو له لاسه يې ونيو او کورته يې بوتلو او له خپل کوره يې څه ورکړل، بيا يې د بيت المال څارونکي ته وويل چې داسې وينې؟ په خدای قسم! چې موږ د ده ځواني را په زړه کړو او په بوډا توب کې يې يوازې پرېږدو نو دا به زموږ انصاف نه وي، له دې وروسته يې له داسې بوډاګانو جزيه اخېستل بند کړل او هغه ته يې د بيت المال څخه د وظيفې ورکولو امر وکړ.(٢)

له شهادت نه يو څه مخکې چې حضرت عمر رضی الله عنه له ځان نه وروسته خليفه ته کوم وصيتونه کړي وو، په هغوی کې دا وصيت هم و:

١) تاريخ طبري ج۴ص٢١٨.

٢) كتاب الخراج لابی يوسف، مخ: ٢۵٩، ٢٦٠

"وأوصيه بذمّة الله وذمّة رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يوفى لهم بعهدهم، و أن يُقاتل من ورائهم، ولا يُكلفوا إلا طاقتهم."(١)

او زه لـه ځانه وروسته راتلونکي خليفه ته د (نامسلمانه ذميانو) په اړه وصيت کوم د چا ذمه چې الله او د هغه رسول کړې ده، چې له دوی سره کومه لوزنامه شوې ده هغه دې پوره کړي، او د دوی د ساتنې د پاره دې (که جګړې ته اړتیا پیښه شي) جګړه وکړي، او دوی دې په داسې خبره مکلف نه ګرځول کیږي چې له وسه یې تېره وي.

خالد بن ولید رضی الله عنه وایي: "لا تمش ثلاث خُطیً لتأمر على ثلاثة، ولا ترزأ معاهدا إبرة فما فوقها"(٢)

پر درې ډوله خلکو د واکمنې کولو د پاره درې قدمه هم مه اخله، (یانې هڅه مه کوه) او معاهد ته د یوې ستنې هومره تکلیف هم مه رسوه.

صعصعه رحمه الله وایي: ما له عبدالله بن عباس رضی الله عنه وپوښتل چې کله نا کله موږ د ذمې کافرانو پر کلیو تېریږو او له هغوی څه ناڅه شی اخلو. ابن عباس رضی الله عنه وپوښتل: بې پیسو یې ترې اخلئ؟ موږ ورته ویل: هو ! بې پیسو یې ترې اخلو ، ابن عباس رضی الله عنه وویل: نو تاسو د دې په اړه څه فکر کوئ؟ موږ وویل: موږ وایو چې په دې کې به څه خبره نه وي دا حلال دي. ابن عباس رضی الله عنه وویل: تاسو هغه خبره کوئ لکه اهل کتابو چې کړې وه، چې: "لیس لنا في الأمیین سبیل" اهل کتابو به ویل چې د امي عربانو په حق خوړلو کې پر موږ هیڅ ګناه نشته. ښايي تاسو هم همداسې وایاست.

١) صحیح البخاري، کتاب المناقب، حدیث:٣٧٠٠.
٢) کتاب الأموال لابي عبید ج١ص٣٨، برقم ١٥



د قرآن او حدیثو او د راشدینو خلفاوو د کړنلارو په رڼا کې فقهاوو د نامسلمانانه لږه کیو د حقوقو په اړه ډېر اوږده بحثونه کړي دي، دا یې د مسلمانو په ذمه ګرځولي چې نا مسلمانه لږه کیو د حقوقو ساتنه وکړي. امام محمد بن حسن الشیباني رحمه الله وایي:

"لأن المسلمين حين أعطوهم الذمة فقد التزموا دفع الظلم عنهم، وهم صاروا من أهل دارالإسلام" (١)

کله چې مسلمانانو د دوی د ساتنې ذمه په غاړه واخیسته؛ نو پر ځان یې لازمه کړه چې دوی به له تېرې ساتي او دوی د دارالاسلام وګړي وشمېرل شول.

فقهاوو تردې ویلي چې که دوی ته مخامخ په کافر ویلو د دوی زړه خپه کیږي؛ نو کافر ورته ویل هم ګناه ده. په عالمګیري فتاوا کې دي:

"لوقال ليهوديّ أو مجوسيّ: ياكافر! يأثم إن شقّ عليه" (٢)

که چا یو یهودي یا مجوسي ته "اې کافره !" وویل او دا خبره ده نه خوښوله؛ نو ویونکی یې ګنهګار شو.

آن فقهاوو لا دا هم ویلي چې پر نامسلمانه ذمي وګړو ظلم کول پر مسلمان د ظلم کولو هم زیات بد دی، ځکه چې د دوی ترمرګ وروسته له دوی نه د بخښنې تر لاسه کولو هیڅ امید نشته.(٣)

١) شرح السیر الکبیر للسرخسي ج١ص١٤٠.
٢) فتاوا عالمګیري، ٥ ټوک، ٣٤٨ مخ، کتاب الحظر والاباحة، باب٤.
٣) النوازل للفقیه ابي جعفر اللیث، ٢٠٧ مخ.

## د جزیې حقیقت

دا سهي ده چې په اسلامي حکومتونو کې پر نامسلمانه وګړو مالیه ټاکل شوې ده چې "جزیه" ورته وايي، لوید یځوال لیکوالان وخت ناوخته په دې ټراو دا نیوکه کوي چې په اسلامي هیوادونو کې له نامسلمانه وګړو سره د مور او مېرې چلند کیږي، له دوی چې کومه مالیه اخیستل کیږي هغه له مسلمانانو نه اخیستل کیږي، که څوک د انصاف په سترګه وګوري ؛ نو په دې خبره کې هیڅ د نیوکې ځای نشته ، بلکې په ټولیزه توګه دا خبره د نامسلمانه وګړو په حق کې ده.دا ځکه چې حکومت له مسلمانانو زکات اخلي او دوی له دې کاره وتلي دي. زکات لږترلږه یو نیم سلنه او زیات نه زیات لس سلنه وي چې دا تر جزیې څو برابره زیات دی. له بلې خوا اسلامي حکومت نه یوازې د نامسلمانه وګړو د ځان او مال د ساتنې ذمه په غاړه اخیستې ده، بلکې په دوی کې که څوک نیستمن وي هغوی ته د بیت المال څخه مرستې هم ورکول کیږي، لکه د کتاب الخراج په حواله چې مخکې د حضرت عمر رضی الله عنه کرنلاره بیان شوه چې هغه د بوډا یهودي جزیه و بخښله او هغه ته یې له بیت المال نه ټاکلې مرسته مقرره کړه. په دې اړه یو بل مهم ټکی دادی چې کله پر اسلامي دولت کافران برید وکړي؛ نو د اړتیا پر وخت خلیفه ټولو مسلمانانو ته په جګړه کې د ګډون امر کولی شي، خو پر نامسلمانه وګړو داسې ډول هیڅ پابندي نشته، بلکې پر مسلمانانو فرض دي چې د دوی ساتنه وکړي. د حضرت عمر رضي الله عنه وصیت چې مخکې تېر شو، په هغه کې د و "أن يُقاتل من ورائهم " هم په ښکاره همدا مطلب دی، او علامه آلوسي رحمه الله د علماوو دا قول رانقل کړی دی چې د جزیې مقصد همدا دی چې نامسلمانه وګړي د دارالاسلام له ساتنې وتلي دي.(¹) او صحابه کرامو په همدې باندې

¹) روح المعانی تفسیر سورة توبه، ۲۹آیت، ۱۰ټوک، ۳۸۲ مخ.



عمل کړی دی، او د دې تر ټولو یو څرګند مثال د شام پر حمص ښار باندې د مسلمانانو حکومت و ، هلته ډېر عیسایان او یهودان میشت ول چې له هغوی نه د دوی د ساتنې او نورو په بدله کې جزیه اخیستل کېدله. ابوعبیده بن الجراح رضي الله عنه د هغه ځای والي و ، یوځل ناڅاپه نوموړي خبر تر لاسه کړ چې د روم پاچا هرقل یو ستر لښکر تیار کړی دی غواړي پر مسلمانانو یرغل وکړي. هلته د مسلمانانو شمېر د دوی په پرتله ډېر کم و ، او په مرسته راغوښتلو کې ډېر وخت لګېده؛ نو ابوعبیده رضي الله عنه له مشورې وروسته پرېکړه وکړه چې مسلمانان دې له حمص نه بهر په یوبل ځای کې د مرستې انتظار وکړي. په دې وخت کې په حمص کې یوازې نامسلمانه وګړي پاتې کېدل؛ نو د ابوعبیده رضي الله عنه په حکم د دوی جزیه بېرته ورکړل شوه، او دوی ته یې وویل: قدشُغلنا عن نصرتكم والدفع عنكم ، فأنتم على أمركم"(¹)

موږ ستاسې له مرستې او دفاع نه بې وسه شوو ؛ نو تاسو ته پخپله معامله کې اختیار دی.

د دې اختیار ورکولو مطلب په څرګندو ټکو دا و چې که دوی غواړي کولی شي هرقل ته خپل دروازه ورخلاصه کړي.

او مؤرخ ازدي رحمه الله دا الفاظ په داسې ټکو رانقل کړي دي: "وإنما ردّنا إليكم أموالكم أنّا كرهنا أن نأخذ أموالكم ولا نمنع بلادكم ، ولكنّا نتنحّي إلي بعض الأرض ونبعث إلي إخواننا فيقدموا علينا، ثمّ نلقى عدوّنا فنقاتلهم، فإن أظفرنا الله بهم وفينا لكم بعهدكم إلا أن لا تطلبوا ذلك." (²)

¹) فتوح البلدان للبلاذري، ۱۴۳ مخ.
²) الطريق إلي دمشق لأحمد عادل كمال ص۴۱۰، نقلا عن تاريخ فتوح الشام للأزدي ص۱۵۵.

موږ ستاسو مال له دې امله بېرته درکړ چې موږ دا نه خوښوو ستاسو مال واخلو او ستاسو د ځمکې دفاع و نه کړای شو؛ خو موږ د ځمکې يوې برخې ته ځو او خپلو ورونو ته پيغام ورليږو چې زموږ مرستې ته راشي، بيا موږ د خپل دښمن سره مقابله کوو، که الله تعالی موږ ته پر هغوی باندې فتح راکړه؛ نو موږ به ستاسو سره کړې ژمنه پوره کوو، خو که تاسو خپله داسې و نه غواړئ.

علامه بلاذري رحمه الله وايي چې ذميانو د دوی په ځواب کې وويل:

"لولايتكم وعدلكم أحبّ إلينا ممّا كنّا فيه من الظلم والغشم."

بې شکه چې ستاسو حکومت او ستاسو انصاف موږ ته له هغه ظلم او جبر څخه ډېر خوښ دی چې موږ پکې اوسېدلو.

بيا د دې ټولو خدمتونو د پاره چې له نامسلمانه وګړو څخه کومه جزيه اخېستل کېږي، هغه د مسلمانانو څخه د زکات اخېستلو په پرتله ډېره کمه ده، ځکه چې د جزيې اندازه د کال زيات نه زيات اته څلوېښت درهمه کېږي او له مېرمنو، ماشومانو، نېسمنو څخه هيڅ نه اخېستل کېږي. د دې په پرتله د مسلمانانو څخه اخېستونکی زکات دومره دی چې د دوی ترمنځ هيڅ مقايسه نشي کېدلی.

اوس تاسو پخپله فکر وکړئ چې له يوې خوا نامسلمانه وګړو ته د ټولو مسلمانانو سره برابر حقوق ورکول کېږي، تر دې چې په بيت المال کې هم د دوی برخه شته، له بلې خوا د دوی پر مسلمانانو د فاع کولو ذمې څخه دوی وتلي دي، او بله دا چې له دوی نه کوم شی اخېستل کېږي هغه د مسلمانانو څخه اخېستونکي زکات نه ډېر کم دی، له دې ټولو سره سره بيا هم "جزيه" ظلم ګڼل، دا کوم انصاف دی!؟ پخپله انصاف خوښونکو نامسلمانه مصنفينو د مسلمانانو د دې غوره چلند اعتراف کړی دی. په نوي سياسي



علوموکې د "مونټيسکو" نوم ډېر يادېږي، او د ده په اړه مخکې تېر شو چې نوموړی د نوي ديموکراسۍ له بنسټګرو څخه دی. نوموړی وايي:

It was the excess of the taxes that occasioned the prodigious facility with which the |Mohametans carried on their conquests. Instead of a continual series of extortions devised by the subtle avarice of the Greek emperors, the people were subjected to a simple tribute which was paid and collected with ease. Thus they were far happier in obeying a barbarous nation than a corrupt government in which they suffered every inconvenience of lost liberty. (Montesque: the Spirit of Laws, book۱۳, chapter ۱٦, Great books, v.۳٥, p.۱۰۰ .

دا د نامسلمانه وګړو د ټيکسونو ډېر والی و چې مسلمانو ته يې پخپلو فتوحاتو کې اساني ورکړه. يوناني پاچايانو چې د خپلو دبدبو او چرچو د لوټ ماری کومه لړۍ پيل کړې وه، د دې پرځای مسلمانانو پر دوی باندې يوه مامولې غونډې ډالۍ (جزيه) ايښې وه چې د دې ورکول هم اسانه و، او په ډېره اسانه توګه به يې ورکوله. دغه راز دوی د يو غيرمتمدن قوم په اطاعت کې د هغه ناوړه حکومت نه ډېر خوښ و کوم چې د دوی ازادي سلب کړې وه او دوی يې له ډول ډول ستونزو سره لاس وګريوان کړي وو.

په دې اقتباس کې دې لويديځي ليکوال د خپل عادت سره سم مسلمانانو ته يو غيرمتمدن قوم وو ايه چې دا د دوی په ذهن کې د تعصب او تبليغاتو يوه نغښتل شوې مجبوري ده؛ خو هغه له دې اعترافه په شا نه شو چې اسلامي خلافت پر نامسلمانه وګړو کومه جزيه ټاکلې وه هغه ډېره کمه وه، او د دې په ورکولو کې دوی ته هيڅ ډول ستونزه نه وه، او دا د هغې لوټ مارۍ په پرتله ډېره اسانه وه چې د دوی مخکينو پاچايانو ورباندې ايښې وه، دغه راز دا چې نامسلمان وګړي د مسلمانانو حکومت ته په راتلو ډېر امن او خوښي احساس کړې وه او همدا د مسلمانانو د فتوحاتو يو لوی لامل و.

د دې ترڅنګ لـه ځينـو نـورو روايتونـو دا هـم څرګنـديږي چې دا ماليـه د "جزيې" له نوم پرته په بل نوم هم راټولېدلی شي. حضرت عمر رضی الله عنه غوښتل د بنو تغلب پر نصرانيانو جزيه کېږدي، هغوی ويل موږ جزيه نه ورکوو؛ خو لکه له مسلمانانو چې زکات اخېستل کيږي، زموږ څخه هم په همدې ډول زکات واخلئ. حضرت عمر رضی الله عنه ورته وويل چې زکات خو يوازې پر مسلمانانو فرض دی، هغوی وړانديز وکړ چې زموږ نه يې دوه برابره واخلئ؛ خو د صدقې په نوم يې راڅخه واخلئ، په دې سره عمر رضی الله عنه وويل چې دا خو جزيه ده، ستاسې خوښه ده چې هر ډول نوم وربانـدې ايږدئ.(۱)

دارنګه په يو روايت کې دي چې "جبله بن ايهم غساني" چې د عرب عيسايانو سردار و، حضرت عمر رضی الله عنه له هغه وغوښتل چې جزيه دې ورکړي او په دارالاسلام کې دې د نامسلمانه وګړو په څېر په امن واوسي، هغه ورته وويل زه جزيه نه ورکوم خو صدقه ورکوم. عمر رضی الله عنه په پيل کې د ده خبره و نه منله چې له همدې امله هغه روم ته ولاړ. خو وروسته بيا پخپله پرېکړه پښيمانه و، او عباد بن صامت رضي الله عنه هم حضرت عمر رضي الله عنه ته ويلي و چې که د ده خبره و منې؛ نو هيله ده چې زړه به يې رامات شي او همدا به د ده د اسلام منلو لامل وګرځي. له دې وروسته حضرت عمر رضي الله عنه د عمير بن سعد انصاري رضي الله عنه په مشرۍ روم ته يو لښکر واستاوه، اورته يې وويل چې له جبله بن ايهم سره نرمي وکړي، او هغه

۱) فتح القدير، كتاب الزكواة، ۲ ټوک، ۱۵۲مخ، و كتاب الاموال لابي عبيد، باب اخذ الجزية من عرب اهل الكتاب:۲۸مخ.



ته دې د خپلوي څرګندونه وکړي، په دې اړه بلاذري داسې وايي: "ويدعوه إلي بلاد الإسلام علی أن يؤدّی ماكان بذ من الصدقة ويقيم علي دينه." (۱)

او بيا يې هغه ته بلنه ورکړه چې اسلامي خلافت ته دې راشي او ده چې کومه غوښتنه کړې وه چې صدقه به ورکوي پر هغې دې ودرېږي او پر خپل دين دې و اوسي.

که دا روايتونه سهي وي؛ نو له دې مالومېږي چې دا مراعت يوازې په بنو تغلبو پورې ځانګړې نه و، بلکې د مسلمانانو د مصلحتونو سره سم نورو ته هم ورکول کېدلی شي، که څه هم ځينو فقهاوو دا کار د قياس خلاف بللی او له نورو ذميانو صدقې په نوم جزيه اخېستل يې نا روا ګڼلې ده.(۲) خو په ښکاره دا حکم د صدقې يا زکات په نوم اخېستل کېدلی شي. که له دې پرته بل داسې نوم ورکړل شي چې هغه په مسلمانانو پورې ځانګړی نه وي؛ نو ښايي هغه به په دې حکم کې نه راځي.

والله سبحانه و تعالی اعلم.

دغه راز امام شافعي رحمه الله په ځينو خاصو حالاتو کې له جزيې پرته هم سوله کول روا بللي.(۳)

۱) فتوح البلدان للبلاذري ص۱۴۲، دار الكتب العلميه

۲) كشف الاسرار علی اصول بزدوي، باب معرفة اقسام الاسباب ج۴ص۲۰۱.

۳) كتاب الام للشافعي، كتاب الجهاد والجزية، باب الصغار مع الجزية ج۵ ص۴۱۲.

## ١۴. وزارتونه او ارګانونه

لکه مخکې چې وويل شول، اسلام په دې اړه کوم ټاکلی دريځ نه دی غوره کړی چې د حکومتي چارو پرمخ بېولو د پاره دې وزيران وي او که نه، او که وي نو څومره به وي او څومره اختيارات به لري او دغه راز دې کومې اجرائيه محکمې جوړې کړل شي؟ دا ټولې خبرې يې د هر وخت اهل بصيرت خلکو ته پرې ايښې چې دوی د عوامو او حالاتو له غوښتنو او مصلحتونو سره سم څه ډول تګلاره خپلولی شي خپله دې کړي.

خو د امام يا خليفه د مرستې د پاره په هر پېر کې په عملي توګه وزيران وو، پخپله موسی عليه السلام له الله تعالی غوښتي وو چې: وَ اجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ۰۰۲۹ هٰرُوْنَ اَخِيْ ۰۰۳۰

ژباړه: او زما له کورنۍ راته يو مرستيال (وزير) وټاکې، چې هغه زما ورور هارون دی.

رسول الله صلی الله عليه وسلم په ګڼ شمېر روايتونو کې صحابه خپل وزيران ياد کړي دي. عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وايي:

"فاختار له أصحابا فجعلهم أنصار دينه ووزراء نبيّه." (١)

الله تعالی خپل استازي ته صحابه غوره کړل، او رسول الله صلی الله عليه وسلم دوی خپل د دين مرسته کونکي او وزيران وبلل.

خو د دې مطلب دا نه دی چې صحابه کرامو ته يې په ځانګړي ډول د وزارتونو چوکۍ ورکړې وي او هغوی يې وزيران ټاکلي وو، بلکې صحابه کرام د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مرستيالانو په توګه د هغه غير رسمي

(١) شرح السنة للبغوي، طبع بيروت ج١ ص٢١۴.



وزيران و. په دې مانا د رسول الله صلی الله عليه وسلم حديث دی، چې: "فأمّا وزيراي من أهل الأرض فأبوبكر وعمر." (١)

پر ځمکه او سېدونکو کې زما وزيران ابوبکر او عمر دي.

د راشدينو خلفاوو په پېر کې دا نه دي ثابت چې څوک په رسمي توګه د وزير په توګه ټاکل شوی وي؛ خو دومره و چې مختلفو صحابه وو به له راشدينو خلفاوو سره مرسته کوله، او چا ته به چې کومه دنده و سپارل شوه هغه به يې ترسره کوله او هغه ته به يې وزير ويل، کله چې حضرت علي رضی الله عنه ته وويل شول چې د خلافت مسؤليت دې په غاړه واخلي، هغه وويل: "أن أكون وزيرا خير من أن أكون أميرا." (٢)

زما د پاره وزير پاتې کېدل زما تر امير کېدلو غوره دي.

خو په وروستيو خلافتونو کې به له خليفه سره په رسمي توګه وزير ټاکل کېدلو، او کومو خلکو چې پر اسلامي سياست کتابونه ليکلي دي، هغوی د وزيرانو دوه ډولونه بيان کړي دي، يو د تفويض وزير او بل د تنفيذ وزير.

(١) جامع الترمذي، كتاب المناقب، حديث ٣٦٨٠.

(٢) تاريخ الطبري ج٢ ص١٩٢.

## د تفويض او تنفيذ وزيران

د "تفويض وزير" څخه مراد هغه تن و چې خليفه به خپل اختيارات ورته سپارل، او هغه به د دې اختياراتو په کارولو سره په پرېکړو کې خپلواک و، او په ورسپارل شويو معاملاتو کې به د خليفه نه په منظورۍ اخېستلو پابند نه و.

او د "تنفيذ وزير" هغه وزير و چې پخپله به يې کوم اختيار نه درلود، خو دی به د خليفه د احکامو په عملي نافذولو کې وزير ټاکل شوی و. دا دواړه ډوله وزيران د شرعي سياست عالمانو لکه: علامه ماوردي او ابويعلي او نورو بيان کړي دي. د اسلام په تاريخ کې د دواړه ډوله وزيرانو مثالونه موجود دي، او د علامه ابن خلدون رحمه الله په اند د تفويض وزير په حقيقت کې پر خليفه باندې د اغېز اچولو د پاره ټاکل کېدلو، مانا دا چې چا به د پاچا پر زړه او فکر باندې دومره اغېز لرلی شو چې پاچا د هغه پر رايه او پرېکړه باندې بشپړ باور ولري، هغه به د "تفويض وزير" ټاکل کېدی، او د نومړي ځای به تقريبا داسې و لکه د ننني لومړي وزير، چې دی به په عملي توګه پر حکومتي چارو مسلط او واکمن و. که څه هم چې د خليفه قانوني حيثيت به پر خپل ځای و، چې نومړي کولی شول د ده پرېکړه ناچله اعلان کړي او پرځای يې بل حکم نافذ کړي.

خو د وزارتونو دا ډولونه د قرآن او سنت پر بنسټ نه دي ولاړ، بلکې دا د حالاتو زېږنده دي؛ نو په شرعي توګه دا اړينه نه ده چې دوه ډوله وزيران دې وټاکل شي. اصلي خبره دا ده چې خليفه حق لري خپل د اختياراتو يو څه برخه يا ټول اختيارات يو بل تن ته وسپاري. هغه خپل دا حق کارولی هم شي او که نه غواړي نه دي کاروي. نو د وزيرانو ټاکنې يوه داسې اجرائيه مسئله ده چې په دې تړاو کوم څرګند حکم نه دی ورکړل شوی. ترکومه چې د اسلامي حکومتي



چارو پرمخ بېولو بنسټيز اصول محفوظ دي، خليفه کولی شي د اجرائيه چارو د اسانتيا د پاره کومه تګلاره چې غوره بولي هغه دې وکاروي.

په ننني حالاتو کې په عامه توګه دا مناسبه ګڼل کېږي، چې د بېلابېلو وزارتونو مختلفو وزيرانو او د هغوی اختيارات او حدود د دستور يا قانون له لارې وټاکل شي.

د نورو منصبونو معامله هم همداسې ده چې د دوی نوعيت او يا شمېر شرعا نه دی ټاکل شوی، په اسلامي تاريخ کې ډېرې چوکۍ د اړتيا له مخې منځ ته راغلي دي او نن هم د اړتيا او مصلحت له مخې دا کار ترسره کېدلی شي.

### ۱۴. سېمه ييزه خپلواکي

په اوسنيو حکومتونو کې يوه مهمه مسئله سيمه ييزه خپلواکي يا صوبايي خودمختاري (**Provincial Autonomy**) ده، چې تل پرې ناندريځي او شخړې رامنځ ته کېږي. په دې مسئله باندې هم څه ناڅه خبرې کول اړيني دي. دا خبره مخکې ياده شوه چې اسلام په دې تړاو کوم متعين حکم نه دی کړی چې په دولت کې حکومتي بڼه بايد يو جانبه (**Unilateral**) وي او که وفاقي؟ نو د هر پېر د مصلحتونو سره سم چې کومه تګلاره غوره کړل شي، اسلامي احکام د هغې مخ ته نه خنډ کېږي. او بله دا لکه موږ چې يې مخکې يادونه وکړه، د ملت پالنې پر بنسټ حکومت جوړولو تصور په اسلام کې نشته. خو ترکومه ځايه چې په سيمه ييزه خپلواکي پورې تړاو لري، هغه د يو څو شرطونو سره سم د اسلامي لارښوونو سره ټکر نه لري.

حکومتي بڼه که وحداني وي او که وفاقي وي، د اجرائيه اسانتياوو د پاره د بېلابېلو سيمو وحداني اجرائيه تقريبا نا شونې دي. پخپله د رسول

الله صلى الله عليه وسلم په مبارک پېر کې يو جانبه اجرائيه نظام موجود و کله چې مکه مکرمه فتح شوه؛ نو رسول الله صلي الله عليه وسلم عتاب بن اسيد رضی الله عنه د هغه ځای والي يا د اجرائيه چارو مشر وټاکی. دغه راز کله چې "بحرين" فتح شو؛ نو علاء بن حضرمي رضی الله عنه يې د هغه ځای والي وټاکی. کله چې يمن د اسلامي حکومت تر ولکې لاندې راغی؛ نو له دې امله چې د يمن سېمه ډېره ستره وه؛ نو هغه يې پر دوو يو يزو اجرائيو باندې ووېشلو چې هر يوه ته يې "مخلاف" (ولايت) ويل کېده. امام بخاري رحمه الله په دې اړه د ابودرداء رضی الله عنه روايت رانقل کړی دی، هغه وايي: "بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم أباموسى ومعاذا إلي اليمن. قال: وبعث كل واحد منهما على مخلاف. قال: وكان اليمن مخلافان." (۱)

رسول الله صلى الله عليه وسلم ابوموسى اشعري او معاذبن جبل رضی الله عنهما يمن ته ولېږدول، دوی دواړه يې يوه يوه مخلاف ته وليږل چې يمن دوه مخلافه و.

حافظ ابن حجر رحمه الله وايي: په يمن کې مخلاف په هغه معنا کارول کيږي لکه په نورو سېمو کې چې د اقليم (ولايت) د پاره کارول کيږي.(۲)

علامه بدرالدين عيني رحمه الله ليکي چې د يمن يو مخلاف د هغه پر لوړه برخه مشتمله وه چې په هغې کې د "نجود" سېمه راځي، او پر دې سېمه معاذبن جبل رضی الله عنه والي ټاکل شوی و، او بله ښکته برخه ده چې په هغې کې "تهائم" او نوري سېمي راځي او پر دې باندې ابوموسي اشعري رضی الله عنه والي ټاکل شوی و.(۳)

(۱) صحيح البخاري، کتاب المغازي، باب۶۱ حديث۳۴۳۱.
(۲) هدی الساري مقدمه فتح الباري ج۱ص۱۸۶ الفصل الخامس، فصل م خ.
(۳) عمدة القاري، کتاب الاحکام، باب۲۲.



د معاذبن جبل رضی الله عنه د واکمنۍ پلازمېنه د "عدن" "جند" سيمه وه چې هلته د نومو ړي په لاس جوړ شوی جومات اوس هم شته.(۱)

دغه راز د راشدينو خلفاوو په وخت کې چې کله د اسلامي خلافت حدود د هغه وخت تقريبا نيمې نړۍ ته وغځېدل؛ نو دغه ډول اجرائيه يو جانبه نظامونه يې جوړ کړل چې په هغو کې د هرې سيمې يو ځانګړی حاکم و.

اوس څرګنده ده چې د دې اجرائيه يو جانبه ټولګيو څه ناڅه اختيارات منل ضروري دي چې په کومو معاملاتو کې هغوی له خپلې رايې کار واخلي، او په کومو معاملاتو کې د مرکزي حکومت يا خلافت څخه منظوري ترلاسه کړي.په دې لړ کې خو يوه خبره ډېره څرګنده ده چې اسلامي حکومت که هغه مرکزي وي او که سېمه ييز وي په هر حال کې به د قرآن او سنت د احکامو تابع وي، او دا پابندي به پر دواړو يو ډول نافذيږي.نو هيڅ سېمه ييز حکومت ته دا اختيار نه ورکول کيږي چې د قرآن او سنت په خلاف کوم قانون جوړ کړي يا په دې اړه کوم اقدام وکړي. په دې کې دا خبره هم داخله ده چې کوم سېمه ييز حکومت داسې يو قانون نشي جوړولی، نه هم داسې کوم اقدام کولی شي چې د انصاف له عامو اصولو سره ټکر ولري. دغه راز په تعليمي نظام کې لکه څرنګه چې اسلامي لارښوونې به مرکزي حکومت په پام کې نيسي دغه راز سېمه ييزو ټولګيو ته هم اړينه ده چې له دې لارښوونو سره سم چارې پرمخ بوزي. له دې سره سره ځينې داسې چارې دي چې په هغو کې د ټول هيواد پاليسي سره يو کيږي، د يو والي د پاره اړينه ده چې د دې ټاکنې د ټولو سېمه ييزو ټولګيو سره له مشورې وروسته ترسره شي، لکه نړيوالي اړيکي، خارجه چارې، دفاعي چارې او نړيوال تجارت او نور.

خو دې بنسټيزو اصولو ته په پام سره سېمه ييزو ټولګيو ته څه ناڅه خپلواکي ورکړل شي.

(۱) فتح الباري، کتاب المغازي ج۸ص۶۱.

په دې اړه د اسلامي سیاست عالمانو د سېمه ییزه واکمنو په یادولو سره د دوی دوه ډولونه بیان کړي دي، یو ډول هغه دی چې محدود اختیارات ورکړل شي، او دې ته د "خاص تفویض" نوم ورکول کیږي، او دوهم ډول هغه دی چې پراخه اختیارات ورکول کیږي او دېته "عام تفویض" وایي، او په دې اختیاراتو کې د مرکزي امیر په نیابت کې د ده ټول اختیارات نقل کیږي.[1]
بلکې په ځانګړي توګه د عباسي خلافت پر مهال سېمه ییزې خپلواکي تصور ډېر وسعت وموند، او د مختلفو ولایتونو سیمه ییزو واکمنانو د وخت په تېرېدو د خپلې سېمې تر حده تر خلیفه زیات واک ورکړل شو. اسلامي سیاستوالو داسې واکمنان د امیر په نامه یاد کړي دي. بلکې د یو تاریخي حقیقت په توګه یې دا امیران په دوه ډوله وېشلي دي: یوه ته د "امیر استکفاء" نوم ورکړل شوی و او بل ته د "امیر استیلاء" نوم ورکړل شوی و. د امیر استکفاء نه مراد د یوې سېمې یا ولایت هغه امیر یا والي و چې په ځانګړې توګه خپل خلیفه ټاکلی وي او ده ته یې د جهاد کولو په شمول ټول اختیارات ورسپارلي وي، او امیر استیلاء هغه امیر ته وایي چې هغه خلیفه امیر یا والي نه وي ټاکلی بلکې په خپل زور یې د یوې سېمې مشري تر لاسه کړې وي، بیا دی غواړي په رسمي ډول د اسلامی خلافت سره تړاو له پاره له خلیفه سره ځان یو کړي. له دې امله چې دا امیر هم مسلمان و او پخپله سیمه کې یې شرعي احکام نافذ کړي و د دې د پاره چې په ټولیزه توګه د مسلمانانو یووالی وساتل شي خلیفه دی د اسلامي خلافت سره وتاړه. بلکې وخت ناوخته خو لا داسې هم شوي دي چې په داسې شخص کې د امیر ټاکلي صفتونه نه وي خو د مسلمانانو د سیاسي یو والي په خاطر به یو ډول نه یو ډول ګټه رسوي؛ نو له همدې امله دی د خلافت سره تړل شوی وي، کله ناکله داسې هم شوي دي چې خلیفه پخپله خوښه یو تن د امیر استلاء نائب وټاکي او

[1] الاحکام السلطانیه للماوردي ص۴۰ وتحریر الأحکام لابن جماعة ص۲۰ طبع قطر.



تر خپلې وسې د ده د سهي پر لاره کولو کوښښ کوي. په پیل کې داسې ډول امارتونو د یوې استثنا ځای درلود، خو وروسته بیا د دوی شمېر زیات شو. علامه ماوردي رحمه الله د خپلې زمانې د تفویضي امیرانو په اړه وایي:
"إذافوّض الخلیفة تدبیرالأقالیم إلي ولاتها' ووکّل النظر فیها إلي المستولین علیها' کالّذي علیه أهل زماننا."(۱)

کله چې خلیفه د ولایتونو چارې والیانو ته وسپاري، او د دوی څارنه هغو خلکو ته وسپاري چې پر دوی غالب وي لکه زموږ په زمانه کې چې دي.

چې په دې کې د بوهیانو، غزنویانو او سلجوقیانو په څېر کورنۍ هم شاملې دي، دا رښتیا هم چې د یوې مجبورۍ پر اساس شوي دي او د دې هیڅ ډول مثالونه څوک نشي ورکولی. خو د استکفاء امیرانو ته جهاد په څېر حکومونو اجازه ورکول د دې دلیل دی چې د اسلام سیاسي اصول د سېمه ییزې خپلواکۍ په اړه ډېر روښانه دي، او د حالاتو او مصلحتونو له غوښتنو سره سم ولایتونو ته زیات اختیارات هم ورکول کېدل.

زموږ په هیواد کې یوه غوښتنه دا هم وه چې د ولایتي خپلواکۍ غوښتنه ملت پالنې سره ګډه وډه شوې ده چې د دې نتیجه له یو خوا دا راووتله چې چېرې د ډېرو ولایتونو د خپلواکۍ غوښتنه شوې ده، نو هغه کله ناکله غداري ګڼل شوې ده سره له دې چې یوازې ولایتي خپلواکي غوښتنه غداري ګرځولو هیڅ معنا نشته. په ډېرو هیوادونو کې تر دې حده سېمه ییزه خپلواکي ورکړل شوې ده چې کولی شي خپله کرنسي بېله چاپ کړي. لکه په لویه برتانیا کې چې یو جانبه حکومتي بنه دود ده؛ خو د سکاټلینډ کرنسي بېله ده خو له دې سره سره ټول یو هیواد دی. دا رنګه د ولایتي خپلواکي یو اړخ دا دی چې د

[1] الأحکام السلطانیه ص۳۸. په دې موضوع باندې د مفصل بحث د پاره د ضیاءالدین الریسي کتاب "النظریات الاسلامیه السیاسیة" ۲۷۸، مخ وګورئ. مطبوع قاهره۱۹۷۲ز.

ولایت د وسائلو کارولو د پاره دې هغه ولایت ته اختیار ورکړل شي. خو ډېر وفاقي حکومتونه دي چې له دې څخه خپله ګټه اخلي او له کومې سیمې چې هغه واردات لاس ته راځي هغه د دې د ګټې نه بې برخې وي. د بېلګې په ډول په پاکستان کې ګاز د بلوچستان څخه راوځي او له هغه ځایه کراچي، لاهور ، اسلام اباد او ټول هېواد ته ورغځېږي؛ خو پخپله د بلوچستان خلک له ډېرې مودې د دې خدای ورکړې زېرمې څخه بې برخې دي. تر دې چې د کوټې ښار ته هم له ډېره وخته وروسته ګاز ور ورسید. د داسې ډول بې انصافي غبرګون داسې شو چې کوم خلک ولایتي خپلواکي غواړي هغوی دا غوښتنه د ملت پالنې په طرف بوتله او هغه یې د ازادۍ تحریک وګرځولو.

لنډه دا چې په پورتنیو حدودو ساتلو سره که سیمه ییزو واکمنیو ته په اجرائیه چارو کې زیاته خپلواکي ورکړل شي؛ نو په دې کې د شریعت له پلوه نه یوازې دا چې کوم بندیز نشته بلکې دا به د سیمه ییزو تعصباتو د لرې کولو د پاره د یوې ښې او غوره تولنې په جوړولو کې پوره مرسته وکړي او اسانتیاوې به رامنځته کړي.



# پنځم څپرکی

## دفاع او بهرنۍ چارې

د دې څپرکې موضوع داده چې په اسلامي ریاست کې له نورو هیوادونو سره څه ډول اړېکي باید وساتل شي؟ د دې مسئلې د پېژندلو له پاره لومړی مناسبه ده چې په اسلامي فقه کې د نړۍ هیوادونو له پاره دوه ګوني کارول شوي اصطلاحات "دارالاسلام" او "دارالحرب" یا "دارالکفر"، وپېژندل شي.

### دارالاسلام او دارالحرب

له "دارالاسلام" نه مراد هغه هیواد دی چې د مسلمانانو تر ولکې لاندې وي او پر هغه باندې د دوی په داسې ډول ولکه وي چې هلته اسلامي احکام جاري او نافذ وي. علامه سرخسي رحمه الله د دارالاسلام تعریف داسې کوي:

"فإن دارالاسلام اسم للموضوع الذي يكون تحت يدالمسلمين" (۱)

دارالاسلام هغه ځای ته وایي چې د مسلمانانو په ولکه کې وي.

او په جامع الرموز کې د "الکافي" په حواله د دې تعریف داسې شوی:

"دارالاسلام ما يجرى فيه حكم إمام المسلمين و كانو فيه آمنين." (۲)

دا رالاسلام داسې ځای ته وایي چې په هغه کې د مسلمانانو د امام (واکمن) حکم پلی کیږي او مسلمانان پکې په امن ژوند کوي.

که څه هم د مسلمانانو د ولکې نتیجه باید دا وي چې په هغه هیواد کې ټولې چارې د اسلامي شریعت سره سم پر مخ یو وړل شي؛ خو که د مسلمان

---

[1] ) شرح السیرالکبیر باب، ۴ج ۱۲۷ باب ۸۲ مخ
[2] ) جامع الرموز: ۴ټوک: ۵۵۲ مخ

پاچا د غفلت له امله په هیواد کې د اسلام بشپړ نظام پلي نه شي او واک د مسلمانانو په لاس کې وي؛ نو دې ته هم دارالاسلام ویل کیږي. د جامع الرموز له مخکېني عبارت نه معلومیږي چې دارالاسلام به داسې هېواد وي چې په هغه کې د مسلمانانو د امام احکام نافذ وي، له دې نه ځینې عالمانو ته دا شک پیدا کیږي چې د لته د حکم نه مراد د شریعت ټول احکام دي؛ که د مسلمانانو تر ولکې لاندې په یو هیواد کې د شریعت ټول احکام نافذ نه وي؛ نو هغه ته "دارالاسلام" نه ویل کیږي؛ خو دا خبره سهي نه ده.

په حقیقت کې د یو هیواد دارالاسلام بللو کې اصل خبره دا ده چې پر هغه ځمکه د مسلمانانو بشپړه ولکه وي او دوی د اسلامي احکامو د نافذولو پوره واک لري؛ نو بیا که دوی د خپل غفلت یا نېمگړتیاوو له امله د اسلام ټول احکام نافذ نه کړي؛ نو دا د هغوی له پاره ستره گناه ده، او پر امیر واجب دي چې د شریعت ټول احکام نافذ کړي؛ خو د نوموړي د دې مجرمانه غفلت له امله هېواد د دارالاسلام له تعریف څخه نه وځي.

په پورتني عبارت کې تاسو ولوستل، علامه سرخسي رحمه الله د دارالاسلام په تعریف کې یوازې دا خبره بیان کړه چې دارالاسلام هغې ځمکې ته وايي چې د مسلمانانو په ولکه کې وي، او په جامع الرموز کې یې بیا د دې خبرې تعبیر داسې وکړ: دارالاسلام هغې ځمکې ته وايي چې د مسلمانانو تر ولکې لاندې وي او د مسلمان پاچا حکم پرې نافذ وي، که هغه له شریعت سره سم وي او که نه وي. له دې امله چې هغه مهال د دې خبرې تصور کول ډېر گران و چې په یو هیواد کې د مسلمانانو له ولکې سره سره بیا هم پر هغو خلکو د اسلام احکام نافذ نه کړل شي، له همدې امله په هغه وخت کې دا مسئله په څرگند ډول نه ده تشریح شوې چې د مسلمانانو تر ولکې لاندې ځمکه باندې شریعت په بشپړ ډول نافذ نه وي؛ نو هغې ته به دارالاسلام ویل کیږي او که یه، بلکې یوازې پر دې یې بسنه کړې چې دارالاسلام هغه دی چې د



مسلمانانو په ولکه کې وي او اسلامي شریعت پکې جاري وي، خو وروسته چې په اسلامي هیوادونو کې د مسلمانانو د غفلت له امله داسې حالت راغی چې یو هیواد به د مسلمانانو په ولکه کې هم وي او په هغه کې به شرعي احکام په بشپړ ډول نافذ نه وي؛ نو وروستنیو فقهاوو د دې حکم څرگندونه هم وکړه. په همدې اړه علامه ابن عابدین رحمه الله وايي: "وبهذا ظهر أن مافي الشام من جبل تيم الله المسمي بجبل الدروز و بعض البلاد التابعة له كلّها دار إسلام، لأنها وإن كانت لها حكّام دروز أو نصارى، ولهم قضاة على دينهم، وبعضهم يعلنون بشتم الإسلام والمسلمين، ولكنهم تحت حكم ولاة أمورنا، وبلاد الإسلام محيطة ببلادهم من كل جانب، وإذا أراد ولي الأمر تنفيذ أحكامنا فيهم نفّذها."(١)

له دې څخه دا خبره څرگندیږي چې په شام کې د "جبل تیم الله" سیمه چې "جبل الدروز" هم ورته وايي او هغه ته ورڅېرمه ښارونه ټول دارالاسلام دی، ځکه چې که څه هم په دې سیمو کې عسایي او دروزي چارواکي موجود دي، او د هغوی قاضي هم هلته شته چې د خپل دین سره سم پرېکړې کوي او په دوی کې ځینې داسې خلک هم شته چې په ښکاره په اسلام او مسلمانانو پسې بد رد وايي، خو دوی زموږ د چارواکو تر واک لاندې دي، او له هرې خوا پرې اسلامي هیوادونه راگرځېدلي دي او که د مسلمانانو امیر وغواړي پر دوی خپل احکام نافذ کړي؛ نو نافذولای یې شي."

له دې دا خبره په ډاگه شوه چې د یو هیوا د په دارالاسلام کېدو کې اصل اهمیت په دې خبره کې دی چې پر دوی باندې د مسلمانانو بشپړه ولکه شته

١) ردالمحتار، کتاب الجهاد، فصل فی استئمان الکافر، قبیل باب العشر والخراج. ۲۲۰/۲ طبع جدید

او که یه؟ که بشپړه ولکه وي؛ نو دې هیواد ته دارالاسلام ویل کیږي او د دارالاسلام احکام به پرې جاري کیږي که څه هم د مسلمانو چارواکو د سستي له امله هلته بشپړ شریعت نه وي نافذ شوی.

دغه راز یو هیواد دارالحرب یا دار الکفر شمېرلو کې هم بنسټیزه خبره داده چې د کافرانو په ولکه کې وي او هلته د دوی حکم پلي کیږي. جامع الرموز د الکافي په حواله د دارالحرب تعریف داسې کوي: "ودار ا لحرب مایجري فیه أمر رئیس الکافرین.

دارالحرب هغې ځمکې ته وایي چې د کافرانو د مشر حکم پرې پلي کیږي.

تر دې چې که پر یوه سیمه د کافرانو بشپړه ولکه وي او هغوی د خپل حکم سره سم مسلمانانو ته د خپلو شعائرو او محکمو جوړولو اجازه ورکړي؛ نو بیا هم هغه دارالحرب شمېرل کیږي، یوازې د دې اجازې له امله دارالاسلام نه شي ګرځېدلای، ځکه چې بشپړ واک د کافرانو په لاس کې دی او هغوی چې هر وخت وغواړي دا اجازه بېرته اخیستلای شي، د همدې پر بنسټ شاه عبدالعزیز محدث دهلوي رحمه الله او مولانا رشید احمد ګنګوهي صیب په هندوستان کې د انګریزانو حکومت دارالحرب بللی و، سره له دې چې هلته مسلمانانو ته د جمعې او اخترونو او د نورو شعائرو لمانځلو اجازه وه. (۱)

(۱) په دې اړه د ګنګوهي صیب رساله (کیا هندوستان دارالحرب هې؟) وګوری.



## د دارالکفر دوه ډولونه

دېته مو پام وي چې زیاتره فقهاء "دارالکفر" د "دار الحرب" په نامه یادوي، چې له دې امله وخت نا وخته ځیني خلک تېر وځي، پر کوم هیواد چې کافران واکمن وي او هلته د هغوی احکام پلي کیږي هغه له دارالاسلام سره هر وخت د جګړې په حالت کې ګڼي، ځکه چې د "حرب" معنا جګړه ده؛ خو حقیقت داسې دی چې فقهاء زیاتره وخت د "دارالحرب" کلمه د "دارالکفر" پر ځای هم کاروي او د دې اطلاق پر هغه هیواد هم کیږي چې د "دارالاسلام" سره د جګړې په حالت کې نه وي، له هغوی سره د مسلمانانو سوله وي او یا هلته مسلمانان په امن کې ژوند تېروي، په اصل کې "دارالکفر" په دوه ډوله دی، یو هغه "دارالکفر" چې له هغوی سره د مسلمانانو هیڅ سوله نه وي او نه هم هلته مسلمانان په امن کې د خپلو شعائرو جوړولو او لمانځنو اجازه لري، داسې "دارالکفر" په خپله سهي معنا "دارالحرب" باندې کیږي، هلته چې کوم مسلمانان ژوند کوي پر هغو واجب دي چې له هغه ځایه داسې سیمي ته هجرت وکړي چې هلته "دارالاسلام" وي او یا داسې هیواد وي چې هلته لږ ترلږه په امن کې پر خپل دیني حکمونو عمل کولای شي.

او د دارالکفر دوهم ډول داسې دی چې پر یوه سیمه د کافرانو واکمني وي او هلته مسلمانان په خپلو دیني شعائرو جوړولو او لمانځنو کې ازاد وي او د چارواکو له خوا وربانـدې پخپلو دیني حکمونو عملي کولو کې هیڅ ډول بندیز نه وي، داسې ځای ته "دارالامن" ویل کیږي، د اسلام په لومړیو کې حبشه د دې بېلګه ده، په مکه مکرمه کې به کافرانو مسلمانان نه پرېښودل چې پر خپل دین عمل وکړي او ډول ډول تکلیفونه به یې ورکول، له همدې امله ځینو صحابه وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لارښوونه حبشې ته هجرت وکړ، سره له دې چې هغه مهال په حبشه کې د نامسلمانو واکمني وه له

همدې کبله هغه دار الکفر و، خو له دې امله چې هلته مسلمانانو پر خپل دین باندې د عمل کولو اجازه درلوده؛ نو له دې سره سره هغه دارالامن هم و. په دې اړه شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله وايي:

"وهجرت در اسلام بر دو وجه شده: اول انتقال از دار خوف به دار امان، چنانکه بعض صحابه در ابتدائ اسلام به حبشه هجرت کردند، تا از خوف شر و فساد مشرکان مکه در امان باشند، وه چنانکه بعض از مکه به مدینه رفتند پیش از هجرت رسول الله صلی الله علیه وسلم و استقرار امر اسلام.

وثاني انتقال از دار کفر به دار اسلام، و این بعد از تمکن او استقرار آنحضرت صلی الله علیه وسلم بود در مدینه."(۱)

ژباړه: او په اسلام کې هجرت په دوه ډوله دی: لومړی له دار الخوف څخه دارالامن ته هجرت کول، لکه ځینو صحابه وو چې د اسلام په لومړیو کې حبشې ته هجرت کړی و، دوی دا هجرت د مکې مشرکانو له وېرې، شر او فساد څخه په امن کېدو له امله کړی و، دغه راز ځینو نورو صحابه وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم له هجرت او د اسلام له ځای پر ځای کېدو وړاندې مدینې ته هجرت کړی و.

دوهم: له دار الکفر څخه دارالاسلام ته کډه کول، او دا کار د اسلام له استقرار او مدینې ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر هجرت وروسته شوی دی.

دغه راز حضرت شاه صاحب هم دارالکفر یا دارالحرب په دوه ډوله وېشلی دی او یو یې دار الخوف او بل یې دارالامن گرځولی دی، مولانا رشید احمد کنگوهي رحمه الله چې هندوستان دارالحرب بللی و، د هغې څېړنه

(۱) اشعة اللمعات ج۱ص۳۵ تحت حدیث انما الاعمال بالنیات



مولانا محمد سهول عثماني رحمه الله په یو مضمون کې کړې ده چې بیا د مولانا گنگوهي رحمه الله له رسالې سره یوځای چاپ شو، هغه په دې اړه داسې وايي: "د دې خبرې یادونه دلته ډېره اړینه ده چې د مولانا مجیب او مولانا شاه عبدالعزیز رحمه الله او نورو اکابرو له څرگندونو معلومېږي چې هندوستان له ځینې اسلامي ریاستونو پرته نور ټول دارالحرب دی؛ خو له پېښنو څخه داسې څرگندېږي چې دا دارالامان دی، لکه څنگه چې حبشه له هجرت نه مخکې د دارالحرب سره سره دارالامان هم و دغه راز نن هندوستان هم دارالامان دی. نو له همدې امله له دې ځایه د مسلمانانو هجرت ضروري نه دی او دا خبره ما د گنگوهي رحمه الله له خولې هم اورېدلې وه، زما ښه په یاد دي چې زما له څېړنې وروسته هغه همدا وویل".

## له نورو هیوادونو سره اړیکې ساتل

په نړۍ کې درې ډوله هېوادونه دي، لومړی دارالاسلام، دوهم دارالامان او دریم دارالخوف چې په بله معنا دارالحرب هم ورته ویلای شو، دلته له دې هیوادونو سره اړیکو ساتلو ته کتنه کوو:

## له اسلامي هیوادونو سره اړیکې ساتل

لکه مخکې مو چې وویل د اسلام له نظره یوازینۍ خبره دا ده چې په ټوله نړۍ کې دې یو دارالاسلام او یو اسلامي ریاست وي، خو په عملي توگه بیا خبره بل ډول ده، نن په نړۍ کې تر پنځوسو زیات اسلامي هیوادونه دي، خو اصلي خبره دا ده چې باید د ټولو اسلامي هېوادونو د یووالي هڅه وشي چې همدا د اسلامي اتحاد رښتوني غوښتنه ده، له همدې امله پر هر اسلامي ریاست فرض دي چې په خپلو بهرنیو اړیکو کې اسلامي اتحاد ته لومړیتوب ورکړي، او د دې خبرې پوره کوښښ وشي چې ټوله اسلامي نړۍ پر یوه

ټغر سره راټوله شي، الله تعالی اسلامي هیوادونو ته داسې ځانګړتیاوي او امتیازات ورکړي دي چې د نړۍ بل هیڅ ملت یې نه لري، که تاسو د نړۍ نقشې ته وګورئ؛ نو څرګنده به شي چې له مراکش څخه نېولې ترانډونیشیا پورې ټوله اسلامي نړۍ د ځنځیر د کړیو په څېر پرته ده ، د جغرافیې له مخې د نړۍ ټول مهم ځایونه د دوی په ولکه کې دي، او د نړۍ ټولې مهمې لویې لارې لکه د باس فورس بندر، د سویس نهر، د عدن ټاپو د هرمز بندر او نور د دوی په ولکه کې دي، د نړۍ د تیلو تر ټولو مهمې او لویې زېرمې د دوی په هېوادونو کې راڅرګندې شوي دي، تر دې چې په نړۍ کې دا مقوله مشوره ده چې: " چېر چې مسلمان وي هلته تیل وي " نن د مسلمانانو نفوس دومره دی چې په تېر تاریخ کې یې ساری نه و لیدل شوی، او څومره شتمنې چې نن د دوی په لاس کې ده مخکې دومره لاس ته نه وه ورغلې ؛ خو د دې شتمنۍ زیاتره برخه چې په میلیونونو ډالره کېږي نن د امریکا او اروپا په بانکونو کې ساتل کیږي او له دې څخه همهغه هیوادونه ګټه پورته کوي،( او دا د عبرت خبره ده چې اسلامي هیوادونه خپلو اړتیاوو د پوره کولو له پاره دا پیسې همدې هیوادونو ته په سود ورکوي ) نو له دیني غوښتنو پرته د اسلام اقتصادي او دفاعي غوښتنه هم دا ده چې د خپلو شخصي غوښتنو او ګټو پرځای د ټول امت ګټې په پام کې و نیول شي. او که مسلمانان خپله همدا دیني فریضه پوره کړي؛ نو هیڅ شک نشته چې مسلمانان به د نړۍ تر ټولو ستر اقتصادي او دفاعي ځواک وګرځي.

خو لکه مخکې مو چې ورته اشاره وکړه په اوسني حالاتو کې په عملي توګه دې خلا ډکولو سره شونې ده ډېرې وینې تویې شي چې دا یوه ډېره بده خبره ده، نو ترڅو چې د اسلامي هیوادونو مشرانو ته دا توفیق ور په برخه نه شي چې د اسلام او مسلمانانو د ګټو په خاطر خپلو هیوادونو ته د یوه ریاست یا لږ تر لږه یو وفاقي حکومت بڼه ورکړي تر هغو اسلامي هېوادونه بیل بیل



منل یوه مجبوري ده، او لکه څرنګه چې په دې هیوادونو کې واک د مسلمانانو په لاس کې دی؛ نوځکه پر دوی هر یوه باندې دارالاسلام هم صادقیږي؛ نو د اسلامي خواخوږۍ غوښتنه داده چې د دې بېلا بېلو هیوادونو ترمنځ د ښو اړیکو او مرستې فضا رامنځ ته شي.

له همدې امله اړینه ده په نن وخت کې د هر اسلامي هیواد په بهرنیو اړیکو ساتلو کې لومړنی او بنسټیز قدم دا وي چې له اسلامي هیواد سره دې ورووليي او ښې اړیکي ولري. په دې کې دا خبره هم څرګنده ده چې که پر کوم اسلامي هیواد د کافرانو له لورې برید وشي؛ نو نه یوازې دا چې د هغوی مرسته دې وشي بلکې که د هغوی پوځي ځواک کمزوری وي او خپله دفاع نه شي کولای؛ نو پوځ دې هم ور ولېږدول شي. په دې اړه د قرآن کریم، حدیثونو او اسلامي فقه لارښوونې د لمر په څېر روښانه دي. الله تعالی فرمایي: وَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى ۚ وَ لَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ ۚ " (۱)

ژباړه: او تاسو په ښېګړه او تقوا کې یو له بله مرسته وکړئ او په ګناه او تېري کې یو له بله مرسته مه کوئ.

په بل ځای کې وایي: اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ " (۲)

ژباړه: یقینا مؤمنان سره وروڼه دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: "المسلم أخو المسلم لایظلمه ولایسلمه" (۳)

ژباړه: مسلمان د مسلمان ورور دی، نه دې ورسره تېری کوي او نه دې په میدان پرېږدي.

---

[1]) سورت المائده:۲.

[2]) سورت الحجرات ۱۰

[3]) صحیح البخاري، کتاب المظالم، حدیث شمېره ۲۴۴۲

په بل ځای کې فرمايي:"إن المؤمن للمؤمن كالبنيان يشدّ بعضه بعضا." (۱)

ژباړه: مسلمان د مسلمان لپاره د يوې ودانۍ په څېر دی چې يوه برخه يې بله برخه قوي کوي.

په بل ځای کې فرمايي: "ترالمؤمنين في تراحمهم وتوادّهم و تعاطفهم كمثل الجسد إذا اشتكى عضوا تداعى له سائر جسده بالسهر والحمّى" (۲)

ژباړه: مسلمانانو ته په زړه سوي، مينه او شفقت کې داسې گورئ لکه د يوه بدن غړي، چې کله د هغه يوه غړي ته تکليف ورسيږي؛ نو ټول بدن ورسره بې خوبه او په تبه وي.

له همدې امله فقهاوو رحمهم الله ويلي دي که چېرې کافران د مسلمانانو پر يوه ښار يريد وکړي او د هغه ښار خلک يې د مقابلې توان نه لري؛ نو له هغوی سره د نږدې ښار پر اوسېدونکو واجب گرځي چې ورسره يوځای شي او په گډه د دښمن مقابله وکړي په دې اړه علامه ابن نجيم رحمه الله وايي:

"وفرض عين إن هجم العدوّ فتخرج المرأة والعبد بلا إذن زوجها وسيده... والمراد هجومه على بلدة معينة من بلاد المسلمين، فيجب على جميع أهل تلك البلدة، وكذا من يقرب منهم إن لم يكن بأهلها كفاية، وكذا من يقرب ممن يقرب، إن لم يكن ممن يقرب كفاية، أو تكاسلو وعصوا، وهكذا إلى أن يجب على جميع أهل الإسلام شرقا وغربا."(۳)

ژباړه: او که دښمن يريد وکړي نو جهاد فرض عين گرځي، په داسې حالت کې به غلام او مېرمن هم د خپل بادار او خاوند له اجازې پرته جهاد ته ځي... او

[1] صحيح البخاري، کتاب الصلواة، حديث شمېره ۴۸۱
[2] صحيح البخاري، کتاب الادب، حديث شمېره: ۲۰۱۱
[3] البحرالرائق، اول کتاب السير: ۱۲۳/۵



دا هغه مهال چې دښمن د مسلمانانو پر يو ځانگړي ښار يريد وکړي، په داسې وخت کې د دې ښار پر ټولو اوسېدونکو جهاد فرض کيږي، دغه راز که د ښار اوسېدونکي د دفاع کولو وس نه لري بيا د هغوی سره نږدې ښار اوسېدونکو باندې جهاد فرض کيږي او که دوی هم کافي نه ول يا سستي يا د امر سرغړونه کوي بيا له هغوی سره نږدې د بل ښار پر مسلمانانو باندې جهاد فرض گرځي په همدې ډول د شرق او غرب ټولو مسلمانانو همدا حکم دی. "

## له نامسلمانه حکومتونو سره اړيکي ساتل

له نامسلمانه هېوادونو سره د اړيکو ساتلو په اړه بايد په بنستيزه توگه دا خبره په پام کې ونيول شي چې د يو مسلمان او نا مسلمان د ژوند په مقصدونو کې د ځمکې او آسمان توپير دی، مسلمان که يو فرد وي او که حکومت وي د هغوی بنستيزې موخې د الله تعالی د اطاعت او د هغه په بندگي کې ژوند تېرول دي چې دا کار د هغه د توحيد اقرار او د هغه پر رالېږلو انبياوو عليهم السلام او په ځانگړي توگه وروستي پيغمبر محمد صلی الله عليه وسلم باندې له ايمان راوړلو پرته نه کيږي، د دې برعکس که يو شخص يا حکومت د الله تعالی پر توحيد او د رسول الله صلی الله عليه وسلم پر رسالت ايمان نه لري د هغه او د مسلمان د ژوندانه ترمنځ رښتيا هم ډېر زيات توپير دی؛ نو که څوک رښتونی مسلمان وي هغه دې له کافر سره داسې د زړه مينه نه ساتي لکه د ژوندانه مقصد شريک ملگرو ترمنځ چې وي او دا هغه دوستي ده چې قرآن کريم يې په داسې ټکو کې منع کړې ده: " لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ "(۱)

ژباړه: مؤمنان دې پرته له مؤمنانو نور کافران په دوستۍ نه نيسي، او هرچاچې دا کار وکړ؛ نو له الله سره په شي کې نه دی.

[1] سورة آل عمران: ۲۸

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَ النَّصٰرٰى اَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَ مَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ (۱)

ژباړه: اې مؤمنانو ! یهودیان او نصرانیان ملګري مه نیسئ، دوی خپلو کې یو د بل ملګري دي، او له تاسو یې چې څوک په ملګرتیا نیسي نو هغه هم له دوی شمېرل کیږي.

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ لَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ (۲)

ژباړه: داسې یو قوم به ونه مومې چې په الله او آخرت ورځ ایمان لري، او بیا له هغه چا سره دوستي کوي چې د الله او هغه د رسول دښمني یې کړې وي، که څه هم پلرونه، زامن، ورونه یا خپله کورنۍ یې وي.

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَ عَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَ قَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ ۚ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَ اِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ (۳)

ژباړه: اې مؤمنانو ! زما دښمن او خپل دښمن سره دوستي مه کوئ، تاسې په دوستۍ هغوی ته پیغام لېږئ او دوی په هغه حق کافر شوي چې تاسې ته راغلی، هغوی رسول الله او تاسې په دې (له خپل وطنه) بهر باسي چې په خپل رب الله مو ایمان راوړی.

مفتي شفیع رحمه الله له نامسلمانو خلکو سره د مسلمانانو اړیکو ساتلو په اړه د دې آیاتونو په تفسیر کې پر دې مسئله پوره رڼا اچولې ده او په بېلا بېلو صورتونو کې یې ذکر کړې ده، د نوموړي وینا که دلته رانقل کړو؛ نو ان شاء الله ګټوره به وي، هغه وایي:

۱) سورة المائده: ۵۱

۲) سورة المجادلة: ۲۲

۳) سورة الممتحنه: ۱



"دا مضمون د قرآن شریف په ډېرو ایتونو کې مجمل او مفصل ذکر شوی دی، چې مسلمانان یې د نامسلمانو خلکو سره له اړیکو ساتلو او له هغوی سره موالات او مینه ساتلو څخه په سخته راګرځولي دي، کافران چې دا څرګندونې وګوري؛ نو له ربښتوني حالت څخه په بې خبرۍ کې دا فکر کوي چې د مسلمانانو په مذهب کې له کافرانو سره هیڅ ډول اړیکي ساتل نشته؛ بلکې له هغوی سره د نیکو اخلاقو په اړه هم هیڅ نشته، او له بلې خوا د دې په مقابل کې د قرآن کریم له ډېرو آیتونو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ویناوو او عمل څخه او له کافرانو سره د راشده خلفاوو او صحابه وو رضي الله عنهم نېک چلند، مرستې او همدردۍ او غمرازۍ احکامات او داسې کیسې تېرې شوې دي چې د نړۍ په نورو قومونو کې د دې مثال موندل ډېر ګران دی، دغه راز هغه مسلمانان هم په ښکاره د آیتونو او حدیثونو ترمنځ ټکر محسوسوي چې پر قرآن کریم سطحي نظر اچوي، خو دا دواړه خیالات د قرآن کریم پر ربښتوني لاربوونو د څګلنده کتنې او نیمګړې تحقیق نتیجه ده، که په دې اړه د قرآن کریم له بېلا بېلو ځایونو آیتونه راټول کړل شي او فکر پرې وشي؛ نو نه به نامسلمانه خلک کوم شکایت وکړي او نه به په آیتونو او روایاتو کې کوم ټکر پاتې شي؛ نو ځکه باید په دې اړه پوره وضاحت وشي ترڅو د موالات، نیکۍ او غوره چلند او د خواخوږۍ او غم شریکۍ پوره څېړنه او د یو بل ترمنځ توپیر وشي او دا هم څرګنده کړل شي چې کومه درجه روا او کومه نا روا ده او چې کومه نا روا ده د هغې لاملونه څه دي.

خبره داده چې د دوو کسانو یا دوو ډلو ترمنځ د اړیکو ساتلو بېلا بېلې درجې دي، یوه درجه قلبي موالات یا د زړه مینه او محبت دی، دا یوازې په مسلمانانو پورې ځانګړې دی له کافرانو سره د مسلمانانو دا ډول اړیکه ساتل په هر حالت کې نا روا ده.

دوهمه درجه د مواسات ده، مواسات همدردي، خواخوږي او ګټې رسونې ته وايي، دا ډول اړيکه ساتل پرته له اهل حرب نه چې له مسلمانانو سره په جګړه بوخت وي د نورو ټولو کافرانو سره روا ده، د سورت ممتحنه په اتم آيت کې د دې پوره تفصيل شوی دی په هغه کې الله تعالی فرمايي: لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَ لَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَ تُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ (۱)

ژباړه: چاچې په دين کې تاسو سره جګړه نه ده کړې او له خپلو کورو يې بهر نه يئ وېستلي نو الله مو هغوی سره له ښېګڼې او انصافه نه ايساروي.

دريمه درجه د مدارات ده، مدارات ظاهري دارومدار او دوستانه اړيکو ساتلو ته وايي، دا ډول اړيکي ساتل هم له ټولو کافرانو سره روادي، او د دې لپاره چې دوی ته ديني ګټه ورورسيږي، يا يې ميلمه وي يا د ده موخه د هغوی له شره ځان ساتل وي، په سورت آل عمران کې د "إلا أن تتقو منهم تقاه" څخه همدا ډول اړيکه مراد ده، معنا دا چې له کافرانو سره اړيکي ساتل روانه دي مګر په داسې حالت کې چې ته غواړې د هغوی له شره ځان وساتې او له دې امله چې په مدارات کې هم د موالات صورت وي؛ نو د موالات څخه يې استثنا وکړه. (بيان القرآن)

څلورمه درجه معاملات دي، له دوی سره تجارت، مزدوري، دنده، صنعت او د را کړې ورکړې معاملات کول، دا هم له ټولو کافرانو سره روا دي پرته له داسې حالت نه چې په هغه سره مسلمانانو ته زيان رسيږي، د رسول الله صلی الله عليه وسلم، راشدينو خلفاوو او نورو صحابه وو تعامل د داسې معاملاتو ګواهي ورکوي، له همدې امله فقهاوو پر اهل حرب کافرانو د وسلې پلورل ناروا ګرځولي او په نورو تجارتونو کې يې اجازه ورکړې او

(۱) سورة ممتحنه:۸



هغوی په خپلو کارخانو کې مزدوران کول يا خپله له هغوی سره مزدوري کول دا ټول روا دي.

له دې تفصيل نه معلومه شوه چې له کافرانو سره د زړه مينه، محبت او دوستي په يوه حالت کې هم روا نده، او نيکي کول، خير او ګټه رسول د اهل حرب پرته له نورو ټولو سره روا دي، دغه راز ظاهري دوستي او نېک اخلاق کول له ټولو سره روا دي چې موخه يې ميلمه پالنه او يا کافرانو ته اسلامي معلومات او ديني ګټه رسول وي او د دوی له ضرره ځان ساتل وي. "(۱)

د دې خلاصه دا شوه چې له کافرانو سره د زړه مينه ساتل پرېږدئ چې په دې سره د مسلمان او کافر د ژوند موخو ترمنځ توپير وشي، له کافرانو سره سوله کول، د امن تړون کول، د بشريت پر اساس همدردي، غمشريکي، غوره چلند او د انساني ګټو په خاطر په ګډه مرسته کول نه يوازې روا ګرځول شوي بلکې ښه ګڼل شوي دي. داغوره ده چې په دې اړه دلته د قرآن او سنت ځينې لارښوونې او د رسول الله صلی الله عليه وسلم او صحابه وو د چلند ځينې مثالونه راوړل شي.

(۱) معارف القران، سورت آل عمران:۲ ج ص ۵۰.۵۱.

## تړونونه او پر هغو ژمن پاتې کېدل

تر ټولو لومړی د قرآن کریم وینا ده چې: وَ اِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَ تَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ . (۱)

ژباړه: او که هغوی سولې ته میلان ولري نو ته هم ورته تیار شه او پر الله بروسه وکړه.

او چې کله له کافرانو سره سوله وشي؛ نو حکم شوی چې په ټینګه به پرې دربېږي ، الله تعالی فرمايي: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ.(۲)

ژباړه: اې مؤمنانو ! ټول لوزونه پوره کړئ.

وَ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا (۳)

ژباړه: او د هغه قوم دښمني چې له مسجد حرام نه یې ایسار کړي وئ، باید تاسو دېته چمتو نه کړي چې تېری وکړئ.

او له یو قوم سره چې سوله وشي، که د کوم لامل له وجې دا اندېښنه وي چې هغوی د سولې لوزنامه ماته کړې ده؛ نو بیا حکم شوی چې په ښکاره له دوی سره لوزنامه ختمه کړئ او تر دې وړاندې د هغوی پرضد هر ډول اقدام کول نا روا دی ، لکه چې فرمايي: وَ اِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً فَانْۢبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْخَآئِنِيْنَ . (٤)

ژباړه: او که د کوم قوم له ټګي وېرېږې نو په څرګنده یې تړون ورو غورځوه یو برابر، بې شکه الله خائنان نه خوښوي.

---

(۱) سورت الانفال: ۶۱
(۲) سورة المائده: ۱
(۳) سورة المائده: ۲
(۴) سورة الانفال: ۵۸



په دې حکم باندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه وو په دور کې په ډېره دقیقه توګه عمل شوی دی، او د دې ډېر څرګند مثالونه موجود دي. د بېلګې په ډول په صحیحو احادیثو کې دا کیسه شته چې حذیفه بن یمان او د هغه پلار رضي الله عنهم دواړه له خپل کور نه د رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدو ته ور روان ول ، دا هغه مهال و چې د بدر جګړه د پېښېدو په حال کې وه او ابوجهل پر مدینه منوره د برید تابیا نیوله، ناڅاپه د هغه لښکر حذیفه او د هغه پلار رضي الله عنهما دواړه ایسار کړل او له هغوی نه یې په زوره کلکه ژمنه واخیسته چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره به په جګړه کې ګډون نه کوي، په همدې توګه هغوی له دوی نه ځان خلاص کړ او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې ځانونه ورسول ، نو له دې امله چې له هغوی اخیستل شوې ژمنه د دوی په خوښه نه و بلکې په زوره یې ترې اخیستې وه؛ نو ځکه دوی د بدر په جګړه کې د ګډون کولو غوښتنه وکړه؛ خو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: "إنصرفا، نفي لهم بعهدهم، و نستعين الله عليهم."

تاسو بېرته وګرځئ ! موږ له هغوی سره شوې ژمنه پوره کوو او د دوی پرخلاف له الله تعالی مرسته غواړو.

نو تاسو فکر وکړئ چې د بدر جګړه د اسلام هغه لومړنۍ جګړه وه چې په هغې کې د حق او باطل پرېکنده فیصله کېدله او په دې جګړه کې ګډون کونکو ته هغه اعزاز ور کول کېده چې له دوی وروسته بل چا ته نه دی ور په برخه شوی او بیا په دې موکه کې یوه یوه انسان ته سخته اړتیا وه، ځکه چې د درې سوه او دیارلس بې وسه کسانو مقابله له یو زر په وسلو سمبال لښکر سره کېدله او له بلې خوا حضرت حذیفه او حضرت یمان رضي الله عنهما دا ژمنه په خپله خوښه نه وه کړې، بلکې د توري په زوره پرې تپل شوې وه او په

دې سره دا تاویل ډېر په اسانه کېدلای شو چې دا تړون بېخي شوی نه دی؛ خو د الله تعالی رښتوني پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم د دې تاویل کولو پرځای په دوو کلمو سره د دې تړون د ماتولو څخه هم منع وکړه. او دا تړون په خپله هم مشکوک و ؛ خو رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې سره خپل امت ته یو څرګند مثال جوړ کړ چې یو مسلمان باید د تړون ماتولو له یوې ادنی شبهې هم ځان وساتي.

دغه راز په ابوداؤد کې د ابورافع رضي الله عنه کیسه په صحیح احادیثو سره را نقل شوې ده، نوموړی هغه مهال کافر و او د مکې خلکو د خپل استازي په توګه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورلېږلی و، دی پخپله وایي چې کله زه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلم؛ نو اسلام زما په زړه کې ځای و نیو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته مې وویل: یارسول الله ! نور به کله هم زه هغو خلکو ته ورنشم "هغه په ځواب کې راته وویل: "إني لا أخيس بالعهد ولا أحبس البرد، ولكن ارجع، فإن كان في نفسك الذي في نفسك الآن فارجع."

ژباړه: زه د لوزنامې سرغړونه نه کوم، او نه هم استازي له خپل ځان سره ایساروم ، ته اوس بېرته ولاړ شه، کومه خبره چې اوس ستا په زړه کې ده که هلته د تللو وروسته دې هم دا خبره په زړه کې وه ؛ نو بېرته راشه. "

ابورافع رضي الله عنه وایي: ما همداسې وکړل، مکې ته ولاړم، بېرته راغلم او اسلام مې ومانه.[1]

هغه مهال که څه هم د مکې له مشرکانو سره کومه لوزنامه نه وه شوې، خو علامه خطابي رحمه الله وایي چې کله مشرکانو ابورافع د خپل استازي په توګه لېږه؛ نو هغوی هیله درلوده چې استازی به بېرته راستنیږي او موږ ته به ځواب

[1] سنن ابي داؤد، کتاب الجهاد، باب يستجنّ الامام في العهود، حدیث ۸۵۷۲ باسناد صحیح.



راوړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم دا یو ډول معنوي لوزنامه وګڼله چې ګواکې دا لوزنامه شوې ده چې هغه به بېرته ورځي. له دې څخه دا اټکل کېدلای شي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه صحابه وو رضوان الله علیهم به لوزنامه څومره په دقیقه توګه څارله او پر هغې به ټینګ ولاړ ول !

دغه راز یو ځل معاویه رضي الله عنه له رومي واکمنو سره د یوې ځانګړې مودې د پاره اوربند کړی و، نوموړی ډېر هوښیار مشر و، هغه فکر وکړ چې داسې نه دښمن دا توقع وکړي چې مسلمانان به د اوربند ختمېدو سره سم پر موږ برید وکړي؛ نو له مخکې نه یې په خپله سیمه کې د دښمن لوري ته پرمختګ پیل کړ او غوښتل یې د اوربند ختمېدو سره سم د دښمن سیمو ته ننوځي، له دې امله چې دښمن د دې توقع نه لرله؛ نو ځکه یې د مسلمانانو د ناڅاپه برید تاب رانه وړ او معاویه رضي الله عنه پرته له کوم مقاومت نه پرمختګ وکړ او د دښمن سیمې ته ننوت، دوی د پرمختګ په حال کې و چې ناڅاپه د شا له خوا یو تن پر آس سپور راغی او په لوړ غږ یې وویل: "وفاء لاغدر " معنا دا چې لوزنامه پوره کړئ او ټګي مه کوئ، معاویه رضي الله عنه هغه کس راوغوښت چې ویې لید مشهور صحابي عمرو بن عبسه رضي الله عنه و، هغه وویل: "سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من كان بينه و بين قوم عهد، فلايشدّ عُقدة ولا يحلّها حتى ينقضي أمدها، أو ينبذ إليهم على سواء".

ژباړه: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اورېدلي چې ویل یې: څوک چې له کوم قوم سره لوزنامه وکړي؛ نو د لوزنامې په اړه دې کومه غوټه نه ټینګوي او نه دې خلاصوي معنا دا چې په دې کې دې کومه لاسوهنه نه کوي تر هغو چې د لوزنامې موده پوره شوې نه وي یا دې دا لوزنامه همدې قوم ته په سمه توګه ورپرېږدي.

د دې کيسې راوي سليم بن عامر وايي: معاويه رضي الله عنه چې دا حديث واورېد؛ نو نه يوازې دا چې پرمختګ يې ودراوه بلکې خپل ټول لښکر يې بېرته په شا کړ.(۱)

دلته مو دې خبرې ته پام وي چې معاويه رضي الله عنه په ښکاره د لوزنامې څخه کومه سرغړونه نه وه کړې ځکه چې هغه د اوربند نه وروسته پر دښمن بريد کړی و، مخکې يې بريد نه و کړی؛ خو له دې امله چې نوموړی له اوربنده مخکې د دښمن پر لور خوځېدلی و؛ نو عمرو بن عبسه رضي الله عنه دا کار د احتياط خلاف وباله، او معاويه رضي الله عنه هم چې دا حديث واورېد؛ نو فکر يې وکړ چې دا سې نه په دې پېښې سره له حديثه سرغړونه وشي؛ نو ځکه يې دې پرېکړې ته سر ټيټ کړ او ويې منله، او شونې ده په تاريخ کې دا يوازينی مثال وي چې يو فاتح يوازې د احتياط پر بنياد پرته له څه ويلو خپلې نيولې سيمې بېرته پرېږدي.

له دې څرګندېږي چې د دوی موخه ځمکې نيول نه و او نه يې هم د کوم هيواد لاندې کولو شوق درلود، د هغوی يوازينۍ هيله دا وه چې هرڅه د الله تعالی د خوښۍ د پاره وکړي، که د الله تعالی خوښي د فتح شويو سيمو په بېرته پرېښودو کې وي نو دا هم اصلي موخه ده.

دارنګه د معاويه رضي الله عنه يوه بله کيسه هم مشهوره ده، يوځل روميانو له نوموړي سره په دې شرط سوله وکړه چې دوی به ده ته ماليه يا د ډالۍ په توګه څه مال ورکوي او دهمدې پرېکړې د باوري کولو د پاره يې خپل ځيني کسان له مسلمانانو سره د يرغمال په توګه پرېښودل، وروسته دوی ټګي وکړه او سوله يې ماته کړه، معاويه رضي الله عنه کولای شو د

(۱) سنن ابي داود، کتاب الجهاد، حديث ۲۷۵۹.



سولې ماتولو له امله د هغوی يرغمال کسان ووژني؛ خو دا يې ونه کړل دوی يې ازاد کړل او ويې ويل: "وفاء بغدر خير من غدر بغدر"(۱)

د غدارۍ په وړاندې پر سوله ټينګ درېدل د غدارۍ په بدله کې تر غدارۍ غوره دي.

## د ګډې دفاع تړونونه

له اوربند او سولې پرته د ګډې دفاع تړونونه هم د رسول الله صلی الله عليه وسلم په وخت کې شوي دي او د دې ډېر مثالونه موجود دي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم چې مدينې ته هجرت وکړ، هغه مهال هلته کوم مرکزي حکومت نه و، بېلا بېل قومونه د ګڼ شمېر مشرانو تر سيورې لاندې اوسېدل، هلته د يهودو ځيني قبيلې هم مېشتې وې، رسول الله صلی الله عليه وسلم ټول سره يوځای کړل او يو مرکزي حکومت يې جوړ کړ چې د مدينې ټول خلک پرې خوښ شول. هغه مهال هغه يو ليکلی دستور تيار کړ چې د ټولو قومونو حقوق او دندې پکې ليکل شوي وې او د اروابناد ډاکټر حميدالله د څېړنې سره سم دا په نړۍ کې لومړی ليکل شوی دستور و چې په اووه څلويښت مادو کې ليکل شوی و، د دې دستور په ۳۷ مه او ۴۴ مه ماده کې له يهودو سره دا لوزنامه شوې وه چې که پر مسلمانانو بريد کيږي؛ نو يهود به د مسلمانانو سره درېږي او په ګډه به دفاع کوي او که پر يهودو بريد کيږي؛ نو مسلمانان به ورسره درېږي او په ګډه به د دوی دفاع کوي (۲)

دغه راز د حديبيې په سوله کې د مکې کافرانو سره يوازې د اوربند تړون شوی و او له خزاعه قبيلې سره بيا د ګډې دفاع تړون شوی و، د خزاعه قبيلې خلکو هغه

(۱) کتاب الاموال لابی عبيد: ۱۷۵، ۴۴۲ پرګراف

(۲) الوثائق السياسة. ډاکټر حميدالله: له ۵۹ نه تر ۲۲ مخ پورې

مهال په ټولیزه توګه اسلام نه و منلی؛ خو رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې ښې اړیکې لرلې او په هغوی کې څه کسان مسلمانان شوی هم ول.(1)

د حدیبیې په سوله کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې له مشرکانو سره سوله کوله؛ نو د خزاعه او بکر قبیلو ته یې اختیار ورکړ چې دوی له هر چا سره غواړي حلیف دې شي، په دې سره د خزاعه قبیلې خلکو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حلیف اعلان وکړ او بکر قبیلې د مکې په مشرکانو پورې ځان وتاړه. د خزاعه قبیلې سره د دې تړون موخه دا وه چې که د مکې مشرکان او بکر قبیله پر مسلمانانو برید کوي؛ نو دوی به له مسلمانانو سره دریږي او په ګډه به دفاع کوي او که پر خزاعه قبیلې برید وشي؛ نو مسلمانان به د دوی په دفاع کې ورسره مرسته کوي.

بیا داسې وشول چې د بکر څو تنو د شپې له خوا پر خزاعه قبیلې برید وکړ او دهغوی یو تن یې ووازه، او د مکې مشرکانو له هغوی سره د وسلې مرسته وکړه او په دې سره یې د سولې تړون مات کړ، د خزاعه قبیلې خلک رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل او هغه یې په دې پېښه خبر کړ، په دې سره رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې مشرکانو سره د سولې تړون د ماتېدو اعلان وکړ او د همدې په پایله کې یې د مکې پر لور مختګ وکړ او په پای کې مکه مکرمه هم فتح شوه.(2)

له دې پېښې علماء استدلال کوي چې له کافرانو سره ګډ دفاعي تړون کول روا دی، او حافظ ابن حجر رحمه الله وایي چې دا په هغو موالاتو کې داخل نه دی چې قرآن کریم یې منع کړې ده.(۳)

[1] فتح الباري، کتاب الشروط: ۵: ۳۳۷

[2] دا پېښه د سیرت په ټولو کتابونو کې شته په ځانګړي توګه په عیون الاثر لابن سید الناس:۲ټوک:۲۲۳مخ

[3] فتح الباری کتاب الشروط، ۵: ۳۳۸



## خواخوږي او تعزیت

له کافرانو سره د انساني خواخوږي پر بنسټ مرسته، تعزیت او نیک چلند الله تعالی ته خوښ دی. قرآن کریم په انفرادي توګه نیک چلند داسې بیانوي چې که د چا مور و پلار مشرکان وي؛ نو په شرک او کفر کې د هغوی اطاعت روا نه دی؛ خو له هغوی سره په دنیا کې نیک چلند ضروري دی. الله تعالی فرمایي: " وَ اِنْ جَاهَدٰكَ عَلٰۤى اَنْ تُشْرِكَ بِيْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ١ۙ فَلَا تُطِعْهُمَا وَ صَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا ۖ وَّ اتَّبِعْ سَبِيْلَ مَنْ اَنَابَ اِلَيَّ١ۚ ثُمَّ اِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ".(۱)

ژباړه: او که چېرې هغوی دواړه پر تا زور واچوي چې ما سره هغه څه شریک کړې چې تا سره د هغه څه علم نشته؛ نو بیا د هغوی مه منه، خو په دنیا کې ښه ګوزران ورسره کوه.

او د ممتحنه سورة په ۸ آیت کې بیا ټولنیز چلند ته اشاره شوې ده، الله تعالی فرمایي: لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَ لَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَ تُقْسِطُوْۤا اِلَيْهِمْ(۲)

ژباړه: چاچې په دین کې تاسو سره جګړه نه ده کړې او له خپلو کورو یې بهر نه یئ ویستلي؛ نو الله مو هغوی سره له ښېګنې او انصافه نه اېساروي.

په دې کې له یو کافر سره په انفرادي توګه نېک چلند او دغه راز ټولنیزه خواخوږي هم داخل دي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سیرت کې د دې په اړه هم ډېر مثالونه او پېښې شته. په صحیح بخاري کې ډېر ځایه دا کیسه رانقل شوې ده چې د اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها مور مشرکه وه او مدینې منورې ته راغله، هلته یې له خپلې لور څخه د څه مالي مرستې

[1] سورة لقمان: ۱۵

[2] سورة الممتحنة:۸

غوښتنه وکړه، هغې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل، هغه ورته وویل: "صِلي أُمّکِ "له خپلې مور سره خپلوي پاله.(1 )

اَو دا هم څَرګنده ده چې د مکې مشرکانو له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د دښمنۍ ملا تړلې وه، په مکي ژوند کې یې د هغه او د صحابه وو پرضد له یو ډول ظلم نه هم دریغ و نه کړ، تردې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه کورنۍ یې په "شعب ابي طالب "کې ابسار کړل او پر هغوی یې اقتصادي او نور بندیزونه ولګول چې په پایله کې مسلمانان اړشول چې د ونو پاڼې او څرمنې و خوري؛ خو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې ته هجرت وکړ، هغه مهال یوځل په مکه مکرمه کې وچکالي راغله چې په نتیجه کې یې د مکې خلک دېته اړ شول چې په څرمنو ګوزاره وکړي. د سورة دخان په پیل کې د یو تفسیر له مخې د همدې وچکالي یادونه شوې ده، هغه مهال رسول الله صلی الله علیه وسلم نه یوازې دا چې د وچکالي د لرې کولو د پاره دعا کړې وه بلکې علامه سرخسي رحمه الله لیکلي چې ابو سفیان ته یې پنځه سوه اشرفۍ د دې لپاره ور لېږلې وې چې د مکې پر بې وزله او نیستمنو خلکو یې و وېشي.(2)

د دې ترڅنګ رسول الله صلی الله علیه وسلم له مدینې منورې نه یوڅه عجوه کجورې د ډالۍ په توګه ابو سفیان ته ور لیږلې وې او له هغه یې د څرمنو ور لېږلو غوښتنه کړې وه.(3)

اروا ښاد ډاکټر حمید الله وايي: د څرمنو په اړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا فکر و چې د شام د لارې بند بدو له امله د دې اخیستونکي نشته او شونې ده له ابو سفیان سره د ډېر ځنډ له امله خرابې شي، له همدې امله رسول

[1] صحیح البخاري، باب الهدیة للمشرکین وغیره.
[2] مبسوط السرخسي. باب صلح الملوک: ج/۱۰مخ ۹۲
[3] کتاب الاموال لابی عبید، باب فصل مابین الغنیمة والفی، حدیث شمېره ۲۴۴.



الله صلی الله علیه وسلم د هغه په بدله کې کجورې ور ولېږلې ترڅو د وچکالۍ په موده کې د هغوی د خوراکي موادو اړتیا پوره کړای شي.(1)

دغه راز ثمامه بن اثال رضي الله عنه چې د "یمامه" سېمي مشر و ونیول شو او مدینې ته راوستل شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم نوموړی خلاص کړ، هغه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لوړ اخلاق او غوره چلند ولید؛ نو په زړه کې یې له اسلام سره مینه پیدا شوه او له خلاصولو وروسته مسلمان شو، هغه مهال مکې ته د غلې زیاتره اندازه له یمامه څخه ور تله، ثمامه اعلان وکړ چې له دې وروسته به یوه دانه غنم هم مکې ته نه لېږدول کېږي چې له امله یې د مکې مشرکان ډېر پرېشانه شول، دوی بې وسه شول او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې لیک را ولیږی چې ثمامه ته زموږ سپارښت وکړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ثمامه له دې پرېکړې را وګرځاوه او د ده په سپارښت د مکې پر خلکو د یمامه د غلې بندیز ختم شو (2)

له دې وروسته د نړۍ په تاریخ کې د خواخوږي او نیک چلند تر ټولو غوره او ستره بېلګه هغه مهال ولیدل شوه چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم مکه فتح کړه او پر هغو خلکو یې بشپړ بری تر لاسه کړ چې د ده وینو ته تږي ناست ول او په کلونو کلونو یې پر هغه ظلم کاوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ټول وبخښل او د فتحې په ورځ یې ورته وویل: "نن پر تاسو هیڅ ډول ملامتیا نشته تاسو ټول ازاد یاست"

له دې کیسو ثابته شوه چې د ښمني او کرکه د کافرانو له ذات سره نده بلکې د هغوی له باطلو عقېدو، فتنو او فساد سره ده، ترکومه چې په انساني حیثیت پورې تړاو لري له هغوی سره خواخوږي او همدردي د اسلام یوه

[1] عهد نبوي مین نظام حکمراني: ۲۵۸
[2] فتح الباري، کتاب المغازي، باب وفد بنی حنیفه و حدیث ثمامة بن اثال:ج۸:/ ۸۷

غوښتنه ده، هغوی ته تبليغ هم د خواخوږۍ پر بنسټ کېږي او د جهاد اصلي موخه هم د انسانانو له خير غوښتنې پرته نور څه نه دي تر څو انسانان د فتنې او فساد څخه وساتل شي.

## د خير په کارونو کې مرسته

د قرآن کريم او حديثونو له مخې مسلمانانو ته له کافرانو سره د خير په کارونو کې نه يوازې دا چې د ګډ کار او مرستې اجازه شوې بلکې دې کار ته يې هڅولي هم دي، قرآن کريم په دې اړه دوه ګوني اصول بيان کړي دي، چې:

"وَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى ۚ وَ لَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ"(۱)

ژباړه: او تاسو په نېکګړه او تقوی کې يو له بل سره مرسته وکړئ او په ګناه او تېري کې يو له بله مرسته مه کوئ.

دا اصول چې قرآن کريم د کومې خبرې په تړخ کې بيان کړي دي هلته د کافرانو پر خلاف د زور زياتي ذکر شوی دی، پوره آيت داسې دی: "وَ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى ۚ وَ لَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ.(۲)

ژباړه: او د هغه قوم دښمني چې له مسجد حرام نه يې ايسار کړي وئ، بايد تاسو دې ته چمتو نه کړي چې تېری وکړئ او تاسو په نېکګړه او تقوی کې يو له بل سره مرسته وکړئ او په ګنا او تېري کې يو له بله مرسته مه کوئ او الله نه وډار شئ، بې شکه د الله عذاب ډېر سخت دی.

(۱) سورة المائده:۲
(۲) سورة المائده:۲



نو په دې ايت کې له کافرانو سره هم د مرستې کولو حکم شوی دی. او که کافران يو داسې پلان وړاندې کړي چې په هغه کې د عامو انسانانو ګټې وي او داسې خبره پکې نه وي چې د اسلامي شريعت او مسلمانانو له مصلحتونو سره ټکر ولري؛ نو له کافرانو سره په داسې پلان کې ګډون کول هم روا دي بلکې دا کار شريعت غوره ګڼلی دی.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم په ژوند کې د داسې ډول مرستې او ګډ عمل بېلګې هم موجودې دي، تر ټولو څرګنده بېلګه يې "حلف الفضول" تړون دی.

## حِلف الفضول

د "حلف الفضول" تړون شاليد دا دی چې د جاهليت په زمانه کې به يو له بل سره د مرستې تړونونه د قامونو پر بنسټ کېدل، هر قام به د خپلو خلکو د مرستې پابند و، او په مرسته کې د دې خبرې هيڅ پروا نه ساتل کېده چې څوک پر حق دی او څوک ناحقه، څوک ظالم دی او څوک مظلوم، که د خپل قام سړی به ظالم هم و د هغه مرسته به کېدله. د بې انصافۍ دا لړۍ تر کلونو کلونو روانه وه، په پای کې د زبيد قبيلې يو تن سره عاص بن وائل دا تېری وکړ چې له هغه يې ځيني توکي و پېرودل؛ خو پېسې يې ورنه کړې. د زبېدي قبيلې دغه تن د مکې مکرمې له هغو خلکو مرسته وغوښته چې دوی ورسره دفاعي تړونونه درلودل؛ خو دې خلکو نه يوازې دا چې له ده سره مرستې کولو څخه نټه وکړه بلکې هغه مظلوم يې نور هم ملامت کړ. مظلوم د مکې "ابو قبيس" غره ته وخوت او هلته يې د خپل ظلم په اړه يو څو پاروونکي شعرونه وويل او قريشو ته يې دا پيغور ورکړ چې ستاسو تر سيوري لاندې داسې تېری کېږي، په دې سره د قريشو ځينو مشرانو په زړونو کې دا خبره ولوېده چې بايد داسې ظلم نور پای ته ورسول شي. د دې خبرې تر ټولو زيات

پلوي او هڅوونکی د رسول الله صلی الله علیه وسلم تره زبیر بن عبد المطلب و، هغه د همدې د پاره د هاشم، زهره او تیم کورنیو خلک د عبد الله بن جدعان په کور کې سره راټول کړل. دا پېښه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له بعثت نه مخکې شوې ده او هغه مهال رسول الله صلی الله علیه وسلم شل کلن و او ده پخپله هم په دې فیصله کې ګډون درلود، دوی ټولو الله تعالی ګواه کړ او دا تړون یې وکړه چې: "لیکوننّ یدا واحدة مع المظلوم علی الظالم حتی یؤدی إلیه حقه ما بلّ بحر صوفة و مارسا حراء و ثبیر مکانهما، و علی التاسي في المعاش". (۱)

ژباړه: تر څو چې په سمندر کې د لندولو وړتیا وي او تر کومه وخته چې د "حراء" او "ثبیر" غرونه پر خپل ځای ولاړ وي دا ټول خلک به د ظالم پر ضد د مظلوم په مرسته او د هغه په معاش کې یو له بل سره یو موټی وي.

له دې وروسته هغوی د عاص بن وائل نه د زبیدي حق په زوره واخیست. رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه مهال په دې تړون کې ګډون کړی و چې لا پیغمبري نه وه ورکړل شوې؛ خو وروسته له دې چې هغه پیغمبر شو؛ نو د دې تړون یادونه به یې کوله او هغه به یې ستایه، ویل به یې: "ما أحبُّ أنَّ لي بحلف حضرته بدار ابن جدعان حمر النعم وأني أغدر به، هاشم وزهرة و تیم تحالفوا أن یکونوا مع المظلوم ما بلّ بحرصوفة، ولو دعیت به لأجبت." (۲)

ژباړه: "په کوم تړون کې چې ما د جدعان په کور کې ګډون کړی و، د هغه په نه منلو که ماته څوک سور اوښ هم راکړي خوښ به یې نه کړم، د هاشم، زهره او تیم کورنیو هلته دا تړون کړی و چې ترڅو په سمندر کې د ځمکې د یوې

۱) الروض الانف للسهیلي ج۱/ ۱۵۲ دار المعرفه بیروت.

۲) طبقات بن سعد: ج۱:/۱۰۷ وعیون الاثر لابن سید الناس ج:۵۹/۱



برخې لندولو وړتیا وي دوی به د مظلوم مرسته کوي. او که ماته څوک اوس هم د داسې ډول تړون بلنه راکړي نو هرومرو به یې منم."

د رسول الله صلی الله علیه وسلم همدا خبره په لږ توپیر سره د حاکم مستدرک، سیرت ابن هشام او ابن کثیر او نورو هم را اخیستې ده.(1)

دې تړون ته له دې امله "حِلف الفضول" وایي چې فضول د فضل جمع ده او فضل غوره والي ته وایي، دا تړون د ډېرو ګټو ټولګه ګرځول شوې وه؛ نو ځکه ورته "حِلف الفضول" یا غوره تړون وایي. او ځینو علماوو بیا د دې نوم لامل داسې بیان کړی چې دا ډول تړون په قریشو کې په لومړي سر کې د "جرهم" کورنۍ درې کسانو کړی و چې د هغوی هر یوه نوم فضل و، او چې کله بیا په ګډه داسې تړون وشو؛ نو هغو درې کسانو ته منسوب کړل شو.(2) والله سبحانه اعلم.

د دې تړون پر بنسټ علامه سهیلي رحمه الله او نورو علماوو دا مسئله ثابته کړې ده چې له کافرانو سره نیک چلند او د خیر په کارونو کې ورسره مرسته او ګډ کار کول نه یوازې دا چې روا دی بلکې غوره ګڼل شوی دی، ځکه خو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې که څوک اوس هم زما سره دا ډول تړون کوي زه ورته تیار یم.

۱) مستدرک الحاکم اخر کتاب المکاتب:ج۲/ ۲۲۰ و اقره الذهبی، والروض الانف ۱:/۵۲

۲) الروض الانف پورتنی مخ

## جهاد

د پورتني تفصيل څخه دا خبره په ډاګه شوه چې له کافرانو سره د يوه اسلامي رياست اړيکو نوعيت په خپله د هغوی په کړنو او چلند پورې تړلی دی او په دې اړه قرآن کريم فرمايي: " فَمَا اسْتَقَامُوْا لَكُمْ فَاسْتَقِيْمُوْا لَهُمْ (۱)

ژباړه: نو ترڅو چې هغوی درسره سم وي په وعده، تاسو هم ورسره سم اوسئ.

خو هغه قوتونه چې اسلام او مسلمانانو ته ورڅخه خطر وي چې د اسلام او مسلمانانو سره کينه او دښمني کوي ، پر مسلمانانو تېری کوي، د اسلامي بلنې په لار کې خنډونه جوړوي يا په عامه توګه پر ځمکه فساد خپروي له هغوی سره اسلامي رياست ته د جهاد کولو حکم شوی دی چې په هغه کې وسله واله او غيري وسلواله مبارزه دواړه راځي. د وسلوال جهاد ډول ډول موخې قرآن کريم په بېلا بېلو آياتونو کې په لاندې توګه بيان کړې دي: " اُذِنَ لِلَّذِيْنَ يُقْتَلُوْنَ بِاَنَّهُمْ ظُلِمُوْا وَ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰی نَصْرِهِمْ لَقَدِيْرُ ". (۲)

ژباړه: هغو خلکو ته (د جګړې) اجازه ورکړه شوه چې جګړه ورسره کيږي، ځکه چې دوی سره ظلم شوی او يقينا الله يې په مرسته وسمن دی.

په دې آيت کې د جهاد تر ټولو لومړنۍ موخه دا بيا شوې ده چې که کافران پر مسلمانانو بريد وکړي؛ نو مسلمانانو ته د خپلې دفاع په خاطر د جهاد اجازه ورکړل شوې ده ، بلکې دلته د اجازې توری د دې لپاره کارول شوی دی چې د دې آيت د نزول نه مخکې په مکې ژوند کې مسلمانانو ته د خپلې دفاع په خاطر د وسلې پورته کولو اجازه نه وه بلکې د صبر امر ورته شوی و ؛ خو دلته د لومړي ځل د پاره د وسلوالي مبارزي امر وشو ؛ نوځکه په اجازې سره

۱) سورة التوبة:۷
۲) سورة الحج:۳۹



ياد شو ، کنه نو د قرآن او حديثونو له نورو دليلونو څرګنديږي چې په داسې حالت کې وسلواله دفاع واجب ده. لکه په لاندې آيت کې چې د خپلې دفاع په خاطر وسلواله مبارزه د يو ديني حکم په توګه فرض ګرځول شوې ده، الله تعالی فرمايي: " وَ قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَ لَا تَعْتَدُوْا اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ". (۱)

ژباړه: او د الله په لار کې له هغو سره و جنګيږئ چې درسره جنګيږي خو تېری مه کوئ، بې شکه الله تېری کونکي نه خوښوي.

د وسلوال جهاد دوهمه موخه قرآن کريم دا بيان کړې ده چې کله کافران د خپلو مسلمانو هستوګنو پر ضد تېری وکړي او هغوی ته زيان ورسوي ؛ نو هغه مهال دې دوی له ظلم نه خلاص کړل شي. په دې اړه قرآن کريم وايي: " وَ مَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَ النِّسَآءِ وَ الْوِلْدَانِ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا وَ اجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا وَّ اجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا". (۲)

ژباړه: او په تاسو څه شوي چې د الله په لار کې او د هغو بې وزلو سړيو، ښځو او ماشومانو (ژغورنې) د پاره نه جنګيږئ چې وايي زموږ ربه له دې کلي مو وباسه چې خلک يې ظالمان دي او له خپل لوري څوک پالونکی راته وټاکه او له خپلې خوا څوک مرستندوی راته وټاکه.

په دې کې هغه صورت هم داخل دی چې کافران د اسلامي بلنې په مخ کې خنډونه جوړوي چې قرآن کريم په ډېرو ځايونو کې په "صد عن سبيل الله" (د الله لاې نه خلک ابسارول) سره تعبير کړی دی. الله تعالی فرمايي: " يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ وَ صَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ كُفْرٌ بِهٖ وَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ اِخْرَاجُ

۱) سورة البقرة: ۱۹۰
۲) سورة النساء:۷۵

اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَ الْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ؕ وَ لَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا".(۱)

ژباړه: دوی تا پوښتي چې په حرامه میاشت کې جګړه څنګه ده؟ ورته وایه په دې کې خو (قصدا ) جګړه لویه ګناه ده خو د الله لارې نه خلک ایسارول او په هغه کافر کېدل او مسجد حرام نه مخنیوی او اوسېدونکي یې ترې ایستل الله ته لا زیاته ستره ګناه ده. او فتنه (کفرته بلل) له وژنې لا ډېره لویه ده، او دوی به تل تاسو سره جنګیږي تر هغو چې له خپله دینه مو واړوي که وس یې ورسیږي.

د وسلوال جهاد دریمه موخه د فتنې بشپړ مخنیوی دی، په دې کې دا اړینه نده چې پر چا ظلم کیږي هغه مسلمان دی بلکې هرځای چې کافرانو کوم ظالمانه او جابرانه نظام جوړ کړ چې په هغه کې د الله تعالی بندګان ظالمانه قوانینو منلو ته اړ ایستل کېدل ؛ نو د داسې نظام د سرتیټولو د پاره انسانان د دوی د ظلم نه خلاصول او د هغوی نظام له منځه وړل او هلته د الله تعالی د احکامو سره سم عادلانه نظام راوستل دا هم د جهاد مهمه موخه ده چې قرآن کریم یې په دې ټکو کې بیانوي: "وَ قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّ يَكُوْنَ الدِّيْنُ كُلُّهٗ لِلّٰهِ ۚ فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۳۹۰۰." (۲)

ژباړه: او تر هغه ورسره و جنګیږئ، څو چې فتنه پاتې نه شي او ټول دین د الله لپاره شي، نو که له فتنې ایسارشول نو الله یې د هغو کارو چې دوی یې کوي ښه لیدونکی دی.

دا هغه خبره ده چې ربعي بن عامر رضي الله عنه ایراني قومندان رستم ته کړې وه، رستم له ربعي بن عامر نه پر ایران د برید د لامل پوښتنه وکړه هغه

---

[۱]) سورة البقرة: ۲۱۷

[۲]) سورة الانفال: ۳۹



ورته وویل: "الله ابتعثنا لنخرج من شاء من عبادة العباد إلي عبادة الله، ومن ضيق الدنيا إلي سعتها، ومن جور الأديان إلى عدل الإسلام" (۱)

ژباړه: الله تعالی موږ د دې لپاره رالیږلي یو چې د هغه په خوښه انسانان د بندګانو له عبادت نه د الله تعالی عبادت ته خلاص کړو، او د دنیا له تنګي نه پراخۍ ته او د نورو ادیانو له ظلم نه د اسلام عدل او انصاف ته. "

د ربعي بن عامر رضي الله عنه د دې خبرو رښتیا والی هغه چاته ښه معلومیږي چې د "کسری" او "قیصر" پلي شویو ظالمانه نظامونو څېړنه کوي.

لنډه دا چې جهاد د همدې موخو د پاره پیل شوی دی او دا د هغو موخو د تفصیل ځای نه دی، پر دې موضوع مستقل کتابونه لیکل شوي دي چې په هغو کې د دې بې بنسټه تبلیغاتو هم مفصل تردید شوی دی چې وایي جهاد د خلکو د په زوره مسلمانولو ذریعه ده.

له اسلام نه مخکې چې کومې جګړې کېدلې یا اوس د نړۍ کوم ستر طاقتونه یو بل ته سره ښکر په ښکر دي، د دوی تر شا یوازینۍ موخه د خاورې لاندې کول او د ژوندانه وسائل لاسته راوړل دي، او چې کله د جګړې اور په غړمبېدو راشي؛ نو بیا قانون یا اخلاقي اصول تر پښو لاندې کوي ؛ خو اسلام له یوې خوا د جګړې موخې وټاکلې چې دا به د یوې سپېڅلې موخې د پاره کیږي نه د خاورې لاندې کولو د پاره او له بلې خوا یې په لومړي ځل د جګړې د پاره داسې قوانین جوړ کړل چې تر دې وړاندې د جګړو نړۍ داسې قوانین نه و لیدلي. او دا هم یو څرګند حقیقت دی چې پر نړیوالو قوانینو تر ټولو لومړی فقهاوو په داسې تفصیل سره کار وکړ چې تر دې دمخه په دومره

---

[۱]) البدایة والنهایة. ۷ټوک:۴۶

دقت سره د جگړې قواعدو جوړولو تصور هم چا نشو کولای. دا مفصل احکام ټول د فقهي په کتابونو او په ځانگړي ډول په هغو کتابونو کې شته دي چې د "سیرت" په اړه لیکل شوي دي. پر یو اسلامي حکومت لازم دي چې پخپلو جگړییزو او سوله ییزو معاملاتو کې قرآن او سنت د لارې مشال وگرځوي.

والله سبحانه اعلم






# شپږم څپرکی

## پاچا گوښه کول

د لوېدیځ ځینو لیکوالانو تور لگولی چې په اسلام کې یو ځل یو حکومت رامنځ ته شي د هغه د گوښه کولو بیا هیڅ لار نه وي. ښایي دا شک دوی ته له هغو شرعي حکمونو ورپیدا شوی وي چې په هغو کې د وخت حاکم څخه بغاوت منع کړل شوی دی. خو دا په قطعي توگه د دوی بې بنسټه تصورات دي. حقیقت دا دی لکه څرنگه چې په اسلام کې د یو امیر یا خلیفه ټاکنه په سوله ییزه توگه کېږي همداسې هغه د بېلا بېلو تگلارو له لارې گوښه کېدلی شي.

### ۱. له سوله ییزې لارې گوښه کول

د لاندې لاملونو پر بنسټ کېدلی شي له سوله ییزې لارې امیر گوښه کړل شي:

۱. که امیر استعفا وړاندې کړي او پخپله ځان گوښه کړي، چې نور زه کار نشم کولی؛ نو څرگنده ده چې په داسې وخت کې به دی گوښه کېږي.

۲. که پر امیر داسې حالت راشي چې له امله یې نوموړی نور د حکومتي چارو پر مخ بېولو اهل نه وي. د بېلگې په ډول: عقل یې کار پرېږدي، یا له داسې ناروغۍ سره مخ شي چې له امله یې دی ورځنۍ چارې پرمخ نشي بېولی. په داسې وخت کې به هم نوموړی گوښه کېږي.

۳. دریم صورت دا دی چې امیر ظلم او نورو بدو کارونو ته لاس واچوي ، مثلا (خدای مه کړه) شراب څښل پیل کړي، یا بدي اخلي یا ناروا مالیې پر خلکو ولگوي. د داسې ډول بدو کارونو پر وخت حکم دا دی چې داسې امیر دې گوښه کړل شي، خو د دغه ډول کړو وړو له امله د نوموړي پر ضد وسلوال

بغاوت کول روا نه دی. د دې مطلب دا دی که پاچا په سوله ییزه توګه ګوښه کېدلی شي؛ نو بې واکه کول یې واجب دي. په دې اړه حافظ ابن حجر رحمه الله د بخاري په شرحه کې وایي: "الذي عليه العلماء في أمراء الجور أنه إن قدر علي خلعه بلا فتنة ولا ظلم وجب، و إلا فالواجب الصبر."(۱)

د ظالمو واکمنو په اړه ټول عالمان پردې خبره متفق دي چې که د دوی په ګوښه کولو کې د کومې فتنې یا ظلم وېره نه وي؛ نو ګوښه کول یې واجب دي، که داسې ونه شي؛ نو بیا صبر واجب دی.

او د صبر مطلب دا دی چې د وسله وال بغاوت له لارې د هغه د بې واکه کولو هڅه روا نه ده او اوس د دې کار د پاره تر ټولو غوره لار داده چې د امیر د ګوښه کولو اختیار دې شورا یا قضا ته ورکړل شي چې آیا هغه د بدو کارونو له امله د ګوښه کولو وړ دی که څنګه؟ که د ګوښه کولو وړ وي؛ نو شورا یا قضا دې نوموړی ګوښه کړي.

۴. که له پورتنیو لاملونو یو هم موجود نه وي، خو د نوموړي پالیسي د دولت په ګټه نه برېښي چې له امله یې ولس ترې ناراضه وي؛ نو آیا په داسې وخت کې هم دی د ګوښه کولو وړ دی که څنګه؟ د دې پوښتنې مثبت یا منفي ځواب تر اوسه ما نه دی موندلی؛ خو له عامو قواعدو دا معلومېږي چې کومې شورا نوموړی امیر ټاکلی و، که هغه شورا دی د سوله ییزې او قانوني لارې له خپلې دندې ګوښه کړي؛ نو پروا نه لري. د دې تائید د حضرت انس رضی الله عنه په روایت باندې کېږي چې په هغه کې رسول الله صلی ا لله علیه وسلم پر درېیو له خلکو لعنت ویلی دی. په هغو کې یې د یوه په اړه ویلي: "أمّ قوما وهم له کارهون"(۲)

(۱) فتح الباري، کتاب الفتن، باب قوله صلي الله عليه وسلم هلاک امتي الخ ج۱۳ ص۸.
(۲) جامع الترمذي: کتاب الصلواة، حدیث:۳۵۸.



هغه شخص چې د خلکو مشري کوي او هغوی ترې ناراضه وي.

که څه هم د حدیث په دې سند کې څه خبره شته، خو له کومې لارې چې دا حدیث حسن بصري رحمه الله رانقل کړی دی هغه سهي دی. دا رنګه امام ترمذي رحمه الله تر دې حدیث وروسته دا وینا د عمر بن حارث بن مطلق د مقولې په توګه هم په سهي سند سره رانقل کړې ده.

له دې څرګندېږي چې خلک کوم واکمن نه خوښوي، او بیا هم ښاغلي پر ګدی، خپټه اچولې وي او واک نه پرېږدي دا به سم کار نه وي؛ نو که شونې وي او د ده پرځای له سوله ییزې لارې بل غوره واکمن راوستل شي، دا به د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وینا سره برابر کار وي.

دغه راز له عوف بن مالک اشجعي رحمه الله نه روایت رانقل شوی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: "خيار أئمتكم الذين تحبونهم ويُحبونكم وتصلّون عليهم ويُصلون عليكم، وشرار أئمتكم الذين تُبغضونهم ويُبغضونكم وتلعنونهم و يلعنونكم."(۱)

ستاسو غوره واکمن هغه دی چې تاسو ورسره مینه کوئ او هغه له تاسو سره مینه کوي او تاسو هغه ته دعاکوئ او هغه تاسو ته دعا کوي، او ستاسو بد واکمن هغه دی چې تاسو له هغه سره کینه ساتئ او هغه له تاسو سره کینه ساتي او تاسو پر هغه لعنت وایئ او هغه پر تاسو لعنت وایي.

که څه هم په دې حدیث کې دا هم شته چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره وکړه؛ نو صحابه وو وپوښتل: "أفلا ننابذهم عندذلك؟"

آیا په داسې وخت هغه موږ ګوښه نه کړو؟

(۱) صحیح مسلم، کتاب الإمارة، حدیث:۴۷۲۸.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: "لا ' ما أقاموا فيكم الصلواة ' لا ' ما أقاموا فيكم الصلوا'. ألا من ولي عليه وال فرآه ياتي شيئا من معصية الله ' فليكره ما ياتي من معصية الله ولا ينزعنّ يدا من طاعة."(۱)

نه ! تر څو چې هغه په تاسو کې لمونځ قائموي، نه ! تر څو چې هغه په تاسو کې لمونځ قائموي. واورئ ! که پرچا يو تن واکمن شي او بيا په هغه کې د الله تعالی د امر کومه سرغړونه ووينې، نو کومه سرغړونه چې دی کوي هغه دې بده وګڼل شي؛ خو د هغه له اطاعت نه دې هيڅکله مخ نه اړوي.

د دې معنی داده چې د داسې شخص پر ضد وسلوال بغاوت روا نه دی. او تر کومه چې په سوله ييزه توګه د مشر په ګوښه کولو پورې اړه لري ، هغه له دې حديث څخه نه معلوميږي. نو کله چې د اسلامي حکومت چوکاټ جوړيږي، د هغه په دستور کې بايد دا ماده هم کښېنودل شي چې د هغې له لارې پاچا په سوله ييزه توګه ګوښه کېدلی شي.

**۵**- نن په نړۍ کې د زياتره هيوادونو کړنلاره داده چې د حکومت مشر که د ولسمشر په څېره وي او که د لومړي وزير په څېره وي، د يوې محدودې مودې د پاره ټاکل کيږي چې د هغې پای ته رسېدو سره سم دی پخپله ګوښه کيږي، او له نومړي وروسته نوی مشر ټاکل کيږي. که څه هم په اسلامي خلافت کې د داسې ډول محدودي مودې د پاره د خليفه ټاکلو بېلګې نشته؛ خو لکه مخکې مو چې بيا بيا وويل د سياسي نظام په تفصيلاتو کې د اسلام دريځ ډېر روښانه دی، په قرآن او حديث کې داسې حکم نشته چې د خليفه د لنډې مودې ټاکلو مخالف وي. د خليفه يا امير ټاکنه شورا کوي او هغه چې حالاتو ته په پام سره د ټاکنې کوم محدود وخت وټاکي؛ نو په دې کې هيڅ شرعي

(۱) صحيح مسلم ' كتاب الإمارة' حديث:۴۷۸۲.



بدي نه ترسترګو کيږي، خو دا موده بايد دومره وي چې په هغې کې مشر خپلې پاليسۍ په اغېزمنه توګه نافذولی شي. په داسې صورت کې بيا د امير دبې واکه کولو شپږم صورت دا هم دی چې د نومړي د واک موده ختمه شي.

## ۲. د امير پر ضد راوتل يا وسله پورته کول

د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ويناوو دا خبره ښه څرګنديږي چې په اسلامي رياست کې کورنۍ جګړې ډېرې بدې ګڼل شوي دي، د حجة الوداع پروخت رسول الله صلی الله علیه وسلم پر دې خبره ډېر ټينګار کاوه ، چې: "فإن دمائكم وأموالكم" قال محمد وأحسبه قال "وأعراضكم حرام عليكم كحرمة يومكم هذا في بلدكم هذا في شهركم هذا وستلقون ربكم فيسألكم عن أعمالكم فلا ترجعن بعدي كفاراً أو ضلاّ لاً يضرب بعضكم رقاب بعض ' ألا ليبلغ الشاهد الغائب ' فلعلّ بعض من يبلغه يكون أوعي له من بعض من سمعه." ثم قال: "ألا هل بلغت." (۱)

بې شکه ستاسو وينه، ستاسو مال او (د محمد بن سيرين په ګومان) ستاسو عزت پر تاسو داسې حرام دی لکه ستاسو د نن ورځې حرمت، ستاسو د دې ښار (مکې) حرمت او ستاسو د دې (اختر) ورځې حرمت. تاسو ټول به خپل رب ته ورګرځئ او هغه به له تاسو ستاسو د عملونو پوښتنه کوي. نو زما نه وروسته بېرته کفر او بېلارۍ ته مه ورګرځئ چې د يو بل څټونه وهئ. خبر دار ! څوک چې دلته شته دي هغه دې دا خبرې هغو ته ورسوي چې غائب دي، شونې ده چې چاته دا خبره ور ورسول شي هغه يې تر اصلي اورېدونکي ښه وساتي. بيا يې وويل: واورئ !آيا ما دا پيغام تر تاسو ورساوه؟

(۱) صحيح البخاري ' باب حجة الوداع ' حديث ۴۴۰۲ ' ط: دارالسلام ' صحيح مسلم ' باب القسامة ' حديث ۴۳۵۱ ' وهذ اللفظ له ط: دارالقلم.

نو د مسلمانانو د خپل منځي جګړو د مخنیوي د پاره شریعت هر ډول سخت بندیزونه لګولي دي. له همدې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم په مکرره توګه له بېلابېلو لارو په مختلفو اسالیبو سره دا حکم کړی دی چې کله یو تن خلیفه یا امیر شي که هغه بېلاري یا د ظلم مرتکب شي، په یو حالت کې دي هم د هغه پر ضد وسله وال بغاوت نه کیږي څو د مسلمانانو ترمنځ وینې توی نه شي. د حضرت عوف بن مالک اشجعي په حدیث کې مخکې دا الفاظ تېر شول چې: "ألا من ولی علیه وال فرآه یأتي شیئا من معصیة الله فلیکره ما یأتي من معصیة الله ولا ینزعنّ یدا من طاعة."(۱)

واورئ! که پرچا یو تن واکمن شي او بیا په هغه کې د الله تعالی د امر کومه سرغړونه ووینې، نو کومه سرغړونه چې دی کوي هغه دې بده وګڼل شي؛ خو د هغه له اطاعت نه دې هیڅکله مخ نه اړوي.

تردې چې د حضرت حذیفه بن یمان رضی الله عنه نه روایت دی چې یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم د قیامت ورځې نښې نښانې بیانولې، په هغو کې یې وویل: "سیقوم فیهم رجال قلوبهم قلوب الشیاطین في جُثمان إنس."

په دوی کې به داسې خلک راشي چې زړونه به یې د شیطانانو وي او بدنونه به یې د انسانانو وي.

حذیفه رضی الله عنه وایي ما وپوښتل: یارسول الله! که زه هغه وخت ژوندی وم؛ نو تاسو راته څه حکم کوئ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وویل: "تسمع وتطیع للأمیر وإن ضُرب ظهرك وأخذمالك فاسمع وأطع."(۲)

(۱) صحیح مسلم، کتاب الامارة، حدیث ۴۷۲۸.
(۲) صحیح مسلم، حدیث ۴۷۴۸.



د امیر خبره اوره او د هغه اطاعت کوه، که څه هم ته پر شا ووهل شې او ستا مال واخېستل شي بیا هم د امیر خبره اوره او د هغه اطاعت کوه.

او په بل روایت کې داسې دي: "إن کان لله خلیفة في الأرض فضرب ظهرك وأخذمالك فأطعه."(۱)

که د ځمکې پرمخ د الله یو خلیفه وي، او هغه تا پر شا ووهي او ستا مال هم واخلي بیا هم د هغه اطاعت کوه.

د دې دا مطلب نه دی چې د ځان دفاع کول هم نه ده روا، د دې معنی داده چې د امیر پرضد داسې بغاوت مه کوئ چې له امله یې د مسلمانانو ترمنځ وینې توی شي. هو! داسې واکمن له سوله ییزې لارې بې واکه کول واجب دي، لکه مخکې چې تېر شول، او تر وسه وسه خپله دفاع هم روا ده چې په راتلونکي کې به یې یادونه وشي.

یوازې په یوه حالت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د امیر پر ضد د وسلې پورته کولو او هغه له تخته ګوښه کولو اجازه ورکړې ده. حضرت عباة بن صامت رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پر کومو خبرو له موږ بیعت اخېستی و هغه داوې، چې: "علی السمع والطاعة في منشطنا ومکرهنا وعسرنا ویسرنا وأثرة علینا و أن لاننازع الأمر أهله إلا أن تروا کفرا بواحا عندکم من الله فیه برهان."(۲)

داچې موږ به د امیر خبره اورو او منو به یې، که د خوښې حالت وي او که د ناخوښۍ، تنګي وي او که پراخي، او یا ترموږ نور خلک غوره وګڼل شي، او له واکمنو سره به د هغوی پر واک جګړه نه کوو، مګر داچې تاسو داسې

(۱) جامع الأصول لابن اثیر، حدیث ۷۵۰۹ ج ۱۰ ص ۴۵.
(۲) صحیح البخاري، کتاب الفتن، حدیث ۷۰۵۲.

ښرګند کفر ووینئ چې د هغه په اړه به ستاسو سره د الله له خوا یو ښرګند ثبوت موجود وي.

د دې خبرو خلاصه داده چې د امیر پرخلاف وسله پورته کولو او له تخته ګوښه کولو هڅې دې یوازې هغه وخت کیږي چې له هغه کوم ښرګند کفر ښکاره شي. په داسې وخت کې هم رسول الله صلی الله علیه وسلم دا شرط ایښی دی چې کفر یې داسې ښرګند وي چې هرڅوک پرې پوهیږي چې دا د کفر خبره ده (په دې حدیث کې د کفر سره یوځای د "بواح" قید لګېدلی دی) او د دې معنی داده چې د امیر له خوا کوم کفر وشي د هغه په اړه به ښرګند ثبوت یا دلیل موجود وي، یوازې د اخوا دېخوا خبرو، یا قیاسونو او اټکلونو او یا تبلیغاتو پر بنسټ دې د هغه د کافر کولو حکم نه کیږي. او مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دلته دا ټکی بیان کړی دی چې په حدیث کې د "إلا أن تروا کفرا بواحا " کوم الفاظ کارول شوي دي، له هغو نه مراد هغه کفر دی چې پخپلو سترګو ولیدل شي، دا نه چې یوازې د خپلې رایې پر بنسټ اقدام وکړل شي، په دې روایت کې "أن تروا "(لیدل) د یو مفعول لور ته متعدي شوی دی ،له دې معلومیږي چې د سترګو لیدل مراد دي، او که د زړه لیدل ترې مراد وایي؛ نو بیا به دوو مفعولینو ته متعدي وایي، او په سترګو لیدلو معنی داده چې پخپلو سترګو یې ووینې چې امیر د کفر مرتکب شوی دی ، که یوازې ګنګوسې یا اټکلونه واورېدل شي په داسې وخت کې د امیر پرضد را وتل روا نه دي. نو لنډه دا چې د یو کار په کفر کې د ټولو اتفاق وي او دا هم یقیني وي چې دا کار امیر تر سره کړی دی؛ نو په داسې وخت کې بیا د امیرپرضد راوتل او وسله پورته کول روا دي.

دغه راز دوه نور شرطونه هم شته، یو دا چې له دوی سره به دومره واک وي چې امیر د زور له لارې ګوښه کړای شي، او دویم دا چې د ده په ګوښه کولو سره به بل تردې ستر فساد رامنځ ته کېدو اندېښنه نه وي. مثلا دا غالب ګومان وي



چې د ده ګوښه کولو وروسته به د واک غوښتونکو ترمنځ جګړې رامنځ ته کیږي، او پر یوه شخص باندې خلک نه متفق کیږي، او له ټولو هلوځلو وروسته بیا هم خلکو ته د مسلسل وینو تویولو پرته نور څه لاس ته نه ورځي، یا له دې څخه کورنۍ جګړه رامنځ ته کیږي او ګټه یې دښمن ته رسیږي، په نتیجه کې هغه پر مسلمان هیواد باندې برید وکړي او تر خپلې ولکې لاندې یې راولي، تراوسه یوازې امیر کافر و اوس داسې حالت رامنځ ته کیږي چې (خدای مکړه) ټول هیواد د دښمن تر سلطې وروسته د دارالاسلام پرځای په دارالکفر بدلیږي، په داسې حالت کې هم د امیر پرضد وسله پورته کول روا نه ده.

پر دې موضوع باندې مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله د "جزل الکلام في عزل الامام" په نوم یوه ځانګړې رساله لیکلې ، دا رساله په امداد الفتاوی کې چاپ شوې ده، او مایې خلاصه په "فتح الملهم "کې هم راخېستې ده. په دې رساله کې نوموړې د واکمنو بدکارونه په ډېر تفصیل سره په بېلا بېلو صورتونو کې ذکر کړې دي او د هرصورت یې بېل بېل حکم بیان کړی دی. د دې رسالې څه ناڅه مهمې خبرې مخکې تېرې شوې، خو دوه نورې مهمې خبرې یې دلته د یادولو وړ دي: یوه دا چې د یو واکمن له واکه ګوښه کولو هڅه او د هغه له ظلم څخه دفاع کول، د دې دواړو ترمنځ توپیر دی. د وسله وال پاڅون له لارې پاچا له واکه ګوښه کول د "کفربواح " ښرګند کفر پرته بل هیڅ وخت روا نه دی. خو که یو واکمن د یوچا پر ځان او مال تېری کوي؛ نو بیا د خپل ځان او مال ساتنه د انسان حق دی، او د دې د ساتنې د پاره که دی وسله هم پورته کړي؛ نو روا ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي:"من قتل دون ماله فهو شهید"(۱)

څوک چې د خپل مال په دفاع کې ووژل شي هغه شهید دی.

(۱) صحیح البخاري، کتاب المظالم، حدیث ۲۴۸۰.

او د ترمذي، ابوداود او نسايي په روايتونو کې داسې الفاظ دي:"من أريدماله بغيرحق ، فقاتل و قُتل فهو شهيد."(۱)

که چېرې په ناحقه دچا دمال اخېستلو اراده وشي، او هغه د خپل مال دپاره وجنګېږي او مړ شي؛ نو دی شهيد دی.

داسې ډول جګړې چې د خپل مال او ځان د دفاع د پاره کيږي، دا په عامه توګه يو انفرادي نوعيت لري، او په دې سره په هېواد کې خورې ورې جګړې نه پېښېږي ، چې دا ډول جګړې په فتنې سره تعبير شوي دي او د دې اجازه شته. د دې برعکس که د جګړې موخه حکومت رانسکورول وي؛ نو په دې کې وينه تويول يقيني بربښي چې دا يوه ډېره ستره فتنه ده. او دا چې ځينو فقهاوو ليکلي: که چېرې ځيني خلک د ظالم واکمن پرضد راپورته شي؛ نو که د پاچا ظلم څرګند وي، د هغوی مرسته دې وشي او که ظلم څرګند نه وي؛ نو بيا دې نه د پاچا مرسته کيږي او نه دې د دې خلکو.(۲) نو د څرګند تېرې پروخت د دوی مرسته کول د حکومت رانسکورولو د پاره بغاوت نه دی، بلکې دا له ظلم نه دفاع کول دي.(۳)

د دې ترڅنګ مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله وايي: يو بل صورت داسې دی چې په هغه کې د امير ببلارې نورو ته متعدي کيږي، ياني امير د خلکو دين او عقائد خرابوي، د بېلګې په ډول: خلک پر ګناه کولو مجبوره کوي، که دا کار له يوه يا دوو کسانو سره کيږي؛ نو دا د اکراه حالت دی او د اکراه حکمونه به پرې جاري کيږي، خو که امير دا کار خپله پاليسي وګرځوي چې په ځانګړي توګه خلک په بدو کارونو کولو مجبوره کوي، او په دې کې

۱) جامع الأصول لابن اثير ، حديث ۱۲۴۲ ج۲ص۷۴۲.
۲) ردالمحتار، باب البغاة، ج۴ص۲۶۴ ، ۲۶۵.
۳) امدادالفتاوی ج۵ص۱۲۱.



په مسلسله توګه غير اسلامي قوانين پلي کول هم داخل دي؛ نو که د دې لامل داوي چې غير اسلامی قوانين د شريعت په پرتله غوره وګڼل شي، دا يو څرګند کفر دی، او که پر شرعي قوانينو فوقيت ورنه کړي؛ خو د خپلې رايې او تاويل پر بنياد د شرعي قانون غلطه تشريح وکړي او يا د سستي له امله دا کار کوي؛ نو په داسې وخت کې که څه هم دا څرګند کفر نه دی؛ خو له کفر سره تړاو لري، ځکه چې په دې سره د شريعت سپکاوی راځي؛ نو په داسې حالت کې د حکومت پرضد راوتل او غږپورته کول روا دي؛ خو دلته دوه خبرې په پام کې نېول اړين دي.

لومړی دا چې په ځانګړې توګه په دې اخري صورت کې د رايو اختلاف کېدلی شي چې آيا په مسلسله توګه د امير د شريعت څخه سرغړونې ته څرګند کفر ويل کېدلی شي او که څنګه؟ ځکه شونې ده ځينې خلک ووايي چې د ده پرضد بايد راووځو او ځيني نور به د دې نظر ملاتړ نه کوي ، داسې ډول اختلاف يو اجتهادي اختلاف دی، او په دې کې يو لوری هم پړ نه بلل کيږي. لکه د اسلام په لومړي پېر کې چې کله د يزيد او امويانو پرضد حضرت حسن رضي الله عنه يا د "حرّه" سيمې خلک راووتلل، په هغه کې هم ورته اجتهادي اختلاف و. دارنګه کله چې امام ابوحنيفه رحمه الله د زيدبن علی او ابراهيم نفس زکيه رحمهما الله د راوتلو ملاتړ کړی و، او په دې اړه ورسره نورو علماوو اختلاف درلود هغه هم يو اجتهادي اختلاف و.

دويمه خبره داده لکه څرنګه چې مخکې وويل شول، پر دې خبره ټول فقهاء کرام متفق دي چې د حکومت پرضد چې هرځای وسله وال پاڅون جائز وي، هلته دوه شرطونه ضروري دي. لومړی دا چې څوک د زور له لارې حکومت رانسکوروي؛ نو له هغه سره بايد دومره ځواک وي چې حکومت چپه کړای شي ، او دويم دا چې د دې حکومت په رانسکورولو سره به دا انديښنه نه وي چې بل تر دې ستر فساد به رامنځ ته کيږي. په دې اړه هم شونې ده د رايو

اختلاف موجود وي. همدا لامل و چې امام ابوحنیفه رحمه الله د حکومت پرضد راوتل روا ګڼلی و ؛ خو پخپله یې پکې برخه نه وه اخیستې، او د دې لامل یې دا بیان کړی و: "إن قام به رجل واحد قتل ولم يصلح للناس أمر ‘ ولكن إن وجد عليه أعوانا صالحين ورجلا يرأس عليهم مامونا في دين الله... وهذه فريضة ليست كالفرائض يقوم بها الرجل وحده ‘ وهذا متي أمر به الرجل وحده اشاط بدمه وعرض نفسه للقتل ‘ فأخاف أن يعين علي قتل نفسه."(۱)

که په دې اړه یو سړی راپورته شي، نو هغه به ووژل شي او د خلکو چارې به اصلاح نه شي. خو دا کار چې څو تنه نېکان خلک وکړي او یو مشر ولري چې هغه په سهي توګه پر دین ولاړ وي... او دا داسې فرض نه دی چې یو سړی یې په یوازې ادا کوي، دا داسې کار دی چې چا په یوازې وکړ؛ نو خپله وینه یې له لاسه ورکړه او ځان یې د مرګ کندې ته وغورځاوه، نو زه وېرېږم چې ده ځان په خپل لاس وواژه.

لنډه دا چې د اسلام په لومړي پېر کې د امام ابوحنیفه، حسن بن صالح بن حي رحمهم الله او نورو دا مسلک و چې د داسې ډول واکمن پرضد وسله واله مبازه روا ده چې د ده په حکومت سره د شرعي حکمونو سپکاوی راځي؛ خو وروسته بیا فقهاوو چې په هغو کې حنفي فقهاء هم دي پر دې خبره اتفاق وکړ چې له یوشمېر تجربو دا خبره ثابته شوې چې له داسې ډول وسله وال پاڅون څخه کله هم سمه نتیجه لاس ته نده راغلې؛ نو باید له دې ځان وساتل شي. په دې اړه حافظ ابن حجر رحمه الله د حسن بن صالح رحمه الله د یادونې په ترخ کې ، داسې لیکلي دي: {الحسن بن صالح} كان يرى السيف يعني

۱) الجواهر المضيئة للقرشي ‘ ترجمة ابراهيم بن ميمون الصائغ ص۵۰ ج۱.



كان يري الخروج بالسيف علي أئمة الجور. وهذا مذهب للسلف قديم ‘ لكن استقر الأمر على ترك ذلك لما رأوه قد أفضي إلي أشدّ منه‘ ففي وقعة الحرّة ووقعة ابن الأشعث وغيرهما عظة لمن تدبر . . . والحسن مع ذلك لم يخرج على أحد.(۱)

حسن بن صالح رحمه الله د ظالمو واکمنو پرضد وسله وال بغاوت روا ګڼلی و ، او دا د اسلافو پخوانی مذهب دی؛ خو وروسته ټول امت پر دې متفق شو چې داسې دې نه کیږي، ځکه چې علماوو ولیدل د وسله وال بغاوت په نتیجه کې تل تر پخوا ډېر بد حالت رامنځ ته شوی دی، چې په دې اړه د "حرّه" او "ابن الاشعث" پېښې زموږ د پاره یو ستر سبق دی. او حسن بن صالح رحمه الله د وسله وال بغاوت اجازه ورکړې وه؛ خو پخپله یې پکې برخه نده اخیستې.

او دارنګه ابن حجر رحمه الله د بخاري په شرح کې د عبدالله بن عباس رضي الله عنه د یو حدیث په څېړنه کې داسې وایي: "قال ابن بطال: في الحديث حجة في ترك الخروج علي السلطان ولوجار‘ وقدأجمع الفقهاء علي وجوب طاعة السلطان المتغلب والجهاد معه وأن طاعته خير من الخروج عليه لما في ذلك من حقن الدماء ‘ وتسكين الدهماء ‘ وحجتهم هذا الخير وغيره ممايساعده‘ ولم يستثنوا من ذلك إلا إذا وقع من السلطان الكفر الصريح‘ فلا تجوز طاعته في ذلك ‘ بل تجب مجاهدته لمن قدر عليها."

علامه ابن بطال رحمه الله وایي: په دې حدیث کې د دې خبرې د لیل دی چې پاچا که څه هم ظالم وي پرضد یې وسله وال بغاوت روا نه دی ، او ټول فقهاء پر دې یوه خوله دي چې کوم پاچا په زوره واک ترلاسه کړي په شرعي چاروکې

۱) تهذيب التهذيب ج۲ص۲۴۸ ‘ ترجمة الحسن بن صالح.

د هغه اطاعت کول او د هغه تر مشرۍ لاندې د دښمن سره جهاد کول هم روا دی، او دا چې د نوموړي اطاعت کول د ده پرضد له وسله وال بغاوت نه غوره دی، داځکه چې په دې سره د وینې توېدو مخنیوی کیږي او مصیبتونه له منځه ځي، او د فقهاوو دلیل همدا حدیث او له دې پرته نور هغه حدیثونه دي چې د دې تایید کوي، په دې تړاو علماوو یوازې هغه حکم مستثنی کړځولی چې په هغه کې ثرګند کفر وي، په داسې وخت کې بیا د پاچا اطاعت واجب نه دی بلکې د چا چې ثومره په وس کې وي جهاد دې ورسره وکړي.

خو امام ابوبکر جصاص رحمه الله بیا بل ډول رایه لري، نوموړي د "لاینال عهد الظالمین" په تفسیر کې د امام ابوحنیفه رحمه الله له رایې سره سم دا دریځ غوره کړی چې د داسې ببلارو واکمنو پرضد وسله وال بغاوت کول روا دی، په دې شرط چې بغاوت کونکي د مقابلې وس ولري او په دې سره کومه لویه فتنه نه رامنځ ته کیږي. تردې چې هغه دا هم ویلي چې د نا اهله او فاسق واکمن حکومت شرعا د اعتبار وړ نه دی، او نه هم د هغه احکام واجب التعمیل دي. خو داسې برېښي چې وروسته ټول فقهاوو هغه اجماعي دریځ غوره کړی چې مخکې حافظ ابن حجر رحمه الله بیان کړ.

شمس الائمه سرخسي رحمه الله د یوې مسئلې بیانولو په ترڅ کې وایي: "وبهذا اللفظ يستدل من يزعم أن الحاكم ينعزل بالجور' وليس هذا بمذهب لنا. وقدبينا ذلك فيما أملينا من شرح الزيادات في باب التحكيم.(۱)

له دې څخه هغه خلک استدلال کوي چې د ظلم له امله د واکمن ګوښه کولو پلوي کوي ، خو دا زموږ مذهب نه دی او دا خبره موږ د زیادات شرحې په باب التحکیم کې په پوره وضاحت سره بیان کړې ده.

[۱]) شرح السیر الکبیر' باب الاستئجار في ارض الحرب والنفل فقرة:۱۵۲۷' ج۳ ص۸۲۹.



## سیاسي تحریکونه

یوه بله مسئله چې دلته یې یادونه اړینه ده، چې په کومو حالاتو کې د حکومت پرضد راوتل ناروا دي ، په داسې وخت کې د حکومت د بدلون، په حکومت کومه روا غوښتنه منل او یا له هغه نه د خپلو حقوقو ترلاسه کولو سوله ییزه تګلاره څه ډول کېدلی شي ؟او د دې موخو ترلاسه کولو د پاره د نن سیاسي تحریکونه، لاریون، د لوړې احتساب، غونډې او نورې دودیزې کړنلارې ، د شریعت له پلوه تر کومه بریده روا دي؟

ننني نړۍ داسې ده چې زموږ د ژوند کړنلاره، په ځانګړې توګه د سیاسي ژوند چوکاټ له تېرو څو پېړیو را په دې خوا د لویدیځ د افکارو پر بنسټ تعمیریږي ، چې له همدې امله د بري نوې خبرې د سیاسي ژوند یوه لازمي برخه ګرځېدلې چې په هغو کې دا او سني لاریونونه، غونډې او نورې ځغاستې هم داخلې دي، چې موخه یې له همدې لارې حکومتي نظام په ټېپه درول او بالاخره خپلې غوښتنې پرې منل دي.

د داسې ډول سیاسي خوزښتونو او هلوځلو په اړه مسئله دا ده چې په دې کې ځینې کړنلارې بېخي ناروا او حرامې دي. لکه د لوږې احتساب چې د مرګ ترکندې ورسیږي، یا دې ته ورته نور هغه اقدامات چې د هغو له لارې د یوچا ځان، مال او عزت تر پښو لاندې کیږي، یا حکومتي املاکو ته زیان رسیږي، ځکه چې حکومتي املاک په حقیقت کې د واکمنو نه دي، بلکې دا د هیواد د ټولو وګړو اجتماعي ملکیت دی، او دې ته په زیان رسولو سره د ټول ولس مال تر پښو لاندې کیږي، او دا یوه داسې ګناه ده چې بخښنه یې ډېره ګرانه ده، ځکه چې د دې تړاو له حقوق العباد سره دی او حقوق العباد یوازې په توبې سره نه بخښل کیږي، بلکې له خپل څښتنه یې هم بخښنه ضروري ده، او په حکومتي املاکو کې څښتن ټول ولس دی او دا کار د یو انسان له وسې

بهر دی چې د ټول ولس له یوه یوه فرد نه بخښنه وغواړي. نو ځکه داسې املاکو ته زیان رسول تر شخصي املاکو ډېره درنه خبره ده.

ترکومه چې په عام لاریون پورې اړه لري؛ نو د دې حکم دا دی چې د حکومت د یوې پرېکړې په وړاندې د ناخوښۍ ښرگندولو لپاره که له عامو خلکو غوښتنه وشي چې کاروبارونه ودروي او له دوی سره په لاریون کې گډون وکړي او پر چا جبر ونه کړل شي؛ نو یوازې په داسې لاریون کې گډون کولو یا په خوښۍ عمل کولو کې د شریعت له پلوه کومه گناه نشته، او داسې لاریون د یو مباح په توگه روا دی په دې شرط چې د انسانانو ضروري اړتیاوې ترې مستثنی وي، لکه د ناروغانو درملنه او نور. خو نن په عملي توگه لاریون کونکي په دې خبره بسنه نه کوي بلکې د لاریون یوه لازمي برخه دا هم گرځېدلې ده چې لاریون کونکي خلک پخپلو کارونو بندولو مجبوره کوي. موټر چلونکي په ډبرو ولي، په لارو کې خنډونه جوړوي، او که څوک په لاریون کې برخه وانخلي؛ نو لږ ترلږه د پرېشانۍ او غوسې څخه خو بېخي نه خلاصیږي، یا په زوره په لاریون کې گډون ته اړ ایستل کیږي او یا ورباندې تېری کوي. څرگنده ده چې داسې ډول کړنې شرعا بلکل حرامې دي. د دې پایله دا وي چې نېستمن خلک چې د ورځې له مخې پخپلې روزۍ پسې راوتلې وي، له خپلې روزۍ بې برخې کیږي، ډېری ناروغانو ته د درملنې نه موندلو له امله ډېرې سترې فاجعې رامنځ ته شي او ډېر خولا د مرگ تر پولې ورسیږي.
او عجیبه ده چې له یوې خوا د جمهوریت او رایې ازادي خبره کیږي او له بلې خوا چې څوک په لاریون کې برخه نه اخلي هغه ته د خپلې رایې څرگندولو موکه نه ورکول کیږي. دا خبره نه له اسلام او نه هم د ازادۍ رایې څرگندولو له اصولو سره سمه ده. په عامه توگه نني لاریونونه له دې بد بختیو خالي نه وي.
داسې لاریون یا غبرگون چې غوښتونکی یې په اخلاقو او نېک چلند سره له خلکو غوښتنه وکړي او هرڅوک خپلې خوښې ته پرېښودل شي چې دوکان



بندوي او که نه یې بندوي ، داسې ډول لاریون تقریبا نن ناشونی دی، او چې کله یو مباح عمل د ناروا کارونو سبب گرځي نو د مخنیوي په توگه هغه کار شرعا ممنوع گرځول شوی دی که څه هم روا دی. له همدې امله د لاریون دا تدبیر چې په هغه کې کارونه په ټپه درېږي او امن له منځه ځي او د خلکو په کارونو کې خنډونه راولاړوي، دا تر شرعي تدابیرو لاندې نه راځي. او دا چې سیاست د دین اصلي موخه نه ده، موخه یوازې د الله تعالی اطاعت دی؛ نو په داسې وخت کې دې داسې لارې چارې ولټول شي چې له شریعت سره سمې وي چې په هغه کې د شریعت کوم حکم تر پښنو لاندې نه شي، کنه نو دا هیڅ مانا نه لري چې څوک د اسلام نافذولو د پاره تحریکونه چلوي او د اسلام حکومونه تر پښنو لاندې کوي.

همداسې مسئله د غونډو هم ده که په دې سره خلکو ته ستونزې نه جوړیږي؛ نو روا دي؛ خو په عامه توگه په دې کې هم عوامو ته ستونزې پېدا کول نن د غونډو یوه لازمي برخه گرځېدلې ده او څرگنده ده چې داسې کارونه نا روا دي.

اوس پوښتنه داده چې آیا په شریعت کې پر چارواکو د فشار راوړلو کومه تگلاره شته ؟ د دې پوښتنې ځواب دادی چې شریعت د یوې داسې کړنلارې وړاندیز کړی دی چې که ولس پرې عمل وکړي؛ نو ډېر غښتلي ظالم واکمنان به هم په یوځو کړیو کې له واکه گوښه کړل شي، او هغه کړنلاره داده، چې:
"لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق"

د خالق په معصیت کې د هیڅ مخلوق اطاعت نشته.

که چېرې دا اصول ومنل شي چې د هیڅ مخلوق په حکم به د خالق له امر نه سرغړونه نه کیږي؛ نو څومره غیري اسلامي حکمونه چې نافذیږي، که ټول ولس په یو غږ ووایې چې دا ډول حکمونه او قوانین موږ نه منو ، نو بیا به

حکومت د دې پربکړې په وړاندې څه وکړای شي؟ فرض کړئ که په محکمو کې ناست قاضيان پربکړه وکړي چې ترڅو موږ ته له شريعت سره سم د پربکړو کولو حق را نکړل شي تر هغو به په محکمو کې کار ونه کړو ، او وکيلان ووايي چې ترڅو قوانين له شريعت سره برابر نه شي ، تر هغو به موږ په محکمو کې د وکيلانو په توګه خپله دنده تر سره نه کړو ، که د بانک چارواکي پربکړه وکړي چې ترڅو د بانک نظام له سوده پاک نشي ترهغو موږ په بانکونو کې کار نه کوو ، او ولس دا پربکړه وکړي چې ترڅو بانکي نظام له سوده پاک نشي ترهغو به موږ خپله سرمايه په بانک کې خوندي نه کړو ، او ټول تجاران په يوه خوله ووايي چې ترڅو بانک له سودي نظام نه پاک نشي ترهغو به موږ له بانکونو سره راکړه ورکړه نه کوو. که د "لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق" پر بنسټ چې د ټولو مسلمانانو شرعي دنده ده، ټول ولس په يوه خوله د غير شرعي حکمونو له منلو انکار وکړي؛ نو څرګنده ده چې په کومه ورځ داسې احتجاج وشي ، په هغه ورځ به په څو ګړيو کې دننه حکومت دې ته اړ شي چې اصلاحات راولي.

دا شرعي احتجاج دی، خو له دې امله چې داسې احتجاج يو څه قرباني غواړي؛ نو عملي کول يې ګران دي. دا خبره ډېره اسانه ده چې يو کس سود خوري او بيا د کوم سياسي ګوند په غونډه کې د اسلام ناره پورته کوي، او دا هم اسانه ده چې يوتن د غير اسلامي قوانينو په رڼا کې پربکړې هم کوي، او د همدې پر بنياد وکالت هم کوي، او بيا چې کله لاريون يا غونډه کيږي؛ نو تر ټولو وړاندې پکې دی د اسلام زنده باد نارې پورته کوي. خو دا خبره چې خپل وکالت، يا قانون داني، يا بانکي او يا د ايکاونټ او نورو دندو څخه د وسلې کار واخلي او د غير شرعي حکومت پرضد يې وکاروي، دا کار يو څه همت او قرباني غواړي.



داسهي ده چې دا ډول احتجاجونه هغه مهال اغېزمن او ګټور کېدلی شي چې د ولس اکثريت يا د هغوی دومره لوی شمېر پکې برخه واخلي چې پر چارواکو اغيز شېندلی شي، خو د دې کار د پاره ذهنا خلک تيارول او په هغو کې شعور پېدا کولو ته اړتيا ده. که يوځل همدا کړنلاره په ذهن کې کښېنول شي او سياسي ګوندونه يې د زړه له کومې ومني؛ نو بيا به د دې د پلي کولو د پاره يو بنسټيز پلان جوړ کړي. د ذهن جوړونې يو پراخه پروګرام دې جوړ کړل شي، او د دې موخې د پاره دې له تعليمي ادارو بيا تر ولسي غونډو يو کمپاين وچلول شي، په هغه کې دې لومړی دا د خلکو په ذهن کې کښېنول شي چې په غير شرعي کارونو کې مرسته کونکي چارې د دنيا او اخرت دواړو د پاره څومره زيانمني او بې برکته دي، او حلاله روزي د يو مسلمان د پاره څومره اړينه ده. چې کله د ولس لوی اکثريت د داسې دندو څخه دومره نفرت وکړي چې هغه پرېږدي او پر کمه روزي صبر وکړي، او د دې د پاره نورو قربانيو ته هم تيار شي؛ نو هغه مهال به کمپاين بې سارې اغيز ولري. تاسو ته معلومه ده ، په پاکستان او نورو هېوادونو کې بېلابېلو پوځي مشرانو څومره ځله د هېواد دستور مات کړی دی. هر ځل دوی ځکه کامياب شوي وي چې د محکمې قاضيانو د دوی اقداماتو ته د جواز سند ورکړی وي. او کله ناکله داسې هم شوي وي چې يو قاضي د دستور پرضد اقدام کولو څخه نټه کړې وي او خپله دنده يې قرباني کړې وي. بې شکه چې داسې قاضيانو صاحبانو قربانۍ ورکړي او ګړاوونه يې ګاللي دي، چاچې داسې هڅه کړې ولس تل هغوی ته په خپلو زړونو کې ځای ورکړی دی، پر دوی وياړلي او دوی يې ستايلي دي، که ټول قاضيان همداسې وکړي ؛ نو دا به ناشونې وي چې څوک قانون مات کړي. د الله تعالی ستره لورينه ده چې زموږ اساسي قانون قرآن او سنت دی، که د دې د ساتنې د پاره په ولس کې جذبه پېدا کړل شي؛ نو د "لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق" همدا اصول تر ټولو سوله يزه او اغېزمنه تګلاره کېدلی شي.

## سیاسي هلي ځلې او د نفس اصلاح

دلته دا خبره هم ډېره مهمه ده چې په اسلام کې د سیاسي هلو ځلو اصلي موخه واک ته رسېدل نه دي، بلکې د دې اصلي موخه د الله تعالی خوښې ترلاسه کول، د حکومتي نظام اصلاح او د الله تعالی له حکمونو سره سم چلول دي. د دې د پاره دا هم اړینه نده چې یو فرد یا گوند دا هلي ځلي کوي هغه دې پخپله واک ته ورسیږي او د حکومتي نظام اصلاح دې وکړي، که دا موخه د شته واکمنو څخه یا د یو بل فرد یا گوند له لارې ترلاسه کېدلی شي؛ نو پخپله واک ته ځان رسول ضروري نه دي، د داسې ډول سیاسي ځغاستو د پاره اړینه ده چې د کارکوونکو په زړه کې بشپړ اخلاص وي، او د چوکۍ او واک له مېني پاک وي. خو نن چې په عملي ډگر کې کوم خلک داسې ډول هلو ځلو ته ورودانگي او په هغو کې گډون وکړي؛ نو دا داسې ډگر دی چې پکې شهرت، په ولس کې مقبولیت او له چوکۍ سره مینه پیدا کیږي. بیا له انسان نه اصلي موخه هېره شي او په دې لټه کې شي چې په څه شي ولس خوښ وساتي او خپلې نمرې لوړې کړي. پایله یې دا شي چې د سیاسي خوزښتونو او تنظیمونو رهبران هم د ولس د سهي لارښوونې پرځای د هغوی په خواهشاتو پسې ولاړ شي، او خپلې فیصلې د هیواد او ملت د رښتوني پرمختگ او کامیابۍ پرځای پر دې بنیاد پرمخ بیایي چې څه ډول ولس خوښ وساتي. او دا فتنه د سیکولر دموکراسۍ اصلي ځانگړنه ده چې اسلامي دولت یې نه مني. کله چې په سیاسي ځغاستو کې نیت شهرت او مقبولیت ترلاسه کول وي؛ نو د ټول خوزښت لید لوری به په ناسمه لار درومي او هیڅکله به یې د الله تعالی مرسته په برخه نشي. نو ځکه اړینه ده چې د سیاسي خوزښتونو مشري د داسې خلکو په لاس کې وي چې لومړی دوی پخپله د روحاني روزنې له مرحلو راتېر شوي وي، او خپل ځانونه یې تر ډېره بریده د چوکۍ او مقبولیت له مېنې ازاد ساتلي وي.



که د رسول الله صلی الله علیه وسلم ژوند ته وگورو، د هغه ټول ژوند پر دوو برخو وېشل شوی: مکي ژوند او مدني ژوند. د مکې ژوند دیارلس کاله داسې تېر شوي چې نه پکې جهاد و، نه حکومت او نه هم سیاست. بلکې په دې موده کې داسې حکم و چې څوک مو وهي؛ نو تاسو صبر کوئ "واصبر وماصبرک الا بالله" پر دښمن د لاس پورته کولو اجازه هم نه وه. مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله وایي چې د صبر دا حکم چې د ظالم په وړاندې لاس هم مه پورته کوئ، یوازې له دې امله نه و چې هغه مهال مسلمانان کمزوري وو، ځکه چې په مدینه کې هم په لومړي سر کې دوی ډېر زورور نه وو. **۳۱۳** تنه چې له هغو سره یوازې اته توري او دوه آسونه و، له زر کسیزه په وسلو سمبال لښکر سره مقابله کولی شي؛ نو په مکه کې یې هم لږترلږه دومره خو کولی شول چې څوک یې په دواړو لاسونو ووهي دوی په یوه لاس خپله دفاع وکړي. دومره کمزوري خو نه وو چې په یوه لاس هم څه و نه وایي. له دې نه مالومیږي چې دا حکم یوازې د کمزورۍ له امله نه و، بلکې لامل یې دا و چې په دې پوره دیارلس کلونو کې د افرادو جوړونه او د انسانانو اخلاقي روزنه کېدله، د دوی د خویونو او کړنو سمونه کېدله، او د دوی زړونه د چوکۍ او واک او نورو خواهشاتو له مېني پاکېدل، ټول ژوند دېته وقف شوی و چې څه ډول د خلکو په زړونو کې د اخرت فکر پیدا شي. د دې یو لامل دا هم دی چې کله یو انسان سیاسي هلو ځلو ته راوځي؛ نو دا یو ازغن ډگر دی. په دې کې انسان د چوکۍ او مال مېنې په فتنه کې راگېرېږي. نو ځکه به لومړی د ده کړه وړه او اخلاق برابرېږي او په زړه کې به یې د اخرت فکر او تقوا راپېدا کیږي. بیا چې کله الله تعالی دوی له بدو اخلاقو پاک کړل؛ نو په مدینه منوره کې داسې بې ساری اسلامي ریاست رامنځ ته شو چې د ځمکې پرمخ نه مخکې چا لیدلی و او نه به یې هم وروسته ووینې. خو د داسې ریاست د پاره دیارلس کاله له صبر نه کار اخیستل شوی و او په دې موده کې د افرادو روزنه شوې وه.

نو کوم مشران چې د اسلامي امت د سیاسي بېړۍ قیادت کوي، د هغوی لپاره په ځانګړي توګه اړینه ده چې خپل ځان د روحاني روزنې له مراحلو داسې راتېر کړي چې په زړونو کې یې د بد اخلاقۍ یوه نښه هم پاتې نه وي، او د چوکۍ او شهرت له مینې او د ولس د مقبولیت له شوق څخه ځان پاک کړي، یا لږ ترلږه خپل نفسیاتي جذبات دومره مغلوب کړي چې د الله تعالی خوښي په ښه توګه ترلاسه کړای شي. همدا د اسلامي سیاست اصلي تګلاره ده چې د نفسیاتي خنډونو د له منځه وړلو پرته نشي ترلاسه کېدلی.

یا مکن با پیل بانان دوستي

یا بنا کن خانه بر انداز پیل

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمین.





# مل

## د هېواد دستور

په نننۍ نړۍ کې هر هېواد یو دستور لري. په مخکنیو پاڼو کې چې د اسلامي سیاست کوم اصول وڅېړل شول، اړینه ده چې په اوس وخت کې دا د هېواد د دستور په توګه مدون او نافذ کړل شي ترڅو یې هر عام او خاص وکړي وپېژني. مخکې چې کوم احکام بیان شول په هغو کې زیات شمېر حکمونه د دې وړ دي چې د دستور برخه وګرځول شي. خو ډېر وخت مخکې ما په دې تړاو دوه مطالب لیکلي و چې په یوه کې د دستور د قرآني بنیادونو یادونه شوې وه، او په بل کې حالاتو ته په پام سره په پاکستان یا نورو هېوادونو کې د اسلامي دستور بنسټیزي غوښتنې څېړل شوي وې، غواړم همغه دواړه مطالب د ضمیمې په توګه دلته راوړم.



## د اسلامي دستور مفهوم

هغه ذات لره ستاینه ده چې د کائناتو دې کارخانې ته یې وجود ور په برخه کړی دی، او د هغه پر وروستي پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم دې سلام وي چې نړۍ یې د جهالت له تیارو وژغورله او د حق او پوهې رڼا یې خپره کړه.

د یو هېواد دستور او قانون په حقیقت کې د بنسټ هغه لومړنۍ ډبره ده چې د حکومتي نظام ټوله ودانۍ پرې ولاړه وي، د هېواد ودانول او پرمختګ، په هېواد کې ټیکاو، پایښت او سوکالي راوستل او د وګړو امن او ډاډ دا ټول پر همدې بنیاد ولاړ دي او که دا بنسټیزه ډبره غلطه کېښودل شي نو د هېواد ټول نظام به بې ثباته وي.

"قانون" په اصل کې د هغو اصولو د مجموعې نوم دی چې د دې په خپلولو سره حکومتي چارې پرمخ بېول کیږي. په دې اسنادو کې دا خبرې وړاندې کیږي چې د حکومت سیاسي موخې او سیاسي پالیسي باید څه ډول وي؟ د هیواد وګړو ته دې کوم کوم حقوق ورکړل شي؟ له حکومت سره باید څه ډول اختیارات وي او په کومو حدودو کې دننه یې کارولی شي؟ د حکومت د تشکیل تګلاره به څنګه وي؟ اسامبلۍ د کومو تګلارو سره سم ټاکل کیږي؟ د ولسمشر او وزیرانو او د جرګې غړو د پاره کوم صفتونه ضروري دي؟ د دوی ټاکل او ګوښه کول به څوک کوي؟ د قانون جوړونې حق به له چا سره او تر کومه بریده وي؟ محکمې به د کوم نظام تر سیوري لاندې کار کوي؟ او دوی به تر کومه بریده د حکومت له اغېزه ازادې وي؟ د رسمي چارواکو ټاکنې، ګوښه کول او پر مختلفو څانګو د دندو وېش به پر کوم بنیاد کیږي؟ بودیجه څه ډول او د کومو موخو د پاره تیاریږي؟ او پر عوامو د مالیې لګولو بنیادي اصول کوم کوم دي؟ ولایتي حکومتونه څه ډول جوړیږي؟ د دوی د اختیاراتو حدود څومره دي؟ او مرکز به په کومو چارو کې پر دوی برلاسی وي؟ په بېړنیو حالاتو کې په ځانګړي ډول د جګړې پروخت د حکومت چوکاټ تر کومه بریده بدلیدای شي؟ او په داسې وخت کې حکومت کوم ډول ځانګړي اختیارات کارولی شي؟ دا ټولې خبرې په دستور کې وړاندې کیږي او بیا د حکومت ټول ماشین د دې خبرو پابند وي.

یو ځل چې یو دستور نافذ شي بیا اړینه ده چې د حکومت ټولې چارې له هغه سره سم پرمخ یوړل شي، او د حکومت هغه اقدامات به په ستره محکمه کې چیلنج کېږي چې له دستور سره ټکر ولري، که په دستور کې کومې غلطۍ مادې ورځای کړل شي او بیا حکومت له هغو سره سم خپلې چارې پرمخ بیایي؛ نو د داسې پرېکړو پروخت بیا نه له ولس سره د محاسبې کومه لار شته او نه هم د دې اصلاح کېدلای شي، که داسې وشي؛ نو د یو



دستور د نافذولو وروسته د دې بدلون څومره ګران دی؟ د دې اټکل هغه ولس ته ښه معلومیږي چې په (۱۹۶۲ز) کال کې د قانون بدلولو د پاره یې د نه منلو وړ زیانونه وګالل او د هغه سخت ګوزار له امله اوس هم سم برابر نه دی.

په یوه هیواد کې چې د دستور جوړونې کار پیلیږي، دا یو ډېر دقیق کار دی، دا پراخه نظر، ځیرکتیا، تحمل او بشپړ سوچ او فکر او پوره هڅې ته اړتیا لري، که څه هم دستور جوړونکي مخامخ د ولسي جرګې غړي وي، خو عوامو ته هم دا نه ښایي چې د دستور جوړونې پرمهال غافله او لاس تر زنې کښېني، دوی باید په هر پړاو کې ویښ واوسي. ولس د جرګې غړو ته د دې له پاره د باور رایه ورکړې ده چې د دوی له هېلو سره سم دستور جوړ کړي، خو که دوی هر وخت د عوامو هیلې له ګواښ سره مخ کوي؛ نو بیا ولس بشپړ اختیار لري چې له خپلو نماینده ګانو پوښتنه وکړي او د ېته یې اړباسي چې د ولس له خوښې سره سم کار وکړي.

دا بدیهي خبره ده چې په یو اسلامي هیواد کې یوازې هغه دستور په بریالیتوب سره نافذیدلی شي چې د اسلامي لارښوونو سره برابر وي او پر دې خبره به ټول اعتراف کوي چې دستور باید یوازې د اسلام په چوکاټ کې جوړ کړل شي؛ خو بنیادي خبره داده چې کوم ګوندونه په ولسي جرګه کې اکثریت لري چې په قانون جوړونه کې زیات رول د دوی وي، خپله هغه ژمنه تر کومه بریده پوره کولی شي چې له ولس سره یې کوي؟ دلته موږ په لنډه توګه دا خبره په ډاګه کوو چې اسلامي دستور څه ته وایي؟ هغه کومې ځانګړتیاوې دي چې د هغوی پر بنسټ یو دستور ته اسلامي دستور ویلی شو چې له دې پرته بل اسلامي دستور نه بلل کیږي؟ دا خبره په ډاګه کول له دې امله ډېره اړینه ده چې د خلکو ذهنونو ته د اسلامي دستور اصلي چوکاټ ولویږي چې د دې معیار پربنسټ نور دستورونه وڅاري چې ایا دا اسلامي دستور دی او که څنګه؟ او یو مسلمان قوم ته تر کومه حده د منلو وړ ګرځېدلی شي؟

موږ چې کله دا خبره کوو چې اسلام موږ ته د ژوند په هره برخه کې لارښوونې کړې دي، له دې نه زموږ مراد دا نه وي چې د ژوند هرې وړې وړې مسئلې په اړه به په قرآن او حدیثو او یا په اسلامي فقهه کې څرګند حکم موجود وي، د دې مطلب دا دی چې اسلام د ژوند په هره برخه کې ځینې داسې اصول او بنیادي احکام ټاکلي دي چې د هغو په رڼا کې د دې برخې ټول جزئیات ټاکل کېدلی شي، یو له هغو نه حکومتي دستور هم دی ، اسلام موږ ته د دستور په اړه ځینې بنسټیزې لارښوونې کړې دي، هیڅ څوک اختیار نه لري په دې بنیادي لارښوونو کې بدلون راولي، که ټول ولس راپورته شي او په دې کې د څه لاس وهنې غوښتنه وکړي هم یې نشي کولی؛ خو د دې لارښوونو منلو وروسته نور جزئي معاملات د امت اجتماعي مشورې ته پرېښودل شوي دي، په هغو کې که امت کومه پرېکړه کوي؛ نو اسلام ورسره کومه ستونزه نه لري.

په دستور کې چې کوم مسائل تر بحث لاندې نیول کیږي په هغو کې زیاتره مسائل داسې وي چې د اسلام بنیادي اصولو ته په پام سره چې کومه خبره په خپل منځي مشورې سره وړاندې شي، هغه د اسلامي شریعت له مخې روا بلل کیږي. مقننه که یوه جرګه وي او که دوه؟ د هیواد رسمي ژبه کومه یوه وي؟ د هیواد ولایتونه به څومره وي؟ د هیواد پاینېت او ټیکاو ساتلو په موخه د ولایتونو اجرائیه اړیکه باید له مرکز سره څنګه وي؟ د مقننې او کابینې غړي څومره وي؟ د حساب د پاره دې کوم ډول تګلاره غوره کړای شي؟ په داسې ډول مسائلو کې اسلام د دې پرځای چې خپله اصول وټاکي د امت اجتماعي مشورې ته یې پرېښي دي؛ نو په داسې معاملو کې چې ولس پر کومه خبره سلا شي د اسلام له نظره هغه سهي او د عمل وړ وي.

خو ځینې بنسټیز مسائل داسې دي چې په هغو کې هیڅوک د بدلون راوستلو اختیار نه لري، یوازې د اسامبلې غړي په اتفاق سره نه بلکې د



ولسي ټولپوښتنې له لارې هم په دې کې څه بدلون نشي راتلی، او که په یو دستور کې دېته پاملرنه ونه شي، هغه ته اسلامي دستور نه ویل کیږي، هغه بنیادي مسائل په لاندې ډول دي:

۱. ستر واک یوازې د الله دی.

" إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلّهِ " (۱۲: ۴۰)

حاکمیت یوازې د الله تعالی دی.

دا د اسلامي دستور هغه ماده ده چې اسلامي نظام له بې دینه جمهوري نظامونو جلا کوي، په بې دینه جمهوریتونو کې د حاکمیت سرچینه ولس ګڼل کیږي، د دوی په باور که ولس په زیاتو رایو سره داسې پرېکړه وکړي چې هغه د الله تعالی له احکامو سره ټکر ولري؛ نو کولی یې شي؛ خو په اسلام کې د حاکمیت اصلي حق له الله پرته د بل چا نه دی، او انسان ته د الله تعالی د خلیفه په توګه اختیارات ورکول کیږي: إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً (۲: ۳۰)

زه په ځمکه کې د یو نائب راپیدا کونکی یم.

نو ځکه انسان حق نه لري چې د الله تعالی د حکم خلاف کومه پرېکړه وکړي.

۲- د قرآن او حدیثو خلاف به هیڅ ډول قانون د منلو وړ نه وي، او نه هم داسې قانون پاتې کېدونکی دی، دغه راز څوک نشي کولی د قرآن او حدیث خلاف کوم اجرائي حکم تر سره کړي.

وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ (۵: ۴۴)

ژباړه: او چاچې په الله رانازل کړي قانون فیصله ونه کړه نو همدوی کافران دي.

۳- د حکومت بنسټیزه موخه به عدل او انصاف پلی کول وي، داخلي او خارجي فتنې او فساد به له منځه وړي، د مسلمانانو د پاره به د عبادت کولو لارې چارې برابروي، خلک به نیکي ته رابلي او له بدي به یې ایساروي.

اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَ اَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَ نَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ. (۴۱:۲۲)

ژباړه: دوی هغه خلک دي چې که موږ په ځمکه کې قدرت ورکړو، لمونځ ترسره کوي، زکات ورکوي، د نیکۍ امر کوي او له بدۍ نه ایسارول کوي.

وَ اِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ (۵۸:۴)

ژباړه: او چې کله مو د خلکو ترمنځ فیصله کوله نو په عدل سره فیصله وکړئ.

وَ لَوْ لَا دَفْعُ اللهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ (۲۵۱:۲)

ژباړه: او که د الله دا د ځینو خلکو ایسارول په ځینو نه وي؛ نو ځمکه به تباه شوې وه.

۴- د هیواد ټولې وظیفې او مالونه د چارواکو په لاس کې امانت دی؛ نو حکومت مسؤلیت لري چې دا امانت خپلو مستحقینو ته ورسوي.

اِنَّ اللهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا (۵۸:۴)

ژباړه: بې شکه الله تاسو ته امر کوي چې امانتونه خپل اهل ته وسپارئ.

۵- حکومتي بڼه به آمرانه نه وي، بلکې شورايي بڼه به لري او ټولې مهمې چارې به د وګړو سره په مشوره تر سره کیږي.

وَ اَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ (۳۸:۴۲)

ژباړه: د دوی هر کار په خپل منځي مشورې سره وي.

۶- یو والی به د ملت بنسټ وي او د هیواد مشر د پاره لازمه ده چې د مسلمانانو له منځ نه جغرافیایي، قبایلي، نژادي، ژبني او نور غیر اسلامي تعصبات لرې کړي او د اسلامي ملت یوالي او پایښت د پاره کار وکړي او د ټولو مسلمانو وګړو ترمنځ به ټولنیز مساوات پرځای کوي.



اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ (۱۰:۴۹)

ژباړه: بې شکه ټول مؤمنان سره وروڼه دي.

وَ جَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّ قَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللهِ اَتْقٰكُمْ (۱۳:۴۹)

ژباړه: او د دې د پاره مو خېلونه او قبیلې وګرځولئ چې سره و پېژنئ، کنه نو د الله په وړاندې خو ستاسې ډېر عزتمن هغه دی چې ډېر تقوا لرونکی وي.

۷- د هیواد مشر د پاره اړینه ده چې مسلمان او ربښتونی وي او د علمي او عملي صلا حیتونو څښتن وي.

لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ (۱۲۴:۲)

ژباړه: زما عهد ظالمانو ته نه ورکول کیږي.

اِنَّ اللهَ اصْطَفٰهُ عَلَيْكُمْ وَ زَادَهٗ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَ الْجِسْمِ (۲۴۷:۲)

ژباړه: حقیقت دا دی چې هغه خو الله درباندې غوره کړی او په علم او بدن کې یې پراخي او قوت ورکړی.

۸- ټولو وګړو ته دې د دوی د بنیادي حقوقو ضمانت ورکړل شي، چې په هغو کې د ځان، مال او د مذهب ساتنه او د نیکو مقاصدو د پاره د ګوند جوړونې او د صحت ساتنې ضمانت هم شامل دی.

وَ لَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللهُ اِلَّا بِالْحَقِّ (۳۳:۱۷)
وَ لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ (۱۸۸:۲)
لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ (۱۱:۴۹)
لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ (۲۵۶:۲)
وَ لْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ (۱۰۴:۳)
كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ (۱۱۰:۳)

او هغه کس مه وژنئ چې الله یې مرګ حرام کړی مګر په حقه... او د یو بل مال په باطله مه خورئ.. یو قوم په بل پورې ملنډې مه وهئ... په دین کې زور نشته.. تاسې باید یو ملت یاست چې نیکۍ ته بلنه کوئ.. تاسو یو غوره امت یاست له هغو نه چې خلکو ته را برسېره شوي دي چې د ښېګڼې امر کوئ او له بدیو ایسارول کوئ.

۹- چا ته دې د جرم له ثبوت پرته جزا نه ورکول کېږي.

اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ فَتَبَيَّنُوْٓا اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًاۢ بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوْا عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِيْنَ (۶:۴۹)

ژباړه: که یو فاسق سړی څه خبر درته راوړي؛ نو ښه پلټنه کوئ، هسې نه چې کوم قوم ته په ناپوهۍ سره څه ضرر ورسوئ. بیا په خپلو کړو پښېمانه شئ.

۱۰- قضا به د عدل او انصاف غوښتنو پوره کولو د پاره له هر ډول فشار نه ازاده وي، او له شرعي قانون پرته دې د بل چا لاس وهنه نه مني.

كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَ لَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَ الْاَقْرَبِيْنَ (۱۳۵:۴)

ژباړه: تل په عدل محکم ولاړ اوسېږئ، د الله د پاره شاهدان، که څه هم پر خپلو ځانو مو وي یا پر مور و پلار او خپلوانو.

فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَ لَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ (۴۸:۵)

ژباړه: نو د هغوی ترمنځ په هغه څه فیصله کوه چې الله رانازل کړي او کوم حق چې درته راغلی له هغه نه په مخ اړولو سره د دوی په هوسونو پسې مه ځه.

۱۱. نېستمن، معیوب او بې برخې کسانو د پاره د ژوند د اړتیا ټولو شیانو د پوره کولو دې پوره لارې چارې ولټول شي او د اجتماعي دولت وېش دې داسې وشي چې د هېواد ټولو وګړو ته په منصفانه توګه خپل خپل حق ورسیږي، او یوازې د شتمنو لاسونو ته دې نه لوېږي.



مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ وَ لِذِي الْقُرْبٰى وَ الْيَتٰمٰى وَ الْمَسٰكِيْنِ وَ ابْنِ السَّبِيْلِ كَيْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ (۷:۵۹)

ژباړه: د کلیو د خلکو هغه مالونه چې (بې جګړې) الله په خپل رسول راګرځولي؛ نو د الله، رسول، د رسول الله خپلوانو، یتیمانو، مسکینانو، او مسافرو د پاره دي، ترڅو هغه (یوازې) ستاسې د شتمنو ترمنځ لاس په لاس ګرځېدونکي نه وي.

وَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَ الْمَحْرُوْمِ (۱۹:۵۱)

ژباړه: او په مالونو کې به یې د سوالګر او سوال نه نکونکي د پاره برخه وه.

وَ لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ (۱۸۸:۲)

ژباړه: او تاسو د یو بل مالونه په ناحقه مه خورئ.

۱۳. پر وګړو به داسې مالیه نه لګول کېږي چې د دوی له وسه بهر وي، او نه به پر دوی داسې حکم تحمیلیږي چې د دوی له وسه پوره نه وي.

وَ يَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَ الْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ (۱۵۷:۷)

ژباړه: او درانه پېټي یې ترې ایسته کوي او هغه بندیزونه چې پر دوی و ماتوي یې.

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا (۲۸۶:۲)

ژباړه: الله هیڅوک له خپلې وسې پورته نه مکلف کوي (نه نیسي)

۱۴- ټولو مسلمانانو وګړو ته دې د تعلیم او تربیې داسې اسانتیاوې برابرې کړي چې د هغو له مخې دوی له قرآن او بنیادي اسلامي معلوماتو خبر شي، او په دنیا کې د اسلامي لارښوونې سره سم سوکاله ژوند تېر کړي، د دې ترڅنګ په ټولنیزو علومو او فنونو کې زیات کمال ترلاسه کړي او خپل هیواد پرخپلو پښو ودروي او د نورو له احتیاجه یې خلاص کړي.

وَ يُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ (۱۲۹:۲)

ژباړه: او د (پیغمبر) دا دنده هم ده چې خلکو ته قرآن او پوهه وښايي.

**۱۵** د هیواد نامسلمانه وګړو ته (په دې شرط چې مرتد نه وي) به په بنسټیزه توګه هغه انساني حقوق برابروي چې مسلمان وګړي ورڅخه برخمن دي.

وَ اِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖ (۹۲:۴)

ژباړه: او که (په خطا قتل کونکی) له داسې قوم نه و چې ستاسې او د هغوی ترمنځ تړون وي (ذمي وي) نو تېرته یې د وینو سپارل شوې بیه ده.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ (۱:۵)

ژباړه: اې مؤمنانو ! پر خپلو ژمنو ودرېږئ.

**۱۲ – د جهاد فرض حکم به د اسلامي لارښوونو سره سم پرمخ بېول کیږي.**

وَ جَاهِدُوْا فِي اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ (۷۸:۲۳)

ژباړه: او د الله په لار کې څنګه چې ښايي هغه شان جهاد وکړئ.

۱۷ - له نامسلمانه دولتونو سره دې کوم چې له اسلام او مسلمانانو سره کینه نه ساتي، سوله بزې اړیکې او غوره تعلقات جوړ کړل شي.

لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَ لَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَ تُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ (۸:۶۰)

ژباړه: چاچې په دین کې تاسو سره جګړه نه ده کړې او له خپلو کورو یې بهر نه یئ وېستلي؛ نو الله مو هغوی سره له ښېګنې او انصافه نه ایساروي، یقینا انصاف داره خلک د الله ښه ایسي.

۱۸- له نورو هیوادونو سره کړي تړونونه چې شرعا روا دي، پر هغوی به ژمن پاتي کېږي، کنه نو د تړون د ختمیدو اعلان به کوي.



اِلَّا الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوْكُمْ شَيْـًٔا وَّ لَمْ يُظَاهِرُوْا عَلَيْكُمْ اَحَدًا فَاَتِمُّوْٓا اِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ اِلٰى مُدَّتِهِمْ (۴:۹)

ژباړه: پرته له هغو مشرکانو چې تړون مو ورسره کړی او بیا یې نه څه نېمګړتیا درسره کړې او نه یې ستاسې په خلاف د چا ملا تړلې ده، نو تاسو هم تر هماغې نېټې لوز ورسره پوره کړئ.

وَ اِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً فَانْۢبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ (۵۸:۸)

ژباړه: او که د کوم قوم له ټګې وېرېږې نو په څرګنده یې تړون ورو غورځوه یو برابر.

**۱۹.** نامسلمانه خلکو ته به په هیواد کې یوه داسې لویه دنده نه ورکوي چې د مسلمانانو له رازونو سره تړاو لري.

لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا (۱۱۸:۳)

ژباړه: د خپلو مؤمنانو پرته مو څوک د راز ملګري مه نیسئ، دا خلک د هیڅ فساد او ضرر کمی او سپما درباندې نه کوي.

۲۰ ـ د دستور دا ټکي چې مخامخ له قرآن او حدیثو نه اخېستل شوي دي، هیڅکله او له هیڅ لارې په دې کې بدلون نشي کېدلی.

وَ تَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّ عَدْلًا لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ (۱۱۵:۶)

ژباړه: او ستا د رب وینا په رښتینولۍ او عدالت کې پوره کړه ده، هیڅوک د هغه د خبرو (حکم) بدلوونکی نه دی.

دا د اسلامي دستور هغه مهم ټکي دي چې د دې په پام کې نیولو پرته دستور ته اسلامي نه ویل کیږي، موږ پورته د دې دستور ټکو د ماخذ په توګه په لنډه توګه یوازې قرآني ایاتونه وړاندې کړل، بلکې په نړۍ کې تر ټولو لومړنی لیکلی دستور پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه منوره کې د حکومت جوړولو وروسته تیار کړی و، او په هغه کې د مدینې د

مسلمانو او نامسلمانه وګړو حقوقو او نورو يادونه شوې وه، دا د يو سند په توګه ليکل شوی و او په اووه ځلويښت مادو کې تيار کړل شوی و، او د سيرة النبي مشهور ليکوال ابن هشام په خپل سيرت کې را اخيستی دی.

اوس پوښتنه داده چې څنګه موږ کولی شو دا ټکي د خپل دستور مهمه برخه وګرځوو؟ په دې اړه د څېړنې وروسته علماء کرام کولی شي دا او نور مهم ټکي راجمع کړي او د يو اسلامي دستور په توګه يې وړاندې کړي.

**محمد تقي عثماني**

**۹۰/۱۲/۲۰**

**(البلاغ، محرم ۱۳۹۱هـ)**






## د دستور اسلامي مادې

هغه ذات لره ستاينه ده چې د کائناتو دې کارخانې ته يې وجود ور په برخه کړی دی، او د هغه پر وروستي پيغمبر محمد صلی الله عليه وسلم دې سلام وي چې نړۍ يې د جهالت له تيارو وژغورله او د حق او پوهې رڼا يې خپره کړه.

په مخکيني مضمون کې موږ د اسلامي دستور بنسټيزې ځانګړتياوې بيان کړې او ژمنه مو کړې وه چې د البلاغ مجلې د صفرې مياشتې ګڼه کې به هغه عملي لارې چارې په ګوته کوو چې د هغو په مټ دا بنسټيزې ځانګړنې په نوي دستور کې خوندي کړل شي. نن چې هيواد له کوم بحران سره لاس وګريوان دی مخکې يې تصور هم نشو کېدلی ، او اوس هم چې ګړۍ په ګړۍ څه ډول حالات بدليږي رابدليږي، دېته په پام سره سړی نشي ويلی چې د دې ټکو د لوستلو پر وخت به حالات څنګه وي؟ د **۳** مارچ د غونډې ځنډولو وروسته اوس ولسي جرګې د غونډې د پاره **۲۵** مارچ وخت ټاکلی دی، او دا به ګرانه وي چې سړی وواييي غونډه به څنګه وشي؟ او په دې کې به د ولسي جرګې څومره غړي ګډون کوي؟

له کومو حالاتو سره چې اوس هيواد لاس و ګريوان دی سړی دا اټکل نشي کولی چې د دستور اصلي مادې به تر بحث لاندې ونېول شي که څنګه؟ او د ولس له قسمته نن چې د ولسي جرګې واګې له کومو خلکو سره دي هغوی به ترکومه حده اسې پټې سترګې وي؟ خو ترکوم ځايه چې خبرې شوي دي او معلومات راڅرګند شوي دي ؛ نو اوس که هغه بشپړ کړل شي بده به نه وي.

لکه مخکې مو چې وويل د دستور ډېرې مسائل داسې دي چې اسلام د دې پرځای چې خپله يې و ټاکي د ملت اجتماعي خوښې او فکر ته يې پرېښي دي، د دې مسائلو په تړاو چې له خپل منځي مشورې وروسته کومې خبرې ومنل شي په دې سره د دستور اسلامي حيثيت تر اغيز لاندې نه راځي. خو په کومو

مسائلو کې چې اسلام ټاکلي لارښوونې کړې دي، زموږ په نظر د هغو د سهي عملي کولو لارو چارو د پاره لاندې اقدامات ډېر اړين دي، او له دې پرته زموږ د ستور ته اسلامي دستور نشي ويل کېدلی:

(۱) "قرارداد مقاصد" (چې مخکې يې پوره تفصيل تېر شو) دې د دستور لازمې برخه وګرځول شي چې په (۱۹۵۱ز) کال کې دستور جوړونکي جرګې منظور کړې و او بيا د دستور په ډېرو مسودو کې شامل کړل شو. په دستور کې دا قرارداد شاملول ځکه ډېر اړين دي چې د دې په مټ د هېواد بنسټيزه پاليسي او ليد لوری ټاکل کېږي، د دې ترځنګ دې په څرګندو ټکو د دې خبرې سپيناوی هم وشي چې حاکميت يوازې د الله تعالی دی، او د ولس ټاکلي استازي کولی شي خپل اختيارات په هغو ټاکلو حدودو او شرائطو کې دننه وکاروي چې الله تعالی د قرآن او سنت له لارې پر دوی ټاکلي دي. په دستور کې دې دا خبره هم څرګنده کړل شي چې کوم قانون يا اقدام د "قرارداد مقاصد" سره ټکر ولري هغه دې په ستره محکمه کې چيلنج کړل شي.

(۲) د اسلامي حيثيت له پلوه د دستور دوهمه مهمه مرحله د قانون جوړونې سهي اصول ټاکل دي، په دستور کې دې د دې خبري بشپړ ضمانت واخېستل شي چې په هېواد کې به هيڅ قانون يا اجرائي حکم د قرآن او سنت په خلاف نه منظورېږي او د هېواد ټول اسلام ضد قوانين دې بدل کړل شي او د قرآن او سنت سره سم دې و ټاکل شي.

خو د تېرو درويشت کلونو تجربه ښيي چې د پاکستان ظالمو واکمنو د اسلام په ختمولو پسې ملې رابډ وهلي دي او دلته سهي اسلامي نظام د خپلو ګټو سره ټکر ګني، دوی په ښکاره داسې نه وايي چې د هېواد قوانين دې د اسلام سره سم نه جوړېږي، د دوی ټل دا هڅه وي چې په دستور کې ځينې داسې د غلا دروازې پرانستې پرېږدي چې په ښکاره د اسلام نوم پاتې وي؛ خو په عملي ژوند کې دې اړيکه له اسلام سره بيخي و شلېږي، له همدې امله



دوی د اسلام نوم د خپلو خواهشاتو پوره کولو د پاره کاروي او دې موخې ته د رسېدو د پاره له هيڅ شي دريغ نه کوي. د دې موخې د پاره چې تر اوسه په مختلفو دستوري مسودو کې کومې دروازې پرانستې پرېښودل شوي هغه په لاندې ډول دي:

(الف) د (۱۹۵۲ز) دستور جوړونکې اسامبلۍ چې د بنيادي اصولو کوم راپور وړاندې کړی و، په هغه کې د دې خبرې اقرار موجود و چې د هېواد قوانينو ډانچه به د قرآن او حديث له چوکاټ سره برابره وي، خو د دې د عملي کولو د پاره کوم ځانګړی وخت نه و ټاکل شوی چې په دې سره دا شونتيا وه چې قوانين د قرآن او سنت سره سم جوړولو معامله د يو نامعلوم وخت د پاره له پامه وغورځول شي او په عملي توګه اسلامي قوانين د يوې اوږدې مودې د پاره نافذ نه شول.

نو د دې شونتيا له منځه وړلو د پاره اړينه ده چې په نوي دستور کې قوانين اسلامي کولو د پاره دې يوه مناسبه موده وټاکل شي چې په هيڅ حال کې له پنځو کلونو زياته نه وي. که په اخلاص او مينې سره کار وشي؛ نو دا يوه معقوله موده ده چې پکې په اسانه د اسلامي قوانينو تدوين کېدلی شي.

(ب) د (۱۹۲۲ز) په دستور کې په لومړي سر کې د "قرآن او سنت" نوم لري کړل شو او پرځای يې اسلام و ليکل شو، ياني هيڅ قانون دې د اسلام ضد نه جوړېږي.

په ښکاره خو دا يو کم او بې ضرره بدلون و، خو په حقيقت کې د دې تر شا يو خطرناک ذهنيت کار کاوه... زموږ د هېواد يوه وړه ډله خلک سنت يا د رسول الله صلی الله عليه وسلم احاديث د اسلام د ماخذ په توګه نه مني، دا ډله په حقيقت کې د هغو لويديځ ځپلو يوه ځانګه ده چې د اسلام د اصلي روح پرځای يوازې د اسلام نوم کارول غواړي، او دوی غواړي د اسلام تعبير او

تشريح په داسې ډول وکړي چې په هغه کې د زړه ټول خواهشات پوره کړل شي، او اسلام له لويديځه را خپاره شوي افکارو او نظرونه مخ ته خنډ نه شي..... دې موخو ته رسېدل د رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغو لارښوونو ردولو پرته ډېر گران دي چې د قرآن کريم بشپړ تفسير او څېړنه يې کړې ده او دا يې له تحريف کونکو څخه ژغورلی دی، له همدې امله دوی دا نه مني چې حديث د اسلام له اصل مأخذ څخه دي، ترڅو د خپلې خوښې سره سم د قرآن تفسير وکړي او خپلې موخې ترلاسه کړای شي.

د (۱۹۶۲ز) کال په دستور کې د "قرآن او سنت" پر ځای د "اسلام" نوم راوړلو په حقيقت کې د همدې نظريې د پاره لاره اواره کړه؛ له همدې امله دا اړينه ده چې په نوي دستور کې په څرگندو ټکو د "قرآن او سنت" الفاظ وليکل شي.

(ج) په ځينو دستوري مسودو کې خو دا څرگندونې موجودې وې چې هيڅ قانون به د قرآن او سنت په خلاف نه جوړيږي؛ خو د دې خبرې ضمانت نه و چې اوس مهال کوم دوديز قوانين د قرآن او سنت سره ټکر لري، هغه دې بدل کړل شي او د قرآن او حديث سره دې برابر کړل شي؛ نو ځکه نوي دستور کې بايد دا دواړه خبري موجودي وي.

(د) په ځينو دستوري مسوداتو کې د دې هڅه شوې ده چې په قانون جوړونه کې دې د قرآن او سنت شرط يوازې يو اخلاقي لارښوونه پاتي شي. او که کوم غير اسلامي قانون په اسامبلۍ کې منظوريږي؛ نو د هغه اسلامي حيثيت دې په محکمه کې نه چيلنج کيږي. څرگنده ده چې په داسې وخت کې د دستور دا ماده په عملي توگه بې اغيزه کيږي، او په دې کې که هر څومره رنگين الفاظ وکارول شي د غير اسلامي قوانينو د ساتنې هيڅ ضمانت نشي ورکولی. نو په دستور کې دا څرگندونه هم اړينه ده چې که اسامبلۍ کوم



قانون د قرآن او حديث خلاف منظوروي؛ نو هغه دې په ستره محکمه کې چلينج او بدل کړل شي.

(ه) په ځينو دستوري مسودو کې پورتنيو امورو ته پاملرنه شوې ده؛ خو په هغو کې هم يوه بنسټيزه نېمگړتيا رامنځ ته شوې ده، هغه دا چې دستور داسې کومه باوري کړنلاره نده جوړه کړې چې د هغه له مخې يو قانون د قرآن او حديث سره مخالف يا موافق و گڼل شي.

د داسې دستوري مسودو وړانديز دا و چې که د کوم قانون د قرآن او حديث سره په سمون کې شک وي؛ نو د دې قطعي پريکړه به ستره محکمه کوي چې دا ريښتيا هم له قرآن او سنت سره برابر دی او که څنگه؟

دا کړنلاره د اصولو له پلوه سهي ده؛ خو عملي ستونزه پکې دا ده چې د سترې محکمې شته قاضيان په دوديزو قوانينو کې که څومره ژوره پوهه او تجربه ولري؛ خو دوی له اسلامي علومو يا ناخبره دي او يا په دې اړه سطحي علم لري. څرگنده ده چې له قرآن او سنت نه د قوانينو استنباط يو ډېر ستر علم دی چې د هغه لپاره عربي ژبه او ادب، تفسير، حديث او رجال يې، فقه او کلام او پر نورو پوهېدل ډېر اړين دي. او دا کار هغه خلک کولی شي چې ټول عمر يې د دين زده کړې ته ا ښستلی وي او قرآن او سنت د پوهې د پاره يې خپله شپه او ورځ وقف کړې وي.

که دا کار اوسنيو قاضيانو ته پرېښودل شي؛ نو په دوی کې زياتره داسې افراد دي چې نه په عربي ژبه پوره پوهيږي او نه د قرآن او حديث له اصولو خبر دي، او نه هم د هغو علومو او اصول تجربه لري چې د هغو په رڼا کې اسلامي قوانينو استنباط کيږي، څرگنده ده چې په داسې حالاتو کې د قرآن او سنت په اړه د دوی په فيصله باور نشي کېدلی.

نو په دستور کې بايد د دې ضمانت وشي چې دا فيصله به داسې عالمان کوي چې په قرآن او حديث پوره پوهه ولري، چې د هغوی پر علم، فقهي پوهې او تقوا باندې عام ولس باور کوي. زموږ په اند د دې غوره لار هغه ده چې په (**۱۹۵۳**ز) کال کې د هر فکر **۳۳** ديني عالمانو د خپلو دستوري سپارښتونو سره يوځای وړاندې کړې وه، او هغه دا چې ستره محکمه به يو ځانګړی دفتر پرانځي او په هغه کې به د سترې محکې د يو عام قاضي پرته پنځه يا شپږ ديني عالمان هم وي.

(و) د اسلامي قوانينو د تدوين په لړ کې يوه بله مهمه مسئله د هغه کميسون جوړېدل دي چې د پنځو کلونو په موده کې به پر دوديزو قوانينو دويمه کره کتنه کوي او د دې قوانينو د قرآن کريم سره برابرولو د پاره دې کار وشي. بناء د حکومت له خوا دې ډېرې داسې ادارې جوړې کړل شي چې په هغو کې د قانون کميسون، د نکاح کميسون، د زکات کميسون، د اسلامي ګډې مشورې کميسون او د اسلامي څېړنو ادارې شاملې وي. خو د **۲۳** کلونو تجربې ښيي چې دا ټولې ادارې نه يوازې دا چې په خپلو موخو ترلاسه کولو کې پاتې راغلي بلکې په ملت کې د اختلاف او انتشار پيدا کولو سبب وګرځېدلې، او په عوامو کې يې خپل قدر او ارزښت له لاسه ورکړ.

د دې ستر لامل دا و چې کوم خلک په دې اداره کې ګومارل شوي وو په هغو کې زياتره داسې وو چې د هغوی پر علم او عمل باندې د ملت هيڅ بروسه نه وه، د دې ادارو زياتره اړه د قرآن او حديث له تشريح او تعبير سره وه او ثرګنده ده چې د دې د پاره هغه افراد موزون کېدلی شي چې د خپل ژوند لويه برخه يې د اسلامي علومو زده کړې ته ابستلې وي، او دوی د دې کار د باريکيو او نزاکتونو پوره تجربه لري. په تېرو **۲۳** کلونو کې د هرې ادارې د جوړېدو پروخت دا حقيقت تل له پامه غورځول شوی دی، او د دې نتيجه پرته له دې چې د لکونو روپو لګښتونو سره سره کوم مثبت قدم نه دی پورته شوی



بله هيڅ نه وه. له همدې امله اړينه ده په نوي دستور کې د اسلامي قانون تدوين کونکي کميسون لپاره داسې رجال وټاکل شي چې هغه اهل وي تر څو په دې معامله کې کومه نېمګړتيا او ستونزه را پيدا نشي.

پورتنيو شپږو خبرو ته په پام سره زموږ په اند په نوي دستور کې بايد د اسلامي دستور جوړونې په اړه مادې له لاندې الفاظو سره يادې شي:

۱- داسې يو قانون بايد جوړ نه کړل شي چې د قرآن کريم او حديثو له احکامو سره ټکر ولري، او اوسني قوانين دې د (۲) فقرې د کړنلارې لاندې د قرآن او حديث سره سم جوړ کړل شي.

**۲**- د (۱) فقرې د تعميل د پاره دې ولسمشر د دستور نفاذ په موده کې په شپږو مياشتو کې دننه يو کميسون وټاکي چې "د اسلامي قانون کميسون" ورته وايي، او په هغه کې دې د هېواد ټولو اسلامي ډلو ته استازيتوب ورکړل شي.

**۳**- "د اسلامي قانون کميسون" د غړو دوه برخې خلک دې يوازې هغه ديني عالمان وي چې:

(الف) په يوه مشهوره ديني اداره کې لږ ترلږه له لسو کلونو راهيسې د مفتي په توګه کار کوي.

يا

(ب) د مسلمانانو په يوه سېمه کې لږ تر لږه د لسو کلونو راهېسې د فتوا ورکولو مرجع پاتې شوی وي.

يا

(ج) لږ ترلږه د لسو کلونو د پاره يې د قضا په يوه محکمه کې د قاضي په توګه کار کړی وي.

يا

(د ) په کومه ديني درسگا کې به لږترلږه د لسو کلونو راهيسې د تفسير، حديث او فقهي درسونه ښيي.(١)

(۴) "د اسلامي قانون کميسون" پاتې يوه برخه غړو شمېر کې به د قانون داسې ماهر وي چې:

(الف) لږ ترلږه د پنځو کلونو د پاره به په ستره محکمه يا نورو محکمو کې پرلپسې قاضي پاتې شوی وي.

يا

(ب) لږترلږه د سترې محکمې يا د دوو يا له دوو زياتو محکمو څارنوال پاتې شوی وي.

(**۵**) داسې لارې چارې دې ولټول شي چې ولسمشر د "اسلامي قانون کميسون" تر ټاکنو وړاندې د هيواد ټولو ديني او سياسي گوندونو څخه د کمېسون غړيتوب ته نومول شوي کسان وغواړي، او کوم نوم چې په وړانديزونو کې مشترک وي هغه دې د نومول شويو له ليسته نه غورځوي، مگر دا چې په هغو کې داسې کس وي چې له هغه نه د دې مادې له (**۳**) يا (**۴**) فقرې څخه سرغړونه شوې وي.

(۶) د اسلامي قانون کمېسون به د خپل نوموني له تاريخه د پنځو کلونو په موده کې دننه اسلامي احکام په مناسب ډول مدون کوي او د دې راپور

١) د ديني عالمانو دا معيار، د ټولو اسلامي ډلو **۳۳** عالمانو په **۱۹۵۳**ز کال په خپل غونډه کې منظور کړی و. چې په کراچي کې د **۱۹۵۲**ز کال په دستوري سپارښتونو باندې د کتنې د پاره جوړه شوې وه.



عبوري وي او که قطعي، د ترلاسه کولو نه وروسته په شپږو مياشتو کې ولسي جرگې ته وړاندې کړي او د قانون په توگه دې نافذ کړي.

(۷) د قانون جوړونکي جرگې قوانين پر خلاف چې کومې نېوکې د دې مادې د (۱) فقرې له مخې د قرآن او حديث د تشريح په اړه راولاړېږي، د هغوی وروستۍ او قطعي پرېکړه به د سترې محکمې هغه ځانگړې څانگه کوي چې ولسمشر د همدې موخې د پاره ټاکلې وي چې په هغې کې لږترلږه پنځه ديني عالمان هم وي.

(۸) د سترې محکمې په دې ځانگړې څانگه کې به چې د هغې څرگندونه په (۷) فقره کې کېږي، يوازې هغه ديني عالمان ټاکل کېږي چې په (۳) فقره کې د بيان شويو شرطونو سره پوره برابر وي. د داسې ديني علماوو قاضيانو لپاره به ټول هغه اصول وي چې د نورو قاضيانو د پاره وړاندې شوي دي.

## تشريح

(۱) د يوې مسلماني ډلې د شخصي قوانينو په تړاو به په دې ماده کې د قرآن او سنت نه مراد هغه مفهوم وي چې د هغه ځانگړې ډله يې مني.

(۲) د قرآن او سنت به داسې تشريح نه کيږي چې په يو وخت د ټولو منل شويو فقهي افکارو د تشريح سره مخالف وي. داسې تشريح د دې مخالفت تر بريده د نښت برابر ده.

زموږ په اند په قانون جوړونه کې د قرآن او سنت پابندي شرط په هغه صورت کې د هيلو سره سم نتيجه ورکونکی او اغيزمن کېدلی شي چې په دې دستور کې پورتنی تفصيل درج کړل شي. که د دې مادې ياد شوي لوازم د مخکې په خبر له پامه وغورځول شي نو د "قرآن او سنت" نوم به د پخوا په

ځېر بې روحه کړل شي او له دې څخه به د اسلامي ټولنې د تشکیل ارمان کله هم پوره نه شي.

(۳) د دستور د اسلامي مقام په اړه دریمه ضروري خبره داده چې په دستور کې باید د دې خبرې ضمانت وشي چې ولسمشر او لومړی وزیر به مسلمانان وي. د ولسمشر په اړه خو تر اوسه په ټولو دستوري مسودو کې دا شرط غیري اختلافي دی. خو د لومړي وزیر د پاره داسې شرط نه دی اېښودل شوی، موږ پوهیږو چې کله د ولسمشر د پاره د مسلمان شرط په اصولي توګه ومنل شو؛ نو بیا د لومړي وزیر د پاره د دې شرط په مخکې څه خنډ دی؟ سره له دې چې په پارلماني نظام کې ټول واک له لومړي وزیر سره وي.

(۴) پورتنۍ درې خبرې داسې دي چې د دوی بنسټیز اهمیت ته په کتلو سره یې ځانګړې یادونه اړینه وه. او پاتې شو د دستور هغه مادې چې د اسلام له نظره اړینې دي، د هغو په اړه په دې بسنه کېدلی شي چې په جنوري **۱۹۵۱**ز کال کې د هر فکر ۳۱ دیني عالمانو چې کومه غونډه شوې وه. هغوی د دستور په لړ کې **۲۲** داسې ټکي ترتیب کړي وو چې په اسلامي دستور کې د هغو پاملرنه ډېره ضروري ده، نوی دستور باید پر هغو ټکو بنا وي، او د دستور هره هغه ماده به غیر اسلامي وي چې په دوی کې له هر ټکي سره ټکر ولري. دا **۲۲** ټکي د البلاغ په دې ګڼه کې خپرېږي.

زموږ په اند پورتني څلور کارونه د نوي دستور د اسلامي کېدلو د پاره یو لازمي غوښتنه ده، دې کارونو ته په کتنې سره هر مسلمان پوهېدلی شي چې اوسني وخت کې چې موږ کله د "اسلامي دستور" نوم اخلو نو له دې نه زموږ مراد څه دی؟ همدا د "اسلامي دستور" هغه معیار دی چې د دې پر بنسټ د نوي دستور په اړه تاسو پرېکړه کولی شئ چې دا تر کومه بریده اسلامي او یا غیر اسلامي دی؟



له دې تفصیل وروسته دا حقیقت هم په څرګند ډول روښانه کیږي چې "اسلامي دستور" داسې کومه بلا نده چې پر ځینو عناصرو یې تل وېره پرته وي، او نه هم دا کوم داسې شی دی چې نشي عملي کېدلی، دا یوازې یو څو راټولي شوي مادې دي، که همدا مادې د زړه له اخلاصه په دستور کې ورګډې کړل شي؛ نو بیا د دې ور دی چې اسلامي دستور ورته وویل شي. پاتې نوري اجرائیه ډوله مادې، په دې اړه د ولس ټاکلې ولسي جرګې ته بشپړه ازادي ده چې د حالاتو سره سم څه ډول اصول ګټور بولي هغه دې په ګډه مشوره غوره کړي.

اوس نو که چېرې د اسلام په نوم دا یو څو په ګوته شوي مادې څوک په دستور کې نه مني؛ نو د دې څرګند مطلب دا دی چې دوی غواړي یوازې د اسلام نوم وکاروي، که څوک داسې کوي په حقیقت کې دوی د هیواد نظام له اسلام سره سم چلول نه غواړي.

که اوسنی قانون جوړونکې جرګه په نوي دستور کې د دې څو خبرو پاملرنه وکړي؛ نو بې شکه چې دا به د مسلمانانو ډېره خوښه جرګه وي. او د دې هیواد ولس به خپلې ټولې ترخې خاطرې هېرې کړي او له دوی سره به هر ډول مرسته وکړي؛ خو که د جرګې غړي د ټاکنو نه مخکې شپه او ورځ د اسلام او قرآن او سنت نوم هم نه اخلي، جرګې ته تر ورتلو وروسته د قرآن او سنت د پاره دا کار هم ونکړي؛ نو ولس پخپله پوهیږي چې پر چا باور وکړي؟ که داسې ونشي نو څرګنده ده چې دا بې وسه ولس په یو څوخوږو جملو نشي تېروتلی چې د دې هیواد مشران یې کاروي.

**وما علینا الاالبلاغ**

**محمد تقي عثماني**

**البلاغ میاشتنۍ مجله صفر ۱۳۹۱هـ**

# د اسلامي هېواد بنسټيز اصول

د ۱۳ عالمانو له خوا ۲۲ په ګوته شوي مهم ټکي چې ټولې اسلامي ډلې پرې يوه خوله دي.

د اسلامي هیواد په دستور کې لاندې اصول په څرګندو ټکو راوړل لازمي دي:

۱. د تشریعي او تکویني امورو له پلوه د ټولو کائناتو اصلي پالونکی يوازې الله دی.

۲. د هیواد قانون به د قرآن او سنت پر بنسټ ولاړ وي، هیڅ داسې قانون نشي جوړېدلی او نه هم داسې اجرائي حکم کېدلی شي چې له قرآن او سنت سره ټکر ولري.

که په يو هيواد کې له مخکې نه داسې قوانين جاري شوي وي چې له قرآن او سنت سره مخالف وي، نو د دې يادونه هم اړينه ده چې هغه دې په تدريج سره په ټاکلې موده کې منسوخ کړل شي او يا دې له شريعې لارښوونو سره سم بدل کړل شي.

۳. هیواد پر جغرافيايي، نژادي، ژبني بنسټ يا کوم بل تصور نه وي ولاړ بلکې د هغو موخو او مقصدونو پر بنسټ به ولاړ وي چې اساس يې د اسلامي ژوند کړنلارې سره برابر وي.

۴. پر اسلامي هیواد فرض دي چې د قرآن او سنت کړي امرونه پلي کړي، د منکراتو مخه و نيسي، او د اسلامي شعائرو د ژوندي ساتلو او لوړ والي او اسلامي ډلو ته د خپل مذهب سره سم ضروري اسلامي لارښوونې برابرې کړي.

۵. پر اسلامي هیواد فرض دي چې د اسلامي نړۍ د پاره د يووالي او ورورولۍ اړيکه ټينګولو او پياوړي کولو د پاره هڅې وکړي، او د دولت مسلمانو وګړو ترمنځ د عصبيت او ملت پالنې پر بنياد، نژادي، ژبني، سيمه ييزو او نورو خبرو لارې بندې کړي او د اسلامي ملت د يووالي، ټيکاو او پايښت لارې چارې ولټوي.



۶. هیواد له مذهبي، نژادي او نورو توپيرونو پرته د هغو خلکو د ټولو اړتياوو لکه، خوراکي توکي، هستوګنه، درملنې او ښوونې پوره کولو کفيل دی چې له خپلې نفقې ترلاسه کولو بې وسه وي، يا يې نه لري، يا ناروغه وي يا بې کاره وي او د اوس لپاره يې د ترلاسه کولو وس نه لري.

۷. د هيواد وګړو ته به ټول هغه حقوق ورکول کېږي چې اسلامي شريعت ورکړي وي. د قانون په حدودو کې دننه د ځان، مال او عزت ساتنه، د مذهب آزادي، د عبادت آزادي، د ذات آزادي، د رايه څرګندولو آزادي، د نقل او حمل آزادي، د ټولنې آزادي، د روزي ترلاسه کولو آزادي، د پرمختګ په موکو کې مساوات او دکار له ادارو ګټه پورته کولو حق، دا ټول هغه څه دي چې بايد حکومت يې له نژادي توپير پرته ټولو خلکو ته په مساوي توګه ور ورسوي.

۸. په پورتنيو حقوقو کې به د هيڅ وګړي حق د اسلامي قانون له اجازې پرته نه سلب کېږي، او د جرم په تور به چاته د ځان سپيناوي موکې او قضا له پرېکړې پرته کومه جزا نه ورکول کېږي.

۹. اسلامي ډلو ته به د قانون په حدودو کې دننه بشپړه مذهبي آزادي حاصله وي. دوی حق لري خپلو لارويانو ته مذهبي ښوونه ورکړي او په آزاده توګه خپلې رايې څرګندې کړي. د دوی شخصي معاملاتو پرېکړې به د خپل فقهي مذهب سره سم کېږي او داسې اسانتياوې دې ورته برابرې کړل شي چې خپل قاضي يې دا پرېکړې وکړي.

۱۰. نامسلمانه وګړو ته به د هيواد د قانون په حدودو کې دننه د مذهب او عبادت، تهذيب او کلتور، او د مذهبي زده کړې بشپړه آزادي وي او دوی ته دې اجازه ورکړل شي چې د خپلو شخصي معاملاتو پرېکړې د خپل مذهبي قانون يا دوديزو پرېکړو سره سم وکړای شي.

۱۱. نامسلمانه وګړي چې له اسلامي هيواد سره په شرعي حدودو کې دننه کومې لوزنامې کوي، د هغو پابندي به هرومرو کوي. او پخپلو حقوقو کې به دوی ته برابر حقوق ورکول کېږي.

۱۲. د هیواد مشر به هرومرو مسلمان وي، چې د هغه ټاکنه به د صلاحیت او رایو پر بنسټ د ولس یا خپلو استازو له لارې کیږي.

۱۳. د هیواد مشر د هیواد د چارو د نظم اصلي مسؤل دی. او هغه کولی شي د خپلو اختیاراتو څه برخه یو فرد او یا یوې ټولنې ته وسپاري.

۱۴. د هیواد مشر به مستبد حاکم نه وي، بلکې د نوموړي حکومت به شورایي بڼه لري، یعنې هغه به د حکومت له غړو یا ټاکلو نماینده ګانو سره په مشوره خپلې دندې پرمخ بیایي.

۱۵. د هیواد مشر اجازه نه لري چې د دستور کومه برخه یا ټول دستور معطل کړي او له شورا پرته خپلې چارې پرمخ بوزي.

۱۲. کوم ګوند چې د ولسمشر د ټاکلو واک لري، همدا ګوند کولی شي د زیاتو رایو پر بنسټ دی له واکه ګوښه کړي.

۱۷. د هیواد مشر د وګړو په حقوقو کې له عامو مسلمانانو سره برابر دی، او د قانون له نیونې څخه به پورته نه وي.

۱۸. د حکومت چارواکو او کارېګرو د پاره به یو ډول قانون وي او پر دواړو به یې محکمې په یو ډول نافذوي.

۱۹. د قضا محکمه به له اجرائیې څخه بېله او ازاده وي، ترڅو قضا پخپلو چاروکې د اجرائیې تر اغېز لاندې رانشي.

۲۰. د داسې افکارو او نظرونو خپرول به بند وي چې د اسلامي هیواد د اصولو او بنسټونو د له منځه وړلو باعث ګرځي.

۲۱. د هیواد مختلف ولایتونه او برخې به د یوه هیواد اجرائیي جز ګڼل کیږي. دا برخې به په نژادي، ژبنې او یا قبائلي توګه بېلې نه وي، بلکې یوازې اجرائیه سیمې به وي چې اجرائیه اسانتیاوو ته په پام سره به د مرکز د مشرتابه تر مشرۍ لاندې دوی ته اختیارات ورسپارل روا وي؛ خو دوی حق نه لري چې له مرکزه بېل شي.



۲۲. د دستور داسې تعبیر د اعتبار وړ نه دی چې د قرآن او سنت سره ټکر ولري.[1]



[1] د ژباړې پای. د رجب ۵ مه ۱۴۳۳. نورالله عزام، جامعه قاسمیه